من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين. [الحديث]

**د پلچرخي په صليبي زندان کې د اهل السنت والجماعت**
**او د لامذهبو (وکتوري اهل حديثو،مماتيانو،بريلويانو،مودوديانو) دعقايدو او د مسائلو په**
**تشريح کې ليکل شوی کتاب**



# احقاق الحق

## في الدفع عن المذهب الحق


**مؤلف**

**الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني**

**کاتب:مولوي هدايت الله (بدر)**


**لومړی ټوک**

اهل السنة والجماعة العالمي

د كتاب نوم: إحقاق الحق في الدفع عن المذهب الحق

ليكوال: ألشيخ أبو إبراهيم رحيم الله ألحقانى ألننجرهارى

زيار او تصحيح: ألشيخ ألشهيد مولانا عبد السلام ألحقاني ألننجرهاري

اول چاپ: ٢٠١٤م كال

دويم چاپ: ٢٠١٥م كال

دريم چاپ: ٢٠١٦م كال

تعداد: ١١٠٠ توكه

كمپوز او ښايست: مولوي هدايت الله همت اوحافظ حمزه مجاهد







محله جنگي پشت قصه خواني تديم ماركيټ

اهل السنة والجماعة العالمي ادار

مسئول اداره: م بدر

داريكو شمېرې: ٠٣٤٨٤٣١٩٥٤١-٠٣٤٧٠٠٥٠٩٠٤

# الإهداء ...

*إلى قائد المجاهدين ورئيس الإستشهاديين نبي الرحمة والملاحمة،وإلى آله وأصحابه الذين أحيوا في هذه الأمة روح الجهاد والإستشهاد قولا وعملا...

* إلى الشهداء الذين وضعوا أرواحهم على أكفهم لنصرة الدين ومضوا إلى الله ..

خصوصا: إلى الشهيد البطل استاذ الشهداء ألشيخ ألشهيد ألمظلوم مولانا عبد السلام الحقانى الذى ساهمنى فى تأليف هذا الكتاب فى السجن رحمه الله رحمة واسعة...

*إلى المأسورين القابضين على الجمر في سجون أعداءالله ...

*إلى مشايخنا الذين استفدتُ من كتبهم فى تأليف هذ الكتاب...

*وإلى أساتذتى و والدىَّ ألذين لم يألوا جهودهم فى تربيتى ..

*إلى جميع أيمة الأمة الإسلامية خصوصا إلى إمامنا الأعظم أبى حنيفة رَحِمَهُ ٱللَّهُ الذى روى بإجتهاده وبدمائه الزكية أرض محمّدصلي الله عليه وسلم أجزل الله لهم الثواب الأخرة..

* إلى كل المجاهدين في سبيل الله – أفرادا وجماعات – على جميع ثغور الإسلام وأرض الله الواسعة.

* إلى الإخوة الذين ساهموا في طبع الكتاب وترتيبه والذين يستفيدون منه لايعلمهم إلا الله..

أهدي هذا

عسى الله أن ينفعنا وينفعهم به جميعا, إنه كريم سميع مجيب الدعاء .. آمين

**دليكوال لنډه پېژندنه:**

**نوم او نسب:** الشيخ محمد رحيم الله، بن العالم سعد الله، بن محمد اجان، بن الشيخ محمد، بن العارف بالله وبأمر الله الشيخ عبد المجيد آخند زاده، بن العارف بالله وبأمر الله الشيخ عبد الله آخند زاده خليفه العارف بالله وبأمر الله مولانا عبد الغفور (سيد وشريف سوات) **دولادت نېټه:** ۱۳۵۷ لمريز د ميزان ۱۵ (۱۹۷۸) ميلادي، (۱۳۹۹) قمري كال د جمعې ورځ. **قوم:** خروټی

**مقام ولادت:** أفغانستان، دننګرهار ولايت، د آګام ولسوالۍ پاس صبر.

**إبتدايي تعليم:** دروسانو له تجاوز څخه دهجرت پرمهال:

۱ – مدرسة الهجرت والجهاد – تر ۱۱ صنف. ۲ – دار العلوم اسلاميه رستم مردان. ۳ – دار العلوم منهاج العلوم نرياب هنګو. ۴ – فيض العلوم لوګر محمد آغه. ۵ – دار العلوم هاشميه باړه خيبر ايجنسي. ۶ – دار العلوم فاروقيه لمولانا سيد قريش رحمه الله يار حسين صوابی. ۷ – دار العلوم اسلاميه، دير، کومبړ، لصوفي محمد.

**موقوف عليه:** جامعه نعمانيه چارسده اتمانزی، عند الشيخ مولانا محمد ادريس حفظه الله

**تفسير القرآن:** جامعه مظهر العلوم ډاګی، عند الشيخ مولانا حمد الله جان ألداجوي حفظه الله.

**فراغت:** ديوبند ثاني، الجامعة الحقانيه، اکوړه خټک، نوشهره.

**سال فراغت:** ۱۹۹۸ ميلادي **تدريس:** ټول فنون تر دورة الحديث پورې په لاندې مدرسو کې:

(۱) الجامعة الرازيه ناصرباغ پشاور، (۲) الجامعة الصديقيه دروټه ننګرهار داسلامي امارت جهادي مدرسه. (۳) الجامعة الاسلاميه جلال آباد، (۴) الجامعة الاسلاميه تالاب سفيد سنګ، (۵) الجامعة الهاشميه باړه خيبر ايجنسي. (۶) دپلچرخي په زندان د ريم بلاک کې په شخصي مدرسه کې د موقوف عليه، ترمذی او تفسير درس، (۷) الجامعة المحمديه ماشوخېل پشاور. (۸) الجامعة الاسلاميه هري پور مهاجر کېمپ، (۹) د دوهم ځل لپاره دپلچرخي په زندان کې شخصي درس. (۱۰) شمس المدارس سربند (۱۱) او في الحال په جامعه زبيريه پشاور کې دحديثو استاذ.

**جهادي خدمات**

**لساني جهاد:** دصليبيت، رافضيت، مودوديت، مماتيّت، بريلويت، داعشيت اولامذهبيت مکمل ترديد او دمناظرو ډکورسونو سره سره عملي مناظرې. **بدني جهاد:** (۱) ديوې جهادي دلګۍ سرپرستي، (۲) داسلامي امارت دننګرهار ولايت دنظامي کميسيون مسؤليت، (۳) داسلامي امارت په مرکزي نظامي کميسيون کې خدمت، (۴) داسلامي امارت د مرکزي نظامي کميسيون دملکي تلفاتو په اداره کې خدمت، (۵) داسلامي امارت په خصوصي محاکمو کې خدمت، (۶) دمجاهدينو داصلاح او نظرياتي تربيت لپاره مختلفو ولاياتو ته سفرونه.

**تصانيف:** (۱) عقد اللآلی شرح خيالي، (۲) احسن الفرائد دشرح العقايد شرح. (۳) الروض المكلل شرح المطول، (۴) فريدة الغواص شرح سلم العلوم، (۵) احقاق الحق في الدفع عن المذهب الحق پنځه جلده (۶) شمس الحكمة شرح هداية الحكمة.

**بيعت:** العارف بالله وبأمر الله مولانا عبد السلام رحمه الله (پيرسباق شريف) وابنه العارف بالله وبامر الله قاري بشير احمد حفظه الله.

بسم الله الرحمن الرحيم

## مُقدِّمة

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم، امّابعد :

محترمو لوستونکو!

دفتنو دور دی، نوې فتنې راپيدا کېږي ،يوه فتنه ختمه نوي بله فتنه سر راپورته کړي ، په اسلامي ملکونو باندې د لادينيت طوفان را الوتی دی، کفري طاقتونه د اسلام په بنيادونو باندې دهرطرف څخه حملې کوي، په اسلامي ملکونو کې دبې حيايي، بې شرمۍ، عياشۍ، اوفحاشۍ بازارونه ګرم دي، په دې پُرفتن دورکې چې داتحاد او د اتفاق څومره ضرورت دی هغه دعقل خاوندانو ته پوره ښکاره دي. (عيان راچه بيان).

ددې حالاتو تقاضی دا وه چې مسلمانانو خپل اختلافات بالکل يو طرفته کړي وای او کفري، يهودي اوصليبي سېلاب ته يو بلاک جوړ شوي وای، په يو اتحاد يې دکفر، شرک، صليبيت، يهوديت، او دهريت سېلاب ته بند جوړ کړای وای، په خپلو تقريرونو اوتحريرونو يې دصليبيانو ، يهوديانو، ملحدينو او زنديقانو مقابله کړای وی.

مګر افسوس چې په مسلمانانو کې يوه وړه فرقه چې دغير مقلدينو په نوم سره يادېږي، اودافغانستان او پاکستان عوام ورته وهابيان، سلفيان، اهلحديث، اثريان وغيره وايي دحالاتو په نزاکت نه پوهېږي، او ددې خبرې سره يې هيڅ کار نشته چې صليبيانو قرآنونه بيت الخلاګانو او ډېرانونو ته وغورزول، قرآنونه يې په ډزو وويشتل ، دعيسويت لپاره دومره کار وشو چې زيات مسلمانان عيسويان شول، دمسلمانانو څخه زندانونه ډک شول، دمسلمانانو د پېغلو سره په ډله ايزه توګه جنسي تيري وشول، په مسجدونو او په مدارسو باندې بمبارونه وشول، دګونتانامو، بګرام،

پلچرخي او په داسې نورو کفري زندانونو کې د مسلمانانو غوښې ورستې شوې، په زرګونو د قرآن حافظان او عالمان د صليبيانو په دارونو را وزړول شول، او هر طرفته د مسلمانانو قتل عام روان دی.

بلکې د دوي کار صرف د مسلمانانو په مابين کې انتشار پيدا کول دي، داخلک په خپلو تقريرونو او تحريرونو کې د ملحدينو، زنديقينو، صليبيانو او د کفارو د ترديد پر ځای د احنافو پسې بد رد وايي، فروعي مسائل يې د کفر او اسلام مدار ګرزولي دي، او د انګريزانو د امشن يې ښه په وړاندې روان کړی دی چې ډيوائډ اينډ رول *(DivideAnd Rul)* په خلکو کې بې اتفاقي واچوه او حکومت پرې وکړه.

په افغانستان د صليبيانو د يرغل هر کلی يې وکړو، لامذهبه سياف وهابي او د جميل الرحمن ځای ناستی لامذهبه سميع الله نجيبي د امريکايانو د يرغل لپاره د قرآن او حديث نه دلايل بيانول چې د دې صليبي خدمت په عوض او د نور خدمت په طمعه د امريکايانو لخوا ښه ونازول شول، او مهم رياستونه ورکړل شول، لکه د حج او اوقافو او داسې نور رياستونه، چاته يې د طرز العمل او د علماء و د شورى' په نوم شوراګانې جوړې کړې، او څه يې د مرکزي مساجدو امامان کړل، او چاته يې (F.M) ايف ايم راډيوګانې جوړې کړې، چاته ئې مدرسې جوړې کړې، په دې رياستونو، شوراګانو، مساجدو، مدارسو، او راډيوګانو کې د ناستو نام نهاده علماؤ غټ شعار دا دی چې د صليبي طاغوتيانو په خلاف جهاد حرام دی، ليکن د احنافو په خلاف فساد فرض عين دی، د فحاشۍ او د عريانۍ، ارتداد په خلاف رساله ليکل او اشتهار چاپول حرام دي، ليکن د تقليد په خلاف په خلکو کې انتشار پيدا کول فرض عين دي، د ډيموکراسۍ او بې دينۍ په خلاف باندې هر حرکت حرام دی، ليکن د امام صاحب رحمه الله د مذهب په خلاف اجتماع ګانې او غونډې جوړول فرض عين دي، د شهيدانو او د اولياؤ زيارت ته تلل حرام دي، ليکن د امريکايانو د ښځونو او د سپينې ماڼۍ څخه طواف کول فرض عين دی، د صليبيت او يهوديت په خلاف قلم پورته کول حرام دي، لکن د رفع اليدين، آمين بالجهر وغيره مسايلو په وجه په مساجدو کې جنګونه جوړل فرض عين دي.

دغه نام نهاده علما په سالانه اجتماعاتو او په عامو غونډو او مجلسونو کې په ډېر شوق سره اختلافي مسائل بيانوي. دا په يادلرئ چې زمونږ ملکونو ته قرآن احنافو مجاهدينو را رسولی دی، همدا رنګه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ احنافو تر دې ځايه رارسولې دی، د افغانستان خلک چې کله مسلمانان شول،

احنافو فاتحو علماؤ ورته همدا نبوي لمونځ وښودلو، چې لاسونه دنوم څخه لاندې تړئ، دامام پسې فاتحه مه لولئ، رفع اليدين، ديوځو ځايونو څخه بغير په بل ځای کې مه کوئ، امين په زوره مه وايي الخ.

او دا هم په ياد لرئ چې درسول الله صلى الله عليه وسلم حديث دی چې، زما دامت دبهترو خلکو په لاس به هند فتحه کېږي، نسائي جلد ۲ ص ۵۲ مسند احمد بن حنبل ج ۵ ص ۲۷۸، مجمع الزوايد ج ۵ ص ۲۸۲. الله جل جلاله ددې وړاند وينې مصداق احناف وګرزول، دغزنوي، غوري او سوري خاندانونو په لاس باندې هند فتحه شو چې ټول احناف وو، او احنافو فاتحو علماؤ دهند مسلمانانو ته همدغه نبوي ﷺ مونځ ور وښودلو، په هندوستان کې تر دېولس سوه کلونو پورې او په افغانستان کې تقريبا ترڅه دپاسه ديارلس سوه کلونو پورې ټولو مسلمانانو همدغه لمونځ کولو، او هېچا دا آوازنه پورته کولو چې دغه لمونځ دسنتو څخه مخالف دی، پدې ديارلس سوه کلونو کې په کربونو کربونو علماء، اولياء مجاهدين او عوام دحج او د تعليم لپاره حرمينو شريفينو ته تلل، هلته ورته هېچا نه ويل چې ستاسو لمونځ دسنتو څخه مخالف دی په ټول تاريخ داسلام کې يوه واقعه هم داسې نده پيدا شوې.

ليکن کله چې ملکې وېکټوريې هندوستان ونيولو، نو دانګريز په دوره کې د اهل حديثو مشرانو نذير حسين، عبدالحق بنارسي، وحيد الزمان، نواب صديق حسن خان، محمد حسين بټيالوي وغيره، ددې متواترو سنتو په خلاف آوازونه پورته کړل، او اشتهارونه يې خپاره کړل چې داحنافو لمونځ دسنتو څخه مخالف دی، دا اشتهارونه يې کلي په کلي تقسيم کړل. او دانګريزانو دې پاليسي ته يې چې (لړاو اور حکومت کرو) عملي جامه ور واغوستله.

## د وکټوري اهل حديثو دوه مقصده وو:

د دوي اول مقصد دا وو چې خلکو ته دا ذهنيت ورکړي چې: دانګرېزانو په خلاف جهاد حرام دی، او ددې مقصد دپوره کولو لپاره مولوي محمد حسين دخپل جماعت له طرفه يوه رساله وليکله په نامه د (الاقتصاد فی مسائل الجهاد) ددې رسالې په عوض کې دانګريزانو له طرفه جاګير دار شو، بله رساله صديق

حسن خان ولیکله په نامه د (ترجمان وهابیه) ددې رسالې په عوض کې دانګریزانو لخوا ورته ریاست ورکړل شو، او نوابي یې حاصله کړه، دا دواړه رسالې د (رسائل اهلحدیث) په اول جلد کې موجودې دي.

- ددوي دوهم مقصد دا وو چې د مسلمانانو په مساجدو کې فسادونه جوړ کړي، ددوي په نیز په مساجدو کې د فسادونو جوړول فرض عین دی او ددې مقصد لپاره یې اشتهارونه چاپ کړل په اشتهارونو کې یې یو څو مسائل ولیکل او بیا یې اخطارونه ورکړل او وې لیکل چې د پنجاب او د هند حنفیانو ته د اشتهار په ذریعه دا وعده ورکوو چې په دوي کې هر یو عالم ددې مسائلو جواب په آیت او یا پداسې صریح صحیح حدیث سره چې په صحت کې یې هیڅ خبره نوي پیش کړي، نو د هر آیت، د هر حدیث په مقابل کې ورته لس روپۍ دانعام په طریقه ورکول کېږي.

## دشیخ الهند رَحِمَهُ اللّٰهُ جواب:

حضرت شیخ الهند رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې فتنې د خاموشولو لپاره یوه وړه رساله ولیکله په نامه د (ادله کامله) په هغې کې ئې لیکلي وو، چې دا وخت د اختلافاتو ندی، د مسلمانانو په مابین کې د اختلاف په ځای د اتحاد کوشش پکار دی، او دا یې هم ولیکل چې مشتهر صاحب! ستا انداز د تحقیق ندی، د مسلمانانو جنګول د حدیثو اتباع نده، ستا د علم سرمایه دومره ده چې په حدیثو کې درته صرف متعارضات معلوم دي، او په قرآن کې درته صرف متشابهات معلوم دي، د شیخ الهند رحمه الله د رسالې په جواب کې د وکټوري اهل حدیثو له طرفه محمد أحسن أمروهي د (مصباح الادله) په نوم باندې کتاب ولیکلو چې په دې کتاب کې نه آیت وو او نه حدیث، بلکه صرف او صرف کنځلې وې. حضرت شیخ الهند رَحِمَهُ اللّٰهُ بیا په جواب کې (ایضاح الأدله) ولیکلو.

## دشیخ الهند رَحِمَهُ اللّٰهُ کرامت:

په امت مسلمه کې د شیخ الهند رَحِمَهُ اللّٰهُ دا منل شوی کرامت دی چې کله أحسن أمروهي وریسې کنځلې ولیکلې نو الله جل جلاله ددې لامذهبه څخه ایمان واخیست، او د قادیانیت په حال کې مړ شو، دنیا او آخرت یې دواړه برباد شوه. مجموعه اشتهارات مرزا ج۱ ص۳۳۷].

نو د انتشار بنیاد دغو لامذهبو کېښودلو، او چې کله افغانستان ته روسان راغلل، نو ددوي د افتنه دلته همرا ورسېدله، او اوس د انګریزانو دیرغل په دوره کې پوره أوج ته ورسیدله، دخپلو روحاني پلرونو سره پوره همکار دي، زمونږ دولایت (ننګرهار) د مرکزي مساجدو حنفي علماء یې څه شهیدان کړل او څه یې بندیان کړل، او څه د وطن څخه فرار شول او غرونو ته وختل، او دهغوئ په ځای دا کثرو مرکزي مسجدونو امامان همدغه وکتوري اهلحدیث شول، دوي یو طرفته انګریزانو ته جاسوسي کوي، او بل طرفته عوام په فروعي مسائلو کې جنګوي، ترڅو چې دجهاد د درسونو پر ځای پدې فسادونو کې مصروف وي، او دجهاد جذبه پکې سړه شي، و الی الله المشتکی.

کله چې زه د څلور کاله آزادۍ څخه وروسته دوهم ځل په څوارلس سوه دوه دېرشم کال، دشعبان په اول تاریخ، دماښام په اته بجو دلغمان دعلیشنګ په لاره داسلام آباد په ساحه کې دیو مرتد صلیبي (قومندان زمريالي) لخوا په یو کمین کې ونیول شوم، او دظلم او د وحشت ناتار راباندې جوړ شو، دلغمان داستخباراتو په ریاست کې بیا د کابل (۱۷) او (۹۰) په ریاستونو کې را څخه غوږونه غوڅ شوي، او نوکونه را څخه وېستل کېدل، په وینو لمبدلې ووم، پښې مې د حرکت څخه غورځېدلې وې، تشناب ته په ګنډو او په ځنګلو تلم، په سترګو راته څه نه ښکارېدل، او اکثر به بې هوښه پروت ووم، پداسې حالت کې هم زمونږ د وطن دیو څو نام نهادو اهلحدیثو ملایانو زړه را باندې نه یخېدلو، او خپلو صلیبي بادارنو ته به یې دغلامۍ او دجاسوسۍ پوره حق اداکولو، او زما تعذیب به یې زیاتولو، بیا چې کله دپول څرخي زندان ته نقل کړی شوم، نو هلته دهر قسم جرمونو خلک بندیان وو، مثلاً، موادمخدر، غلا، سرقت او داسې نور... او طالبان هم بندیان وو، دجنایي جرمونو خلک زیات وو، داسې خلک پکې وو چې دخپلې مور سره ئې زنا کړې وه (معاذالله) لکن هلته هم دافتنه رسیدلې وه، دغلو او دزناکارو داصلاح کوشش یې نه کولو، دبې نمازانو غم ورسره نه وو، بلکې دهغو مخلصو مجاهدینو پسې لګېدلي وو چې مقلدین وو، لمونځ ګزارو خلکو ته به یې دخپلو لمونځونو په باره کې وسوسې اچولې، داختلافاتو بازار یې ګرم کړی وو، مونږ دخپلو اکابرو په طریقه ډېر دصبر او تحمل سره برداشت کولو، لکن چې کله مو ولیدل چې دوي زمونږ شرافت په کمزورۍ ورحملوي، او ددې څخه علاوه هغو عوامو او طالبانو چې ددوي تقریرونه یې اورېدل، او ددوي کتابونه یې کتل هم زمونږ څخه

پوښتنې کولې چې آیا واقعي داحنافو لمن دحدیثو څخه خالي ده؟آیا واقعي تقلید شرک دی؟ ایا واقعي داحنافو سره په ترک دقراءت خلف الامام اوپه ترک درفع الیدین اوهمداسې نورو مسائلو باندې هیڅ دلیل نشته؟او آیا واقعي فقه حنفي دقرآن او حدیث څخه خلاف ده؟ نو دمجبوریت له وجهې مې قلم را واخیستلو او یو څه هغه موضوعات مې ولیکل چې غیرمقلدینو پرې د فتنې بازار گرم کړی وو.

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده، والصلاة والسلام على من لا نبي بعده. أما بعد:

دشروع فى المقصود څخه مخکې به په طريقې دتمهيد سره يو څو امور ذکر کړو!

## د مناظرې ثبوت

۱-په مناظرو باندې د مسلمانانو دعقايدو اصلاح او تحفظ راځي او دا دانبياوو کارو، انبياوو به دعقايدو اصلاح کوله او بيا به يې تحفظ هم کولو الله تعالى د ابراهيم عليه السلام مناظرې رانقل کړي دي (اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِىْ حَآجَّ اِبْرٰهٖمَ فِىْ رَبِّهٖٓ اَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّىَ الَّذِىْ يُحْىٖ وَ يُمِيْتُ قَالَ اَنَا اُحْىٖ وَ اُمِيْتُ قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِىْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِىْ كَفَرَ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ).

۲-الله تعالى فرمايي چې: اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ.

علامه نسفي رحمه الله دې ايت په تشريح کې فرمايي چې: هو رد على من يأبى المناظرة فى الدين دا په هغه چارد دی چې په دين کې دمناظرې څخه انکار کوي (تفسير نسفى تحت هذه الاية)

۳- الله تعالى فرمايي: (وَ جَادِلْهُمْ بِالَّتِىْ هِىَ اَحْسَنُ) مدارک دجادلهم معنى په ناظرهم سره کړې ده، يعنې دمعاندينو سره د اخلاقو په دايره کې مناظره وکړه، دمناظرې حکم يې په اخر کې ورکړو، پدې کې دې خبرې ته اشاره ده چې داظهار دحق او حق ته د يو کس د راړولو اخري حربه مناظره ده لکه د مريض اخري علاج چې أپريشن وي، دنن سبا په بعضو مناظرو کې کله مقابل طرف ته حق په نصيب شي لکن أکثر داسې وي چې هر مناظر پخپل ضد ټينګ وي، نو که مقابل طرف ته حق په نصيب نه شي بيا هم اقلاً دخپلو ملګرو دعقايدو حفاظت خو ورباندې کيږي.

۴- د(قل هاتو برهانکم) په تشريح کې علامه قرطبي دمناظرې داثبات لپاره ډير بحث کړی دی، همدارنګه د (وَ مِنَ الْاِبِلِ اثْنَيْنِ وَ مِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ) لاندې ليکي چې فدلت الايت على اثبات المناظرة فى العلم لان الله امر النبى صلى الله عليه وسلم ان يناظرهم.

۵-صاحب د کشف الظنون فرمايي چې علم المناظره دفروعو د اصول فقه څخه ده.

۶-په شرح الزرقاني ج ۳ صـ ۲۸۶ کې فرمايي چې: ان المناظرة وطلب الدليل ودفع الحجة كان قديما فى زمن الصحابة ولا ينكره الا جاهل.

۷- امام غزالي رحمه الله فرمايي مناظره كله واجبه وي، (مستصفى ج ١صـ ٣٥٨) لكن نن سبا د دين د دفاع صرف يو صورت دى چې مناظره ده.

۸- رسول الله صلى الله عليه وسلم دنصاراوو دنجران سره مناظره وكړه (ابن كثير دقل تعالو ندع ابناءنا وابناءكم په تشريح كې فرمايي: دعا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفد نجران من النصارى بعد قيام الحجة عليهم فى المناظرة وعتوهم وعنادهم الى المباهلة.

رسول الله صلى الله عليه وسلم اول د نصاراوو د نجران سره مناظره وكړه كله چې اظهار دحق وشو او نصاراوو دنجران ونه منلو بلكې سركشي او عناد يې وكړو نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم دمباهلې دعوت وركړو. نو پدې سره دهغو خلكو اعتراض هم دفع شو چې وايي چې په مناظره كې مقابل نه قانع كيږي نو فائده پكې نشته، گوره رسول الله صلى الله عليه وسلم د نصارا وو دنجران سره مناظره كړې دى اگر چې قانع شوي ندي، دمناظرې غايه خو دمقابل قانع كول ندي بلكې غايه يې اظهار دصواب دى، ابراهيم عليه السلام دنمرود سره مناظره وكړه، لكن هغه ددې پر ځاى چې قناعت وكړي نور هم سركشه شو، ابراهيم عليه السلام يې اورته وغورزولو.

## مناظره او علم المناظره

پدې خبره ځان پوه كړئ! چې يو علم المناظره ده چې علم الجدل او علـم البحـث هم ورتـه ويلى شي، او بله مناظره ده.

## علم المناظره

دعلم المناظرې تعريف علماء داسې كوي چې: هو علم يعرف به كيفية أداب إثبات المطلوب، أو نفيه، أو نفى دليله مع الخصم الباحث عن كيفية البحث.

علم المناظره هغه علم دى چې پدې سره د مدعاء او مطلوب داثبات (چې كله مدعي وي) او يا (چې كله سائل وي) دمقابل طرف د مدعى او مطلوب دنفې او يا د مقابل طرف ددليل دنفې كيفيت پرې پيژندلى شي، دداسې مد مقابل سره چې دكوم بحث د صحيح والي يا غير صحيح والي په باره كې بحث كوي، نو علم المناظره مدعي ته د مطلوب د اثبات كيفيت ورپيژني او مدعي عليه ته (۱) دمدعي د مطلوب د نفى كيفيت (۲) او دمدعي د دليل د نفى كيفيت ورپيژني، بحث كله مسموع وي چې متخاصمين په ظاهري كلام سره بحث كوي او كله غير مسموع وي چې دقلبي صفايى او كاملې توجه په وجه يو دبل د زړه خبره معلومه كړي او باطني بحث ورسره وكړي لكه اشراقينو به چې د يو بل سره

مناظرې کولې.

أوموضوع يې داسې بيانوي چې: هو الأدلة من حيث أنها تثبت المدعى على الغير، يعني ادله په دې حيثيت سره چې دعوىٰ په غير باندې ثابتوي، نو دلته د دلائلو د استعمال طريقه ښودلى كيږي او په اصول فقه كې د ادله وو څخه بحث كيږي.

اوغرض دعلم المناظرې داسې بيانوي چې: صيانة الذهن عن الخطاء فى الوصول الى المطلوب. يعنې نتيجې او دعوې ته په رسيدلو كې دذهن ساتل دي دخطائي څخه.

**مناظره:** دمناظرې دبيان لپاره بهلاندې امور ذكر كړو.

(۱)اول: دمناظرې لغوي معنى.

(۲)دوهم: دمناظرې اصطلاحي معنى.

(۳)دريم: دمناظرې اركان.

(۴)اوڅلورم دمناظرې أجزاء.

## لغوي معني

مناظره (۱)يا مأخوذ ده له نظير څخه (اومناظرې ته ځکه مناظره وائي چې په مناظره کې به هم دواړه مناظره کونکي په علميت کې سره برابر وي، (داسې به نه وي چه يو شيخ الحديث وي او بل د دوهمې درجې طالب وي) امام شافعي رحمه الله فرمايي چې (كلما ناظرت عالماً أبهته وكلما ناظرنى جاهل أبهتنى ) ما چې كله دعالم سره مناظره كړې ده نو هغه مې حيران كړى دى او كله چې جاهل را سره مناظره كړې ده نو زه يې حيران كړى يم.او دا مساوات او برابر والى به تقريبي وي مثلاً دواړه به فارغ التحصيل علماء وي او يا به دواړه ديوې درجې طالبان وي.

فانقيل: نظير صفت مشبه دى او مناظره مصدر دمفاعلې دى دمزيدو څخه ،نو مزيد څرنګه دمجردو څخه مشتق دى؟

قلنا: د دواړو مأخذ الاشتقاق (ن، ظ، ر) يو دى نو داتحاد دمأخذ الاشتقاق له وجې ورته مشتق وويلى شو.

(۲)اويا مأخوذه ده له نظر څخه، نظر يا يا په معنى دابصار سره دى او پدې معنى مناظرې ته ځکه

مناظره وائي چې، مناظره کوونکي هم غالبًايو بل ته مخامخ ګوري او يا په معنی دتأمل سره دی او مناظرې ته په دې معنی ځکه مناظره وائي چې مناظره کوونکي هم تأمل کوي په خپله خبره او دخصم په خبره کې او يا نظر په معنی د مقابلې سره دی.

(۳) اويا مأخوذ ده له انتظار څخه، او په دې معنی مناظرې ته ځکه مناظره وايي چې مناظره کونکي يو دبل دخبرو ختميدلو ته انتظار کوي او دهغه دخبرو په منځ کې خبرې نه کوي.

## اصطلاحي معنی

علماء دمناظرې اصطلاحي تعريف داسې کوي چې: هي توجه المتخاصمين في النسبة بين الشيئين لاظهار الصواب) دصحيح خبرې د ثابتولو لپاره ددوو شيانو په مابين کې د نسبت (نفيا يا اثباتا) د ثابتولو په باره کې ددوو مقابله کونکو يو بل ته متوجه کيدل.

نو متخاصمين علة فاعلي دی او النسبة بين الشئين علة مادي دی، اوتوجه المتخاصمين علة صوري دی او اظهار الصواب علت غائي دی، دنسبة څخه مراد نسبت تام خبري دی، په نسبت انشائي او نسبت ناقص کې مناظره نه کيږي، د نسبت تام خبري لپاره مثال التقليد واجب، د (التقليد) او د (واجب) په ما بين کې چې کوم نسبت دی هغې ته دوه مقابله کونکي (مقلد او غير مقلد) متوجه دي، مقلد يې ثابتوي او غير مقلد يې نفی کوي.

فائده: مخکې ذکر شو چې بعضې خلک اعتراض کوي چې په مناظره کې اکثر مخالف نه قانع کيږي، لهذا مناظرې عبث دي.

جواب: دادی چې دمناظرې فايده اظهار د حق دی مقابل قانع کيږي او که نه، ابراهيم عليه السلام مناظرې کړې دي خو مقابل يې ندی قانع کړی صرف اظهار دحق يې کړی دی، نو ايا دابراهيم عليه السلام په باره کې داسې ويلی شئ چې ابراهيم عليه السلام په مناظرې سره مقابل قانع نه کړو لهذا عبث کار يې کړی دی؟ معاذ الله.

امام ابو حنيفه رحمه الله مناظرې کړې دي مقابل يې اکثر ندی قانع شوی، صرف اِظهار د حق يې کړی دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم د نصاراوو دنجران سره مناظره وکړه لکن هغوی قانع نه شول نو ايا د دوی په باره کې داسې ويلی شي چې عبث کار يې کړی وو؟ حکم دمناظرې دادی چې (ا لمناظرة فی

العلم لنصرة الحق عبادةٌ ، رد المحتار،کتاب الحظر والاباحة، وسيأتى التفصيل).

والمجادلة: هي المنازعة لا لإظهار الصواب بل لإلزام الخصم، په مجادله کې مقصود دخصم دخولې بندول وي.

دا تعريف په اصطلاح دمناظرينو کې دی او په قرآن کې مجادله په معنی دمطلق منازعې سره هم راغلی ده، لکه الله تعالی فرمايي چې وجادلهم باللتي هی احسن الايه او دهغوي سره په ښه طريقه باندې مباحثه وکړه.

حکم دمجادلې دادی چې که مقصود دمقابل تذليل وي فقط نو بيا حرامه ده او که مقصود دضدي اوباطل پرست خصم دخولې بندول وي نو بيا مستحسنه ده.

والمكابرة: هي المنازعة لا لاظهار الصواب ولا لالزا م الخصم (بل لاظهار علمه...)

حکم دمکابرې دادی چې دا په هر صوت کې حرامه ده .

## اركـان المناظـرة

وهي اربعة: ١- مدعي ٢- مدعى عليه ٣- دعوى ٤- دلائل.

تعريف الدعوى: هي قضية مشتملة على الحكم (النظرى اوالبديهى الخفى) دعوا هغې قضيې ته وايي چې په هغې کې دموجود حکم ثابتول (اذا کان نظريا ) اويا ظاهرول (اذا کان بديها) مقصود وي ،که حکم نظري وو نو مقصود اثبات ددې حکم وي په دليل سره او که حکم بديهي خفي وو نو مقصود اظهار ددې حکم وي په تنبيه سره ، دعوی ته مسئله ، مبحث ، قاعده، خبر، مقدمه او نتيجه هم وايي ، له دې حيثيت څخه چې سوال پرې واردېږي مسئله ورته وايي او له دې حيثيت څخه چې دا دبحث موضوع ده مبحث ورته وايي او له دې حيثيت څخه چې دعوه کله قضيه کليه وي قاعده او قانون ورته وايي او له دې حيثيت څخه چې احتمال د صدق او کذب پکې دی خبر ورته وايي او کله له دليل څخه جزء وي نو مقدمه ورته وايي او له دې حيثيت څخه چې په دليل ثابتولی شي نتيجه ورته وايي.

## په دعوه کې حکم لګول ضروري دي

مدعي که په دعوه کې حکم ونه لګوي نو څه شی به ثابتوي؟ نو که مناظره په احکامو شرعيه و کې وه نو حکم شرعي به لګوي نه حکم منطقي ، احکام شرعيه: فرض، واجب، سنت ، مستحب، مباح، حرام،

مکروه وغیره دي او دا حکم کله اثباتا وي لکه غیر مقلدین چې وایي: (قرائت الفاتحة خلف الامـام فرضٌ) او کله نفیاً وي لکه حنفي چې وایي چې: (قرائت الفاتحة خلف الامام لیس بفرضٍ)

## د لامذهبه وکټوري اهلحدیثو خط

د لامذهبو (وکټوري اهلحدیثو) په کتاب کې یوه دعوه وي، په بیان کې یې بله دعوه وي او په مناظره کې بله دعوه وي مثلا وکټوریان په کتابونو کې لیکي چې تقلید شرک دی، په بیانونو کې کله ورته شرک او کله بدعت او کله حرام وایي، لکن په مناظره کې چونکې دا احکام به دلایلو نه شي ثابتولی نو بیا ورته شرک بدعت یا حرام نه وایي، بلکې حکم منطقي ذکر کوي چې: تقلید نه دی ثابت نو د تقلید په مسئله کې که غیر مقلد په دعوه کې ولیکل چې په اجتهادي مسایلو کې دغیر مجتهد لپاره د مجتهد تقلید حرام دی نو دا دعوه یې مکمله شوه، ځکه چې حرمت حکم شرعي دی، او که ئي ولیکل چې تقلید نشته یا ثابت نه دی، نو دا دعوه یې مکمله نه شوه ځکه چې مناظره په احکامو شرعیه وو کې ده او ده حکم شرعي ونه لګولو بلکه حکم منطقي یې ولګولو.

همدارنګه وکټوریې اهل حدیث په کتابونو کې لیکي چې رفع الدین عند الرکوع سنت دی، لکن په مناظره کې شرک ته تیاریږي، لکن دسنت لیکلو ته نه تیاریږي، ځکه چې د رفع الدین عند الرکوع په سنتو والي ورسره هیڅ دلیل نه شته، دوي په ثبوت دلایل وایي او دثبوت او دسنت په مابین کې عموم او خصوص مطلق دی هر سنت ثابت دی، لکن هر ثابت سنت ندی، لکه بول قائما چې دصحیح بخاري په حدیث ثابت دي لکن سنت ندي.

مولانا محمد امین صفدر رحمه الله فرمایي چې: زمونږ سکول ته یو بریلوي عالم راغلو او زمونږ پرنسپل ته یې وویلې تا دا ګمراه ولې په سکول کې استاذ کړی دی؟ نو فرمایي چې زه هغه پرنسپل را ووغوښتم راته یې وویلې دا مولوي صاحب وایي چې محمد امین صفدر ګمراه دی، نو ما ورته وویل چې ولې؟ هغه بریلوي راته وویل چې ته درود شریف نه منې؟ نو ما ورته ویل چې کوم درود شریف یادوې؟ هغه راته وویل چې د أذان څخه مخکې، نو ما ورته ویل چې ددې درود حکم څه دی؟ فرض دی که واجب دی او که سنت دی؟ نو خاموش شو ځکه چې که پدې احکامو کې یې کوم حکم ذکر کړی وی نو هغه به یې په شرعي دلیل سره ثابتولو، نو د ډیر اصرار څخه وروسته یې وویلې، چې مباح دی، نو ما

ورته وويلې چې مباح خو دېته وايي چې نه پکې ثواب وي او نه عقاب، نو دېولو څخه غټ گستاخ خو ته يې چې په درود شريف کې ثواب نه منې.

تعريف المدعي: چې معلل او مستدل هم ورته وايي ځکه چې مدعي که دليل اِني پيش کړو مستدل ورته وايي لکه دخان چې دليل په نار شي او که دليل لمي يې پيش کړو نو معلل ورته وايي، لکه نار چې دليل په دخان شي، په محسوساتو کې مدعا عليه هغه چاته ويل کيږي دچا په لاس کې چې متنازع فيه شی وي يعنې قابض ته مدعى عليه ويل کيږي نو مقابل طرف يې مدعي شو، لکن په مسائلو کې علماوو دمدعي لپاره ډېر تعريفات ذکر کړي دي مثلا:

١-من نصب نفسه لاثبات الحكم بالدليل العقلي او النقلي(اذا كان الحكم نظريا مجهولاً) او التنبيه(اذا كان بديهياً) المراد البديهي الخفي ويقال له البديهي الغير الاولى).په بديهياتو اوليه وو کې مناظره نه وي بلکې مکابره او مجادله وي، ځکه چې په بديهياتو اوليه وو باندې په علم راوستلو کې عقل واسطې ته نه وي محتاج او په بديهياتو خفيه وو کې محتاج وي لکه: فطريات، مجربات او مشاهدات، همدارنگه نظري معلوم هم دليل ته نوي محتاج.

يعنې مدعي هغه چاته وايي چې د حکم د ثابتولو ذمه واري يې اخستې وي اثباتا وي لکه غير مقلد چې ووايي:(القرائة خلف الامام فرض)يا نفيا وي لکه حنفي چې ووايي:(القرائت خلف الامام ليس بفرضٍ).

٢- من اذا تَرَک تُرِک (يعني مدعِي هغه څوک دی چې که خپله خبره پريږدي نو مدعا عليه دده سره کار نه لري بلکې مسئله به ختميږي مثلاً که غير مقلد رفع اليدين پريږدي نو مسئله به ختمه شي نو دلته غير مقلد مدعي شو، که د مدعي په ترک الدعوې سره نزاع ختميدله نو بيا دا من کل وجهٍ مدعي دی او که دمدعي په ترک الدعوې سره نزاع نه ختميدله نو بيا هر فريق من وجهٍ مدعي او من وجه مدعا عليه دی لکه په مسئله د تقليد کې که غير مقلد خپله دعوا پريږدي چې (التقيد شرک) دی نو بيا هم نزاع نه ختميږي ځکه چې بيا (التقليد واجبٌ) متنازع فيه دی.

٣ـ المدعي من يثبت آمراً زائداً .... لکه: آمين بالجهر، يا قراءة خلف الامام : يا رفع اليدين، دا درې واړه آمور زائده دي او غير مقلدين يې اثبات کوي، نو دلته هم غير مقلد مدعي دی.

٤ المدعِيْ من يخالفَ الظاهر. لکه د درې طلاقو په مسئله کې غير مقلد مدعي دی، ځکه چې

ظاهره داده چې درې درې وي او غیر مقلد د ظاهر په خلاف دریو ته یو وایي، همدارنګه په برصغیر کې په دې تقریبا څوارلس سوه کلن تاریخ داسلام کې په اربو نو اربونو مسلمانانو، محدثینو، فقهاوو، مجاهدینو، حاجیانو رفع الیدین عند الرکوع نه دي کړي او اوس یې هم نه کوي، نو ظاهر ترک درفع الیدین شو نو اوس که څوک رفع الیدین کوي نو دا به دظاهر څخه مخالف وي او درفع الیدین په مناظره کې به همدا دمدعي حیثیت لري.

**فائده**

مدعي خپله دعوه بیانوي ،لهذا اول تقریر به مدعي کوي او چونکې داثبات دحکم ذمه داري په مدعي ده لهذا په اخر کې به هم مدعي تقریر کوي چې ماخپله ذمه داري پوره کړه، لکن داسې خبره به نه کوي چې سائل ته یې جواب ورکول ضروري وي، او دروغ به هم نه وایي، کله غیر مقلد مدعي وي هیڅ دلیل یې هم نه وي ذکر کړی خو دمناظرې په اخر کې وایي چې ماخپله دعوا ثابته کړه که دروغ یې وویلې سایل به تنبیه ورکوي.

تعریف المدعا علیه: ویقال له السائل والنافي: هو من نصب نفسه لنفي الحکم :مثلاً غیر مقلد ووائي چې تقلید شرک دی او مقلد ووائي چې شرک ندی نو مقلد نفی د حکم کوي او وایي چې شرک نه دی، نو دلته مقلد ته مدعا علیه ویل کیږي.

اوکه مقلد ووایي چې تقلید واجب دی، اوغیرمقلد ووایي چې واجب نه دی، نو دلته غیرمقلد نفې دحکم کوي، نو غیرمقلد مدعا علیه دی،نو دتقلید په مسئله کې من وجهٍ مقلد مدعي دی، اومن وجهٍ غیرمقلد مدعي دی.

فانقیل: دمدعي مقابل کله مناقض وي کله مانع وي او کله معارض وي او نفی دحکم دمدعي یو ائې مناقض کوي مانع خو دمدعي په یوه معینه مقدمه باندې دلیل طلبوي او معارض دمدعي ددلیل په خلاف دلیل پیش کوي؟

قلنا: مراد دنفی دحکم څخه (التکلم علی خلاف ماتکلم به المدعي) دی بیا مناقض وي او که مانع وي او که معارض وي.

د مدعي په اول تعریف کې ددلیل نقلي ذکر وشو لهذا په مناظره کې د نقل پیژندل ضروري دي.

النقل: الاتيان بقول الغير بحيث لايتغير معناه مع اظهار أنه قول الغير صريحا أو ضمنا أو كنايةً أو اشارةً مثلا اهل سنت ووايي چې: امام طحاوي رحمه الله فرمايلي دي چې د نارينه وو لپاره په لمانځه کې په سينه باندې لاسونه کيښودل د يهودو سره مشابهت دی(احکام القران للطحاوي، تحت قوله تعالى فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ۝) نو دا اوس نقل دی.

و اما الاتيان به على وجهٍ لايظهر منه أنه قول الغير لاصريحاًولا ضمناًولاكنايةً ولا اشارةً فهو اقتباس) مثلا اهل سنت مناظر په امام طحاوي حواله ورنکړي او ووايي چې د نارينه وو لپاره په لمانځه کې په سينه باندې لاسونه کيښودل د يهودو سره مشابهت دی، څوک چې نقل کوي هغه ته ناقل وايي، په ناقل باندې دمنقولې خبرې دليل نه وي او مقتبس مدعي وي هغه به دليل پيش کوي.

**تصحيح النقل**: که خصم ته ددې قول صحة معلوم وو چې دا دهغه غير قول دی، نو بيا حوالې غوښتلو ته ضرورت نشته ځکه چې بيا حواله غوښتل مجادله او مکابره ده او که صحت ورته نه وو معلوم نو بيا حواله نه غوښتل هم مناظره نده بلکې مسامعه ده، يعنې بيا حواله غوښتل ضروري دی.

## دلائــل

دليل په دوه قسمه دی: اول تحقيقي دليل،وهو : مايلزم من العلم به العلم بشئ اخر۔ يا قول مؤلف من قضايا للتأدي الى مجهول په دليل تحقيقي کې داسې مقدمات وي چې مسلم عند المستدل وي که اهل سنت والجماعت د قرآن، سنت،اجماع او قياس څخه دليل پيش کړي دا دليل تحقيقي دی، وکتهوري اهلحديث که په دليل کې صريح ايت يا صريح حديث پيش کړي نو دا دليل تحقيقي دی او که غير مقلد په دليل کې صريح ايت يا صريح حديث پيش نکړو ، نو دا به دليل تحقيقي نه وي، غير مقلدين اکثر په دليل کې د شوکاني ، دابن القيم او ابن تيميه اقوال پيش کوي.

دوهم الزامي دليل:

په دليل الزامي کې داسې مقدمات پيش کولی شي چې مسلّم عند الخصم وي، په دليل الزامي باندې دعوی نه ثابتيږي، صرف خصم پرې ملا متيږي.

يو دريم قسم دليل هم شته چې دليل استثنائي ورته وايي: وهو الانتقال من دليل الى دليل اخر اوضح،

مثلا چې خصم ته دليل پيش کړی شي لکن هغه په دليل پوه نه شي نو مستدل بل دليل ته انتقال وکړي لکه ابراهيم عليه السلام چې نمرود ته اول يو دليل پيش کړو چې: (رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ) نمرود په دې دليل پوه نه شو وې ويل چې (أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ) نو ابراهيم عليه السلام بل او ضح دليل ته انتقال وکړو چې: فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ.

**۱-التقريب:** تقريب په دوه قسمه دي: ۱-تام ۲-غير تام.

تقريب تام عبارت دی د (سوق الدليل بحيث يستلزم المطلوب) څخه،يعنې چې دليل مستلزم مطلوب لره وي، يعنې دليل په داسې انداز باندې پيش کړی شي چې مطلوب ترينه لازما حاصل شي، مثلا اهل سنت والجماعت فرمايي چې ۱- په اجتهادي مسايلو کې ۲- دغير مجتهد لپاره ۳- دمجتهد دخبرې منل ۴- واجب دي. دليل دا ايت کريمه دی چې: (أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ) أَطِيعُوا اللَّهَ دالله خبره ومنئ د الله خبره قران دی، يعنې قرآن ومنئ (وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ) دمصطفی صلی الله عليه وسلم خبره ومنئ، دمصطفی خبره احاديث دي يعنې أحاديث ومنئ (وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ) دفقهاوو خبره ومنئ، دفقهاوو خبره فقه او اجتهاديات دي، يعنې دمجتهد اجتهاديات ومنئ، او أمر د وجوب لپاره وي نو دمجتهد داجتهادياتو منل واجب شو ، نو زمونږ دعوا مکمله ثابته شوه،لهذا دا تقريب تام دی.

او تقريب غير تام ديته وايي چې دليل مستلزم مطلوب لره نه وي يعنې دليل په داسې انداز باندې پيش کړی شي چې مطلوب ترينه نه حاصليږي، مثلا غير مقلدين وايي چې دمقتدي لپاره قرائت خلف الامام واجب دی او په دليل کې حديث پيش کوي چې (لاصلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب)حالانکې دا تقريب تام ندی، ځکه چې دا حديث د مقتدي په باره کې نه دی ، بلکې حضرت جابر، حضرت عبد الله بن عمر، سفيان بن عيينه ، امام احمد وغيره فرمايي چې دا حديث دمنفرد په باره کې دی ، همدارنګه غير مقلدين وايي چې د رکوع په رفع اليدين کې لس نيکۍ دي او په دليل کې دعقبة بن عامر رضی الله عنه قول پيش کوي چې : له بکل اشارة عشر حسنات، حالانکې دا تقريب تام ندی ، ځکه چې دعقبه بن عامر رضی الله عنه قول د تکبير تحريمه د رفع اليدين په باره کې دی، وګوره زاد المسلم، فيما اتفق عليه البخاري ومسلم رقم ۱۱۴۶)

همدارنګه غير مقلدين د تقليد په خلاف يو ايت وايي چې: (وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا)، حالانکې دا تقريب تام ندی.۱- ځکه چې تقليد په اجتهادياتو کې کيږي او په دې ايت

کې په عقايدو باطله وو او دمنصوصاتو په مقابله کې د تقليد ذکر دی.۲- همدارنګه تقليد دمجتهد کيږي او په دې ايت کې د کافرانو تقليد کيدل ذکر شوي دي.۳- همدارنګه تقليد مسلمان غير مجتهد کوي او پدې ايت کې د کافرانو تقليد کول ذکر شوي دي، همدارنګه غير مقلدين وايي چې تراويح اته رکعته دي او په دليل کې دحضرت عائشې رضی الله عنه حديث پيش کوي چې: ما زاد رسول الله صلی الله عليه وسلم فی رمضان ولا فی غيره علی احدی عشرة رکعة الخ حالانکې دا تقريب تام ندی، ځکه چې دا حديث د تراويحو په باره کې ندی، بلکې دتهجدو په باره کې دی.

**۲-التعليل:** (تبيين علت الشئ) ديو شي علت بيانول، (په فن دمناظرې کښې ددعوې علت بيانيږي).

**۳-العلت:** علت ديته وايي چې معلول ورته په ماهيت اويا وجود کښې محتاج وي که په دواړو کښې محتاج وو، نو بيا ورته علت تامه وايي، لکه لمونځ چې په ماهيت کښې قيام، رکوع او سجدې ته محتاجه دی (ويسمی رکناً) چې محتاج اليه په محتاج کې داخل وي، او لمونځ په وجود کښې مصلي (لمونځ کونکی) ته محتاج دی. نو قيام، رکوع، سجده او مصلي مجموعې ته علت تام وايي.

**۴-الملازمه والتلازم والاستلزام فی اصطلاحهم بمعنیً واحدٍ:** (وهو کون الحکم مقتضيا لحکم آخر بان يکون اذاوجد المقتضي وجد المقتضی) لکه طلوع الشمس چې مقتضي د وجود النهار دی، نو طلوع الشمس ملزوم او وجود النهار ورسره لازم دی کله په دې ملازمه منعه واردیږي.

**۵-المقدمة:** مدارصحة الدليل، يعنی هغه شی چې مدار دَصحت دليل وي صحت ددليل لپاره مدار وي، يعنې دده ځنځه بغير دليل نه وي صحيح بيا عام ددې ځنځه چې ددليل ځنځه جزوي او که نه؟ مثلا زمونږ په مذهب نفل بعد الشروع لازميږي او قضاءيې لازمه ده د امام شافعي رحمه الله په مذهب يې قضاء نده لازمه، امام شافعي رحمه الله په دليل کې حديث پيش کوي چې (الصايم المتطوع أمير نفسه ان شاء صام وان شاء افطر) لکن دا تقريب تام ندی، ځکه چې پدې کې نفې دقضاء نشته دا استدلال به هلته صحيح شي چې پدې حديث کې (وليس عليه قضاء) راشي، نو ليس عليه قضاء مدار دصحة الدليل دی.

## الاسولة الواردة على دليل المعلل

سايل دمدعي په دليل درې قسمه اعتراضونه کوي: نقض، منعه او معارضه:

(۱) النقض: ابطال الدليل بعد تمامه.

نقض په دوه قسمه دی:

**اول نقض اجمالي:** چې خصم مدعي ته ووايي چې ستا دليل بجميع مقدماته جاري کيږي په دې بله ماده کې هم او مدعا دې ترېنه متخلفه ده. مثلاً که غير مقلد ووايي چې د رکوع رفع اليدين په حديث ثابت دي (صغرى) او هر شي چې په حديث ثابت وي هغه سنت مؤکده وي، (کبرى) نو د رکوع رفع اليدين سنت مؤکده شو، (نتيجه) نو په دې باندې نقض اجمالي داسې وارديږي چې ستا دليل بجميع مقدماته جاري کيږي په (بول قائما) کې هم، همدارنګه بيت المقدس ته په مونځ کولو کې هم، همدارنګه دسجدو په رفع اليدين کې هم، ځکه چې په حديث د سجدو رفع اليدين بول قائمـا او اسـتقبال بيت المقدس ته ثابت دي او مدعا دې ترېنه متخلفه ده ځکه چې سنت مؤکد نه ورته وايي، يا مثلاً غير مقلد ووايي چې مجتهد ته ضرورت نشته، ځکه چې الله تعالى او رسول شته د واپيانو تعبير داسې وي چې الله تعالى او رسول کافي دی نو امام صاحب ته څه ضرروت دی؟ نو نقض اجمالي دادی چې الله تعالى او رسول الله صلى الله عليه وسلم کافي دی، نو هرې چند هندو ته څه ضرورت دی؟ تاسو خو دهغه د (الظفـر المبـين) په نوم کتاب ګورئ او دهغې څخه په فقه اعتراضات رانقلوئ، همدارنګه ستاسو ملايانو ته څه ضرورت دی؟ تاسو خو دخپلو ملايانو بيانونه اورئ او دهغوي کتابونه ګورئ، نو دسجدو په رفع اليدين وغيره کې تخلف المدلول عن الدليل راغلو، دنقض لپاره شاهد ضروري دی دشاهد څخه بغير نقض ته اعتبار نشته، دشاهد تعريف وروسته راروان دی.

خلاصه دا چې په نقض اجمالي کې خصم مستدِل ته وايي چې پدې ځای کې دليل شته او مدلول نشته اسانه مثال دا چې مستدِل ووايي چې هذا انسان لانه حيوان (دعوى) (دليل) نو خصم ورته ووايي چې دا دليل صحيح نه دی ځکه چې په فرس کې دليل شته لانه حيوان او مدلول نشته لانه ليس بانسان.

**دوهم نقض تفصيلي:** دې ته وايي چې خصم دمستدِل په يوه معينه مقدمه باندې اعتراض وکړي، يعنې په قياس اقتراني کې په ۱- صغرى اعتراض وکړي ۲- په کبرى اعتراض وکړي او په قياس استثنائي کې ۳- په وضع دمقدم اعتراض وکړي ۴- يا په رفع د تالي اعتراض وکړي ۵- يا په ملازمې اعتراض وکړي.

مثلاً په مذکور صورت کې ورته ووايي چې زه ستا صغرى نه منم، ځکه چې ستا مکمل رفع اليدين په هيڅ صحيح (غير متعارض) حديث کې نه دي ثابت او يا يې په کبرى رد وکړي مثلاً په مذکور صورت کې ورته ووايي چې زه دا نه منم چې هر شي چې په حديث ثابت وي هغه سنت وي، ځکه چې دثبوت او دسنت په منځ کې فرق دی، مثلاً د سجدو رفع اليدين، بول قائما، دبيت المقدس طرف ته لمونځ، نهه بيبياني،

كان يطوف على نسائه بغسل واحد، كان يصلي في ثوب واحد وغيره ثابت دي لكن سنت نه دي، همدارنګه دتقليد په اعتراض کې ورته ووايي چې الله تعالى او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته خو منصوصات يعنې دين منسوبيږي او اجتهاديات اولى الأمر يعنې مجتهدينو ته منسوبيږي، نو امام صاحب ته په اجتهادياتو کې ضرورت دی.

**الشاهد:** مايدل على فساد الدليل للتخلف اولاستلزامه محالا، يعنې دمدعي ددليل څخه وروسته چې مدعا عليه ورته ووايي چې ستا د دليل څخه تخلف المدلول عن الدليل راځي او يا دا تخلف ثابت کړي چې ګوره هرثابت سنت نه دی مثلاً (بول قائما) په حديث کې شته او سنت ندي، نو په (بول قائما) کې تخلف المدلول عن الدليل راغلو، د سجدو رفع اليدين په حديث کې شته او سنت نه دي نو د سجدو په رفع اليدين کې تخلف المدلول عن الدليل راغلو، نو په کوم شي يې چې دا تخلف ثابت کړو هغې ته شاهد وايي، يا ورته ووايي چې ستا دليل که ومنلی شي نو د مدلول د تحقق په صورت کې محال راځي او يا يې ثابت کړي، مثلا ورته ووايي چې ګوره که هرثابت في الحديث سنت شي نو اجماع د صحابه وو به راشي په ترک دسنتو او داعادةً محال دی، ځکه چې صحابه وو بول قائماً نه کول د بيت المقدس طرفته يې لمونځ نه کولو، حالانکې په حديث کې بول قائما او استقبال الى بيت المقدس ته ثابت دي نو دېته شاهد وايي.

(۲)المنع: (طلب الدليل على مقدمة معينـةٍ) يعنې سايل ووايي چې ۱-لانسلم الصغرى، صغرى په دليل ثابته کړه. ۲- يا لانسلم الكبرى، كبرى په دليل ثابته کړه دا په قياس اقتراني کې ۳- يا لانسلم وضع المقدم د وضع المقدم لپاره دليل پيش کړه ۴- يا لانسلم رفع التالى، د رفع التالى لپاره دليل پيش کړه. ۵- يا لانسلم الملازمة د ملازمې لپاره دليل پيش کړه دا په قياس استثنائي کې.

مثلاً په مذکور صورت کې ورته ووايي چې زه صغرى نه منم، پخپل مکمل رفع اليدين دليل پيش کړه او يا کبرى نه منم دليل پيش کړه چې هر شی چې په حديث کې ثابت وي هغه سنت وي، اوّ منعې ته کله مناقضه او نقض تفصيلي هم ويلى شي.

منع په دوه قسمه ده اول: منعه مقرونه بالسند، دوهم منعه عاريه عن السند: مثلا په مذکور مثال کې ورته ووايي چې لانسلم الكبرى سند يې دادی چې ګوره بول قائما او دسجدو رفع اليدين په حديث کې ثابت دي او سنت ندي، که منعه مقرونه بالسند وه نو مدعي به يا ابطال السند کوي او يا به اثبات دمقدمې ممنوعې کوي، يعنې ۱- يا به صغرى ثابتوي ۲- يا به کبرى ثابتوي ۳- يا به وضع د مقدم ثابتوي ۴- يا به

رفع دتالي ثابتوې ۵- يا به ملازمه ثابتوې ۶- او يا به د سايل سند باطلوي او په منعه عاريه عن السند کې به مدعي اثبات دمقدمې ممنوعې کوې مثلاً په مذکور مثال کې ورته صرف دومره ووايي چې زه کبرئ نه منم چې هرشی چې په حديث ثابت وي هغه سنت دی، نو دا منع عاريه عن السند ده دلته به مدعي اثبات دمقدمې ممنوعې کوي دا به ثابتوې چې هر شی چې په حديث ثابت وي هغه سنت وي.

په کومه مقدمه چې منعه وارده شوې وي صغرئ وي او که کبرئ نو هغې ته مقدمه ممنوعه وايي او مقوّی دمنعې ته سند وايي، دسند علامه داده چې دلانسلم څخه وروسته -لم لا يجوز؟ يا لم لا يکون؟ او - وکيف لا؟ راشي سايل چې کله په مقدمه ممنوعه باندې منعه وارده کړي او ووايي چې: لانسلم مونږ دا نه منو - نو دا منعه شوه او بيا ددې څخه وروسته سند ذکر کوي، لکن دسند څخه مخکې يوه داسې کلمه ذکر کوي چې دهغې څخه معلوميږي چې دا سند دی، هغه کلمه کله -لم لا يجوز وي کله لم لا يکون وي او کله وکيف لا وي.

خلاصه دا چې يو منع ده، دوهم علامه دسند ده، دريم سند دی، لکه لانسلم الکبرئ، لم لايجوز ان يکون منسوخا پدې کې لانسلم الکبرئ منعه ده، لم لايجوز، علامه د سند ده، او ان يکون منسوخا سند د منعې ده.

بيا سند په دوه قسمه دی:۱- السند الصحيح ۲- السندالفاسد، سند صحيح ديته وايي چې دنقيض دمقدمې ممنوعې سره عين يا مساوي يا اخص او يا مباين وي، يعني مدعي يو دعوه وکړي خصم دده دعوې نفې وکړي او دخپلې نفې لپاره داسې سند پيش کړي چې دده د نفې سره عين وي يا مساوي وي يا أخص يا مباين وي.

نو صحيح سند په څلور قسمه دی ۱-عين ۲- مساوي ۳-أخص ۴- مباين.

۱-دعين لپاره مثال دادی چې معلِل ووايي چې (هذا انسان) سائل ورته وايي چې (لانسلم أنه انسان لم لايجوز ان يکون لا انسان) نو (هذا انسان) مقدمه ممنوعه ده -او(لا انسان) يې نقيض دی، او (لانسلم أنه انسان) منعه ده او (لم لايجوز أن يکون لا انسان) يې سند دی، نو په سند کې هم لا انسان دی چې عين دی دنقيض دمقدمې ممنوعې سره، يا غير مقلد ووايي -چې (رفع اليدين عندالرکوع سنةٌ) سائل ورته ووايي چې (لانسلم انه سنة لم لايجوز ان لايکون سنة) نو (رفع اليدين سنةٌ) مقدمه ممنوعه ده نقيض يې ليس بسنة دی او په سند کې هم لايکون سنةً دی چې د دواړو په مابين کې عينيت دی.

۲- دمقدمې ممنوعې دنقيض سره دمساوي سند مثال چې: مدعي ووايي چې (هذا انسانٌ) سايل ورته

وايي چې: (لانسلم انه انسان لم لايجوز أن يكون لاناطق نو(هذا نسان) مقدمه ممنوعه ده او (لانسلم انه انسان) منع ده او په (لم لايجوز انه لاناطق) كنبې (لاناطق سند) مساوي دی، ځكه چې دانسان نقيض (لا انسان) دی او (لاناطق) مساوي دی دلا انسان سره يا غير مقلد وايي چې (رفع اليدين عندالركوع دايم) سائل ورته وايي چې (لانسلم انه دايم لم لايجوز ان يكون متروكاً) نو رفع اليدين دايم مقدمه ممنوعه ده او - لانسلم انه دائم منعه ده - او په لم لايجوز انه متروک كنبې متروک سند مساوي دی، ځكه چې د دايم نقيض لا دايم دی او متروک مساوي دی دلادايم سره.

۳- دمقدمې ممنوعې د نقيض سره داخص سند مثال چې مدعی او معلل وايي چې : هذا انسان - سايل ورته وايي چې (لانسلم أنه أنسان لم لايجوز ان يكون فرساً) نو هذا انسان مقدمه ممنوعه ده او (لانسلم انه انسان) منعه ده - او فرس اخص سند دی ځكه چې دانسان نقيض لا انسان دی او فرس دلا انسان څخه اخص دی ځكه چې لا انسان فرس هم كيدلی شي او دفرس څخه علاوه حمار او بقر هم كيدلی شي. يا مثلاً غير مقلد وايي چې رفع اليدين عند الركوع سنة- سائل ورته وايي چې: لانسلم انه سنة لم لايجوز ان يكون منسوخاً، نو رفع اليدين عندالركوع سنةٌ مقدمه ممنوعه ده او منسوخ دنقيض دسنة څخه چې لاسنةٌ دی اخص دی، ځكه چې لاسنة منسوخ هم كيدلی شي. اود منسوخ څخه علاوه مكروه فرض او واجب وغيره هم كيدلی شي يا مثلاً غير مقلد وايي چې التقليد حرام ،سايل ورته وايي چې: (لانسلم انه حرام لم لايجوز ان يكون واجباً) نو (التقليد حرام) مقدمه ممنوعه ده نقيض يې ليس بحرام دی او واجب سند اخص دی.

۴- دمبائن سند مثال چې معلِل وايي چې (هذا ليس بانسان) او سائل ورته وايي چې (لانسلم أنه ليس با نسان لم لايجوز ان يكون فرسًا).

نو (هذا ليس بانسان) مقدمه ممنوعه ده او د (ليس بانسان) نقيض انسان دی او فرس ددې نقيض سره مبائن دی.

او سند فاسد دېته وايي چې دمقدمې ممنوعې دنقيض سره نه عين وي نه ورسره مساوي وی او نه ترينه اخص وي او نه ترينه مباين وي، بلکې دنقيض دمقدمې ممنوعې څخه اعم وي، بيا سند فاسد په دوه قسمه دی ۱- اعم مطلق ۲- اعم من وجهٍ

داعم مطلق لپاره مثال دادی چې معلّل ووايي مثلاً چې (هذا انسان) نو سائل ورته ووای چې (لانسلم أنه انسان لم لايجوز ان يكون غير ضاحک با لفعل) نو (هذا نسان) مقدمه ممنوعه ده نقيض يې (لا انسان) دی او (غير ضاحک بالفعل) چې سند دمنعې دی د (لا انسان) څخه اعم دی ځکه چې هر لا انسان غير ضاحک با لفعل دی ولاعکس کلياً، يا مثلاً مقلد ووايي چې . (رفع اليدين عند الركوع ليس بسنةٍ)، غير مقلد ورته ووای چې (لانسلم انه غير سنة لم لايجوز ان يكون ثابتاً).

نو (ليس بسنةٍ) مقدمه ممنوعه ده نقيض يې سنة دی او ثابت د سنة څخه اعم مطلق دی ځکه چې هر سنت ثابت دی ولا عکس کليّاً، لکه بول قائماً ثابت دی او سنت ندی، د سجدو رفع اليدين ثابت دی او سنت نه دی، نو داسند فاسد دی او دا عم من وجه لپاره مثال لکه معلِل ووايي چې: (هذا انسان) سائل ورته ووای چې: (لانسلم أنه انسان لم لايجوز ان يكون ابيض)، (نو هذا انسان) مقدمه ممنوه ده، نقيض يې ليس بانسان دی او د ابيض ليس بانسان سره عموم او خصوص من وجه دی (جدار ابيض) يې ماده اجتماعي ده بقرا اسود ليس بانسان دی او ابيض ندی او انسان ابيض، ابيض دی او ليس بانسان ندی يامثلا مقلد ووايي چې (رفع اليدين عندالركوع مكروهٌ) اوسايل غير مقلد ووايي چې (لانسلم أنه مكروه لم لايجوز ان يكون ثابتا) نو مكروه مقدمه ممنوعه ده نقيض يې ليس بمكروه دی او دليس بمكروه او د ثابت په مابين کې عموم او خصوص من وجه دی، درې مادې غواړي يوه ماده د اجتماع او دوه مادې د افتراق، د تكبير تحريمه سره (رفع اليدين ليس بمكروهٍ) هم دی او ثابت هم دی او درکوع او دسجدو رفع اليدين ثابت دی او ليس بمكروه ندی بلکې مكروه دی او مباحات ليس بمكروه دی او ثابت ندی.

تنبيه: ۱- په سند صحيح کې هم صرف سند مساوي او سند عين فايده مند دی، ځکه چې يو مقدمه ممنوعه ده، بل يې نقيض دی او دريم سند دی چې عين يا مساوي د نقيض دی، نو چې دريم يعنې سند مساوي د نقيض ثابت شي، نقيض به ثابت شي نو مقدمه ممنوعه به باطله شي او که سند باطل شي نو دده مساوي چې نقيض دی هم به باطل شي نو مقدمه ممنوعه به ثابته شي، نو استلزام فی الانتفاء يو اځې د تساوي او دعينيت په صورت کې راځي دأخص سند په صورت کې نه راځي او د مباين په صورت کې خو خبره بالكل معكوسه کيږي.

۲- دمدعي لپاره په سند کې بحث په هغه وخت کې فائده کوي چې سند مساوي وي، ځکه چې په ابطال د سند ابطال دنقيض دمقدمې ممنوعې راځي او چه نقيض دمقدمې ممنوعې باطل شی نو مقدمه ممنوعه به ثابته شي.

**(۳)المعارضه:** (اقامة الدليل على خلاف ما اقام الدليل عليه الخصم)

مدعي پخپله دعوه دليل پيش کړي، سائل دده ددعوې نفې وکړي او بيا په خپله نفې دليل پيش کړي، سائل ته پکار دی چې دمدعي د دليل څخه وروسته معارضه پيش کړي دمدعي د دليل څخه مخکې معارضه پيش کول غصب دی.

معارضه په دوه قسمه ده: ۱- معارضه فی المقدمه ۲- معارضه فی الحکم، مدعي چې دليل پيش کړي، نو که سائل دده د دليل دکومې مقدمې نفې وکړي او بيا په دې نفې دليل قائم کړي، دېته معارضه فی المقدمه وايي ،لکه غير مقلد وايي چې: رفع اليدين عند الركوع سنةٌ، لانه ثابت، وكل ما هو ثابت فهو سنةٌ فرفع اليدين عندالركوع سنةٌ، سايل ورته وايي چې:ليس كل ما هو ثابت فهو سنةً لان بعض الثابت كرفع اليدين فى السجود و كالبول قائما ليس بسنةٍ او مدعي چې دخپل دليل څخه کوم حکم راويستلی وي او سائل ددې حکم نفې وکړي او پخپله نفې دليل قائم کړي نو دېته معارضه فی الحکم وايي.

مثلا: غير مقلد وايي چې (رفع اليدين عند الركوع سنت دی) دا دعوه شوه (لثبوته فى الحديث) دا دليل شو، نو ته ورته وايه چې (رفع اليدين عند الركوع ليس بسنة) دا دعوه شوه (لثبوت تركه فى الحديث) دا دليل شو، يا مدعي وايي چې (هذا انسان) او خصم ورته وايي چې (هذا لا انسان لانه غير ناطق).

**تقسيم آخر فى المعارضة:** معارضه په پنځه قسمه ده ۱- معارضه على المعارضه چې مدعي پخپل مطلوب دليل پيش کړي، سايل دده د مطلوب په نقيض باندې دليل پيش کړي، کما مرّ.

۲- معارضه بالبداهة على البديهى، چې مدعي دخپل مطلوب لپاره دليل پيش نکړي بلکې دبداهت دعوی يې وکړي نو دعوی دبداهت په منزله ددليل شي او سايل دده د مطلوب په نقيض کې دعوه دبداهت وکړي، مثلا غير مقلد وايي چې رفع اليدين عندالركوع سنة بديهى، سايل ورته وايي چې رفع ا ليدين عند الركوع ليس بسنة بديهى.

يو اهل بدعت وويل چې: نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته علم غيب جزئي عطائي ثابت دی، ما ورته وويل چې

په قران ، حديث يا د عقائدو په کوم مسلّم کتاب کې د (علم غيب جزئي عطائي) اصطلاح وښايه ،نو هغه د بداهة دعوه وکړه، حالانکې ذدې نفې بديهي ده.

۳- معارضة بالبداهة على البديهى المبين بداهته بالدليل، يعنې دبداهت سره معارضه دداسې بديهى په خلاف چې دهغه بداهت په دليل سره واضح شوى وي ، مدعي د بداهت دعوه وکړي او بيا يې په دليل سره واضح کړي ، خصم دده د دعوې نفې وکړي او په دې نفې کې دعوه د بداهت وکړي.

مثلا: غير مقلد ووايي چې رفع اليدين عند الركوع سنة بديهى لانه من المحسوسات، سايل ورته ووايي چې رفع اليدين عندالركوع ليس بسنة بديهى، يا مثلا مدعي ووايي چې علم الغيب الجزئي او الكلي ذاتي يا عطائي غير الله ته ندى ثابت بداهةً، لعدم ذكره فى كتب العقايد، خصم ووايي چې علم الغيب جزئي يا كلي عطاءً غير الله ته ثابت دى بداهةً ،نو دسائل دعوى دبداهت داسې ده لکه دليل يې چې ذکر کړى وي.

۴- معارضه بالدليل على الحكم الذى يدعى بداهته چې مدعي ووايي چې زما مطلوب بديهي دى، سايل دده د مطلوب نفى وکړي او په نفى دليل هم قايم کړي، دا د دريم عکس دى:

۵- معارضه بالدليل على الحكم الذى بين المدعى بداهته بالدليل، چې مدعي دخپل مطلوب لپاره دعوه دبداهت وکړي او دعوى د بداهت په تنبيه سره واضحه کړي سائل دده دمطلوب نفى وکړي او په نفې باندې دليل هم قايم کړي.

بيا معارضه على المعارضه په درې قسمه ده اول: **معارضه بالقلب دوهم معارضه بالمثل دريم معارضه بالغير.**

**معارضه بالقلب:** دېته وايي چې د مدعي او معارض دليلين په ماده او صورة دواړو کې متحد وي مثلا احناف فرمايي چې (مسح ربع الرأس فرض ولا يكفى اقل مايطلق عليه) دا دعوه شوه (لان المسح ركن الوضوء) (صغرى) ولا يكفى فى الركن اقل مايطلق (كبرى) فلايكفى فى المسح اقل مايطلق (نتيجه) نو شوافع معارضه بالقلب داسې کوي چې (اقل مايطلق عليه اسم الرأس يكفى ولا يقيد بالربع) دا دعوه شوه، لانه ركن الوضوء (صغرى) والركن لا يقيد بالربع (كبرى) فالمسح لا يقيد بالربع (نتيجه) نو دواړه دلائل متحد دى صورةً ځکه دواړه د شکل اول څخه دى او همدارنګه متحد دى مادةً وهو ظاهر، ځکه چې په دواړو کې رکنيت دليل شو.

يو غير مقلد وويل چې د رکوع په رفع اليدين کې لس نيکى دي (دعوى) ځکه چې رفع اليدين عند الركوع

په حديث ثابت دي (صغرى) او هر شی چې په حديث ثابت وي هغه نيکي وي (کبرى) نو رفع اليدين عند الرکوع نيکي شوه (نتيجه) دا نتيجه بيا صغرى کړه او کبرى ورسره يو ځای کړه چې رفع اليدين عند الرکوع نيکي ده (صغرى) او دنيکۍ ثواب په لس چنده وي (کبرى) نو د رفع اليدين عند الرکوع ثواب په لس چنده دی دکبرى ثاني دليل ايت کريمه دی چې (مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا) نو معارضه بالقلب داسې ده چې په ترک د رفع اليدين عند الرکوع کې لس نيکۍ دي (دعوه) ځکه چې ترک د رفع اليدين عند الرکوع په حديث ثابت دي (صغرى) او هر شی چې په حديث ثابت وي هغه ينکي وي (کبرى) نو ترک د رفع اليدين عند الرکوع نيکي شوه (نتيجه) دا نتيجه بيا صغرى کړه او مسلمه کبرى ورسره يو ځای کړه چې ترک د رفع اليدين عندالرکوع نيکي ده (صغرى) او دنيکۍ ثواب په لس چنده دی (کبرى) نو دترک د رفع اليدين عندالرکوع ثواب په لس چنده ده، همدارنګه که يو شيعه ووايي چې رفع اليدين عند السجود نيکي ده، ځکه چې په حديث ثابته دها دنيکۍ ثواب په لس چنده ده

او **معارضه بالمثل:** دېته وايي چې دمدعي او دمعارض دليلين متحد وي صورةً فقط لا فی المادة مثلا مدعي ووايي چې العالم حادث (دعوى) لانه محتاج الى المؤثر (صغرى) وکل ما يحتاج الى المؤثر فهو حادث (کبرى) فالعالم حادث (نتيجه) نو خصم ورته ووايي چې العالم قديم (دعوى) لانه مستغنى عن المؤثر (صغرى) وکل ماهو مستغنى عن المؤثر فهو قديم (کبرى) فالعالم قديم (نتيجه) يا مثلا غير مقلد ووايي چې التقليد حرام (دعوه) لانه منهى عنه (صغرى) وکل منهى عنه حرام (کبرى) فالتقليد حرام (نتيجه) معارضة بالمثل يې داده چې: التقليد واجب (دعوه) لانه مأمور به (صغرى) وکل مأمور به واجب (کبرى) فاالتقليد واجب (نتيجه)

**معارضه بالغير:** دېته وايي چې دمدعي او مستدل دليلين نه صورةً متحد وي او نه مادةً لکه مدعي دشکل اول په طريقه ووايي چې العالم حادث لانه محتاج الى المؤثر وکل ماهو متحاج الى المؤثر فهو حادث فالعالم حادث ، نو خصم دقياس استثنائي رفعي په طريقه ووايي چې (العالم قديم لانه لوکان حادثا) مقدم (لما کان مستغنيا عن المؤثر) تالى (لکن التالى باطل فالمقدم مثله.

يا مثلا غير مقلد دقياس اقتراني په طريقه ووايي چې التقليد حرام لانه منهي عنه وکل منهى عنه حرام

فالتقليد حرام نو خصم د قياس استثنائي رفعي په طريقه ووايي چې التقليد واجب لأنه لو كان حراماً لما قلد الصحابة او لما كان مأموراً به، لكن التالى باطل فالمقدم مثله.

## تعريف الغصب والتوجيه

غصب (اخذ منصب الغير) ته وايي لکه مدعي چې د دعوې د ثابتولو په ځای په سایل اعتراضات کوي دا غصب دی او یا سایل چې د مدعي په دلایلو داعتراض په ځای خپل دلایل شروع کړي دا غصب دی، دمدعی داکثرو تعریفونو مطابق د رفع الیدین په مسئله کې غیر مقلد مدعي دی دلائل دمدعي په ذمه دي او اکثر غیرمقلد دځان څخه سائل جوړ کړي او حنفي ته وايي چې ته در فع الیدین دمنع دلیل پیش کړه نو دا غصب دی، دارنګه دمدعی علیه په ذمه منع یانقض یا معارضه ده، نو که مدعی علیه دلائل شروع کړي نودا غصب دی، همدارنګه دناقل په ذمه صرف تصحیح دنقل ده چې په فلان کتاب کې دا قول موجود دی اوس چې ناقل دقول منقول داثبات لپاره دلایل وايي نو دا غصب دی، لاخذه منصب المدعي فی القول المنقول.

او دغصب په مقابل کې توجیه ده چې دمناظر کلام منع، یانقض، یا معارضه دکلام دخصم وي.

## د مدعي ذمه داري

۱- مدعي به اول خپله دعوی دخپل یو مسلم کتاب په حوالې سره پیش کوي، بعضې اهل بدعت دعوې کوي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته علم الغیب جزئي عطائي ثابت دی، لکن چې بیا ترینه مطالبه وکړې چې په یو مسلم کتاب حواله ورکړه، نو دحوالې څخه عاجز وي.

۲- دخپلې دعوې وضاحت به کوي او په دعوی کې دمفرداتو تشریح به دخپلو اصولو مطابق کوي.

۳- استلزام: یعنې ددعوې او د دلائلو په مابین کې به مطابقت راولي چې دېته تقریب تام وايي.

۴- دمدعی علیه دجرحو او اعتراضاتو څخه به جوابونه کوي.

## دمدعي علیه ذمه داري

دمدعي علیه ذمه داري دمدعي په دلیل باندې اعتراضات دي بطریق المعارضه، او بطریق المنع او بطریق النقض او بطریق القدح فی الدلیل او بطریق المصارة علی المطلوب.

۱- مثلاً غیر مقلد دعوه پیش کړه چې: تقلید حرام دی (دعوی) ځکه چې الله تعالی د تقلید څخه منع کړې ده (صغری) او الله تعالی چې دکوم شي څخه منع کړې وي هغه حرام وي (کبری) نو تقلید حرام شو (نتیجه) کبری ظاهره ده او دلیل د صغری د اقول د الله تعالی دی چې: (وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ) نو د الله تعالی منعه یې دلیل کړو، نو دمدعی علیه ذمه داری په لاندې طریقه سره جوابونه دي.

اول جواب په طريقې دمعارضې بالقلب: چې عدم تقليد حرام دی (دعوی) ځکه چې : الله تعالی استلزاماً دعدم تقليد ځخه منع کړې ده (صغری) او الله تعالی چې دکوم شي ځخه منعه وکړي هغه حرام وي. (کبری) نو عدم تقليد حرام شو (نتيجه) کبری ظاهره ده او دليل دصغری د اقول د الله تعالی دی چې (وَّاتَّبِعۡ سَبِيۡلَ مَنۡ اَنَابَ اِلَيَّ) اتباع او تقليد يو شئ دی او دمن أناب الی اولين مصداق مجتهدين دی، نو پدې ايت کې دمجتهد د تقليد أمر دی او أمر بالشئ نهی عن الضد وي، لهذا عدم التقليد ممنوع شو، دلته دمدعی او د معارض دليلين متحد دی مادةً (وهو منع الله) او صورةً ځکه چې دواړه د شکل اول ځخه دی.

دوهم جواب په طريقې دمعارضې بالمثل: چې تقليد واجب دی (دعوی) ځکه چې تقليد مأمور به دی (صغری) او هر مأمور به واجب وي (کبری) نو تقليد واجب شو (نتيجه) کبری ظاهره ده او دليل دصغری ډير ايتونه او حديثونه دي لکه (وَّاتَّبِعۡ سَبِيۡلَ مَنۡ اَنَابَ اِلَيَّ) دلته دمدعی او د معارض دليلين متحد دی صورةً فقط.

دريم جواب په طريقې د معارضې بالغير: چې تقليد واجب دی (دعوی) لانه لوكان حراماً (مقدم) لما كان مأمورا به (تالي) لكن التالی فالمقدم مثله.

دلته دمدعی او دمعارض دليلين نه صورةً متحد دی او نه مادةً.

ځلورم جواب په طريقې دنقض اجمالي: چې ستا دليل بجميع مقدماته جاري کيږي ستاسو دزمانې دملايانو په اتباع کې هم او مدعی دی ترينه متخلفه ده ځکه چې ستا سو ملايان هم په من دونه اولياء کې داخل دي او تاسو يې پيروئ ته حرام نه وايي ، ځکه چې دهغوي بيانونه اورئ دهغوي شرحې ګورئ او مطالبه د دليل هم ترينه نه کوئ، ځکه په دليل نه پوهيږئ.

پنځم جواب په طريقې دنقض تفصيلي: چې صغری دی غلطه ده ځکه چې الله تعالی په اجتهادي مسائلو کې دمجتهد دتقليد ځخه منعه نه ده کړې ، بلکې پدې ايت کې په عقائدو باطله وو کې د تقليد ځخه منعه ده، همدارنګه په منصوصي مسائلو کې د نص په مقابله دمن دونه اولياء دپيروئ ځخه منعه ده، الله تعالی فرمايي چې اتبعوا ما أنزل اليكم من ربكم .

حاصل دا چې دمنصوصاتو پيروي وکړئ (وَلَا تَتَّبِعُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ) يعنې د منصوصاتو په مقابله کې د (مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ) پيروي مه کوئ او تقليد په منصوصي مسايلو کې نه وي ،همدارنګه دمنصوصاتو په مقابله کې هم نه وي بلکې تقليد په اجتهادي مسائلو کې وي.

شپږم جواب: په طريقې د منع مع السند : چې صغری د مدعي نه منم چې الله تعالی په اجتهادي مسايلو کې دمجتهد

دخبرې دمنلو څخه منع کړې ده، سند دمنع دادی چې په اجتهادي مسايلو کې دمجتهد دخبرې منل مأمور به دی، الله تعالی فرمايي چې: (اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ) د اولی الأمر څخه مجتهدين مراد دي د مجتهد خبرې فقه او اجتهاديات دي نو په اجتهادياتو کې دمجتهد دخبرې منل مأمور به شو.

اووم جواب په طريقې د منع عاري عن السند: چې صغری دمدعی نه منم چې الله تعالی په اجتهادي مسايلو کې دمجتهد دخبرې دمنلو څخه منعه کړې ده دليل پيش کړه.

اتم جواب: په طريقې د قدح الدليل لعدم الاستلزام: چې دمدعي د دعوې او د دليل په مابين کې مطابقت نه شته ځکه چې دعوه يې داده چې تقليد حرام دی او تقليد په اجتهادي مسايلو کې د مجتهد دخبرې منلو ته وايي او په دې ايت کې داندي راغلي چې په اجتهادي مسايلو کې دمجتهد دخبرې منل حرام دي، بلکې پدې ايت کې په عقائدو باطله وو کې او دمنصوصاتو په مقابل کې دتقليد ذکر دی، همدارنګه مونږ دمجتهد تقليد کوو او پدې ايت کريمه کې دمشرکانو د تقليد څخه منعه ده، نو دمدعي تقريب تام ندی، يا په بل تعبير سره ووايه چې دمدعي په دليل کې استلزام نه شته، يعنې دليل يې ددعوې سره مطابق ندی، پکار دی چې غير مقلد داسې دليل پيش کړي چې هغه پدې دلالت وکړي چې په اجتهادي مسايلو کې غير متجهد ته دمجتهد دخبرې منل حرام دي او داسې يو دليل هم نشته.

نهم جواب: بطريق القدح فی الدليل: چې کوم مسلّم مفسر ددې ايت څخه د تقليد په خلاف استدلال کړی دی؟ دا خو ستا تفسير بالرأی دی.

لسم جواب: په طريقې دقدح الدليل لعدم الاستلزام: چې په دې ايت کې خو دماسوی الله دتقليد څخه منعه نه ده بلکې د ماسوی الله د اتباع څخه منعه راغلې ده او غير مقلدين خو دتقليد او داتباع په مابين کې دمغايرت قايل دي و مذمة احد المتغائرين لايستلزم مذمة الأخر.

يوولسم جواب: په طريقې دقدح الدليل لعدم الاستلزام: چې پدې ايت کې په هغه چا رد دی چې خپل مشران يې شارعان ګڼل او امامان ددين شارحان دي.

۲- غير مقلدين کله داسې دعوه لګوي چې دالله او د رسول الله صلی الله عليه وسلم اطاعت وکړئ او بيا دليل داسې وايي چې اطيعو الله و اطيعو الرسول دلته دليل عين دعوه شوه چې مصادره علی المطلوب ورته وايي.

## فايده: قدح الدليل او مصادره علی المطلوب

دقدح الدليل لپاره ډير صورتونه دي: ۱- عدم استلزام الدليل للدعوی چې ددعوې او د دليل په مابين کې مطابقت نوي ،بيا قادح کله دعدم استلزام لپاره شاهد پيش کوي او کله نه؟

۲- لاحتیاجه الی مقدمة لم تذکر، چې مدعي دلیل پیش کړي او سایل ورته ووایي چې ستا دلیل داسې مقدمې ته محتاج دی چې تا نه ده ذکر کړی او دهغې مقدمې څخه بغیر ستا دلیل فایده مندنه دی ، مثلا کله غیر مقلد دعوه کوي چې تقلید ګمراهي ده او په دلیل کې حدیث پیش کوي چې کل بدعة ضلالةٌ نو دلته مونږ قدح الدلیل کوو چې ستا دلیل یوې مقدمې ته محتاجه دی چې: تقلید بدعت دی، ته اول دا مقدمه ثابته کړه بیا ووایه چې هر بدعت ضلالت دی، نو نتیجه به داشي چې تقلید ګمراهي ده، حالانکې ته دا مقدمه نشې ثابتولی چې تقلید بدعت دی، بلکې عدم تقلید بدعت دی، یا مثلا شوافع وایي چې نفل په شروع سره نه لازمیږي او قضائي یې نده واجبه او په دلیل کې حدیث وایي چې الصائم المتطوع أمیر نفسه ان شاء صام وان شاء أفطر؟ قلنا بطریق القدح فی الدلیل چې تاسو داسې یوې مقدمې ته محتاجه یئ چې هغه مقدمه دلته نده ذکر شوې چې وان شاء أفطر ولا یجب علیه القضاء.

۳- او کله قدح الدلیل لاستدراک مقدمة من مقدمات الدلیل وي چې سائل مدعي ته ووایئ چې ستا ددلیل یوه مقدمه زائده ده.

۴- مصادره علی المطلوب دیته وایي چې دعوه عین دلیل شی، یا دعوه جزء ددلیل شي، یا دعوه موقوف علیه د دلیل شي یا جزء دد عوې موقوف علیه ددلیل شي.

دقدحې په اول او دوهم صورت کې که شاهد ذکر شي نو دا بیا نقض دی او که شاهد ذکر نه شي نو دا بیا مکابره ده ، په څلورم صورت یعنې مصادره علی المطلوب کې هم که شاهد ذکر شي نو دا بیا نقض دی او که شاهد ذکر نه شي نو دا بیا مکابره ده او دریم صورت یعنې دزایدې مقدمې ذکر کول دمناظرې دغرض سره منافي ندي، ځکه چې دمناظر غرض اثبات المدعا بالدلیل ده او هغه بغیر دزایدې مقدمې څخه حاصلیږي، صرف دومره ده چې خلاف الأولیٰ کار یې کړی دی اولی داوه چې زاید مقدمات یې نه وي ذکر کړې او په ترک الاولی باندې داعتراض هیڅ حیثیت نه شته، نو د مدعی علیه اعتراضونه درې قسمه شو، معارضه، نقض او منعه.

فانقیل: چې کله مدعا علیه دمدعي څخه مطالبه د تصحیح الدلیل کوي او یا دمدعي د دلیل ضعف ذکر کوي نو دا خو څلورم قسم اعتراض شو.

قلنا: دا قسم په منعه کې داخل دی ځکه چې دا منع د صحة الدلیل ده .

## اجزاء البحث

دبحث درې حصې دي: ۱- مبادیات ۲- أوساط المناظرة ۳- مقاطع المناظرة .

مبادي عبارت دي له تعين ددعوې څخه چې کله پکې خفاء وي اکثر په مبادیاتو کې تقریبا لس شیان لیکل کیږي

**اول:** تعین دمدعي او د مدعی علیه.

**دوهم:** تعین ددعوې او دجواب ددعوې: یعنې مدعِي به دعوه لیکي او مدعی علیه به جواب د دعوې لیکي،دعوه واضحه او مکمله لیکل پکار دی او په جواب کې دهمدې دعوې د جواب لیکل ضروري دي مثلا: مدعي ولیکل چې: (۱)په مسایلو اجتهادیه وو کې (۲)په غیر مجتهد باندې (۳)دمجتهد تقلید واجب دی ، نو غیر مقلد به دهمدې دعوې جواب لیکي چې په اجتهادي مسایلو کې په غیر مجتهد باندې دمجتهد تقلید حرام یاشرک یا بدعت دی او که غیر مقلد ولیکل چې تقلید ثابت دی ، نو دا بیا ددعوې جواب نه دی.

**دریم:** تعین ددلائلو : یعني مقلد به خپل دلائل معین کوي، مثلاً وائي به چې ځه اولاً له قرآنکریم څخه دلائل پیش کوم بیا له سنتو څخه، بیا له اجماع څخه بیا د قیاس څخه علی الترتیب، یعنې که چرته په کتاب الله کې راته دلیل ملاو نه شو نو بیا ئې دسنتو درسول الله څخه پیش کوم ، که په سنتو کې هم راته ملاو نه شو نو بیا اجماع په دلیل کې پیش کوم او که اجماع هم ملاو نه شوه نو بیا زه قیاس دمجتهد په دلیل کې پیش کوم،او غیر مقلد به هم خپل دلائل معین کوي مثلاً ددوي دلائل دوه دي، صریح ایت او صریح حدیث (اهلحدیث کې دو اصول ،اطیعو الله والرسول) نو دوي به په دلیل کې صرف آیت او یا حدیث پیش کوي، همدارنګه اهل قرآن (منکرین دحدیثو) به په مناظره کې دخپل دلیل تعین کوي چې صرف قرآن دی، یعنې اهل قرآن به په دلیل کې صرف قرآن پیش کوي.

**فائده:** غیرمقلد په اهل سنت والجماعت مناظر باندې دا پابندي نشي لګولی چې: ماته به په دلیل کې صرف ایت او یا حدیث پیش کوي، ځکه چې اهل سنتّ والجماعت دغیرمقلدینو داصولو پابند نه دی، بلکې دخپلو اصولو پابند دی او داهل سنت اصول ادله اربعه دي لکه څرنګه چې که دغیرمقلد (اهل حدیث منکرین فقه) او د(اهل قرآن منکرین حدیث) مناظره وي ، نو اهل قرآن په اهل حدیث باندې دا پابندي نشي لګولی چې ماته به په دلیل کې صرف دقرآن ایت پیش کوې.

**خلــورم:** تشریح المفردات: یعني که مقلد ووائي چې التقلیــد واجــب نـواوس بـه مقلد

دخپلو اصلو مطابق ددې جملې دمفرداتو تشریح کوي، اول به دلفظ دتقلید تشریح کوي، بیا به دواجب تشریح کوي، او که غیر مقلد ووائي چې التقلید شرک: نو غیر مقلد به هم دخپلو اصولو مطابق چې صرف قرآن اویا حدیث دی د دغو مفرداتو تشریح کوي، نو هریو مناظر به دهریو مفرد تشریح دخپلو اصولو مطابق کوي.

**فائده:** اکثره وخت غیر مقلدین (اهل حدیث منکرین د فقهې) او یا اهل قرآن (دحدیثو څخه منکرین) په همدغې تشریح کی را ګیر ولای شئ: ځکه چې صرف په قرآنکریم او یا صرف په قرآن او په حدیث کې دتقلید او دشرک جامع او مانع تعریف صراحتاً نه دی ذکر شوی، نو که اهل قرآنو (منکرینو دحدیثو) دقرآن څخه بغیر بل هر تعریف درته رانقلولو نو ته به ورته ووایې چې دخپلو اصولو څخه ووتلې، همدارنګه که غیر مقلد (اهل حدیث) منکرین دفقهې دقرآن دایت او دصریح حدیث څخه بغیر د بل هر أمتي تعریف درته را نقلولو نو ته به ورته وایې چې له خپلو اصولو څخه ووتلې دتقلید په رد کې دی تقلید وکړو.

**پنځم:** تعین دتاریخ المناظرې.

**شپږم:** تعین دمقام دمناظرې.

**اووم:** تعین د مناظر، معاون او صدر المناظره.

**اتم:** تعین دکل وخت دمناظرې چې ټوله مناظره به یو ساعت وي مثلا.

**نهم:** دهر مناظر ددلایلو وخت مثلا چې هر مناظر به لس لس دقیقي بیان کوي مثلا.

**لسم:** نور ضروري شرائط.

اوساط: د دلایلو څخه عبارت دي: په اوساط المناظرة کي به له مدعِي څخه دلائل غوښتل کیږي او مدعی علیه به دده په دلایلو باندې نقض، منع او معارضه کوي.

**خلاصه:** داچې دلایل به مدعي بیانوي، دمدعی علیه څخه به دلایل نه غواړي، بلکې دمدعی علیه وظیفه صرف دا ده چې دمدعي په دلایلو باندې نقض اجمالي یا نقض تفصیلي یا منعه او یا معارضه وکړي، نو دمدعی علیه څخه ددلایلو مطالبه غصب دی، البته که مدعی علیه دلیل پیش کول غواړي نو پیش کولای ئې شي، یا داسې ووایه چې کله کله دنافي نفی مدلوله دنص وي نو بیا ورته ددلایلو دپیش کولو اجازت شته.

## مقاطع المناظرة

مقاطع هغو ضروري او يا ظني مقدماتو ته وايي چې هغوي ته په رسيدلو سره بحث ختميږي او هغه مقدمات مسلم عند الخصم وي، لکه: دور، تسلسل او اجتماع دنقيضينو وغيره، کله چې بحث داسې مقدماتو ضروريه وو او ظنيه وو ته ورسيږي چې مسلمې عند الخصم وي نو بحث ختميږي، بيا، ثالث يا مدعي دمناظرې په آخر کې تقرير کوي، او وائي چې دمدعي دغه دعوه وه او دغه دلائل يې پيش کړل، مثلاً څلور دلايل کي پيش کړل، او مدعى عليه په اول دليل باندې اعتراض وکړو مدعي دغه جواب ورکړو او په دوهم دليل ئي مثلا هيڅ اعتراض ونه کړو له دې وجهې د مدعي دغه دليل بې اعتراضه دی، نو د مدعي دعوه ثابته شوه.

**فائده:** لکن داهل السنة والجماعة مناظر دې متوجه اوسيږي، ځکه چې لامذهبان اکثر دروغ وايي کله يې هيڅ دليل نه وي پيش کړی کله يې دلايل پيش کړي وي لکن هيڅ دليل يې بې اعتراضه نه وي پاتې شوی لکن بيا هم وايي چې ما دومره دلايل پيش کړل او دعوی مې ثابته کړه نو دروغو ته دې يې نه پريږدي.

## د ثالث تفصيل

مناظره چې د اهل حقو په مابين کې وي نو هلته متعين اشخاص ثالثين جوړيدلی شي او کله چې داهل حقو د اهل باطلو سره مناظره وي نو هلته په يو ثالث اتفاق نه راځي مثلا که دغير مقلد سره مناظره وي نو که مقلد ثالث شي غير مقلد يې نه مني او که غير مقلد ثالث شي مقلد يې نه مني، ابراهيم عليه السلام د اهل باطلو سره مناظرې کړې دي لکن ثالث يې نه وو مقرر کړی، رسول الله صلى الله عليه وسلم د نصاراوو د نجران سره مناظره شوې ده، لکن ثالث پکې نه وو مقرر شوی.

## حکم المناظره

علامه شامي رحمه الله فرمايي چې: المناظرة فى العلم لنصرة الحق عبادة،ولا حد ثلاثة حرام! لقهر مسلم، ولاظهار علم، ونيل دنياومال، الخ رد المحتار، کتاب الحظر والاباحة، فصل فى البيع.
دحق ددفاع لپاره مناظره کول عبادة دی او دلاندې دريو کارونو لپاره حرامه ده، اول: دمسلمان دذليله کولو لپاره، دوهم: دخپل علم دظاهرولو لپاره، دريم: ددنيا او دمال دحاصلولو لپاره.

**دمخالف فريق څخه دبج کېدلو طريقه:** مقابل طرف اول سخت کوشش کوي چې تا ته په

علمي سطحه باندې شکست درکړي، او که ددې لارې څخه کامياب نه شي نو بيا نورې حربې استعمالوي، مثلا: کله درباندې جادو کوي، لهذا اهل سنت والجماعت مناظر ته پکار دي چې په علمي سطحې باندې دمضبوطوالي سره سره په عملي سطحه باندې هم ځان مضبوط کړي او (سبع الحصار) په خپلو معمولاتو کې داخل کړي، په سبع الحصار کې سورة فاتحه، ايت الکرسي، امن الرسول تر اخره پورې، سورة الکافرون، سورة الفلق، او سورة الناس داخل دي، بعضو علماو پکې سورة النصر هم داخل کړی دی، پکار دِی چې هر سهار او ماښام دا په خپلو معمولاتو کې داخل کړئ.

## اداب المناظره

مناظره دنظير څخه ده بمعنی المثل، لهذا پکار ده چې مناظره کونکي په علم کې برابر وي.

٢- دبدزبانی څخه پرهيز پکار دی لپاره ددې چې اهل المجلس متنفر نشي.

٣- د بې ځايه خندا څخه ځان ساتل پکار دي البته تبسم په مقابل طرف رعب راولي.

٤- داختصار فی الکلام همدرانګه د تطويل فی الکلام څخه ځان ساتل پکار دي، ځکه چې اختصار په فهم کې خلل راولي او تطويل ملال راولي.

٥- دغير مأنوسو الفاظو د استعمال څخه ځان ساتل پکار دي.

٦- دداسې جملو استعمالول نه دي پکار چې ددوه معناګانو احتمال لري او دمعنی مرادې لپاره قرينه نه وي.

٧- دمقابل طرف دخبرې دختيمدلول څخه مخکې دخبرو شروع نه ده پکار

٨- خصم حقير نه ګڼل، ځکه کله يو څوک خپل خصم حقير وګڼي چې په نتيجه کې ترينه کمزروي مقدمات صادر شي او دهمدا حقير خصم ورباندې غالب شي.

٩- نه د ډيرمړخت په وخت کې مناظره پکار ده ځکه چې ډير مړخت سستي راولي او نه د ډيرې ولږې په حالت کې مناظره پکار ده ځکه چې وږی سړی زر غوصه کيږي او کله چې انسان غوصه شي نو بيا مناظره نه شي کولی.

١٠- دداسې مقابل سره مناظره کول ندي پکار کوم چې ستا په نيز د احترام قابل وي او يايې په تا رعب وي ،ځکه چې کله دهغه رعب ستا ذهن فلج کړي.

١١- دمقابل اصولو ته پابند يدل ندي لازم مثلا غير مقلدين په مونږ دا پابندي نه شي لګولې چې په دليل کې به صرف ايت او يا حديث پيش کوئ، ځکه چې زمونږ اصول څلور دي: قرآن ،سنت، اجماع او قياس.

١٢- غير مقلدين (وکټوري اهل الحديث) دروغژن او دوکه باز خلک دي، لهذا ددوي سره په غير جانبداره ځای کې مناظره کول پکار دي.

۱۳- د مناظرې لپاره کل وقت مقررول پکار دي، پدې کې فائده داده چې د وقت مطابق به دلایل تیار کړي.

## دخبر واحد حکم

دخبر واحد لپاره درې صورته دي اول: چې راوي یې عادل ، حافظ او امین وي، په دې خبر واحد کې احتمال دصدق راجح دي، (۹۹) فیصده پکې احتمال دصدق دی او یو احتمال دخطا دی.

دوهم: چې راوي یې کاذب وي نو په دې کې احتمال دکذب راجح دی.

دریم: چې د راوي حالات نه وي معلوم، نو دده په خبر کې صدق او کذب یو برابر وي، ددې دریم قسم خبر په باره کې به توقف کیږي ترڅو چې دیو طرف لپاره دترجیح قرائن پیدا شي، دوهم قسم بالاتفاق مردود دی او په فروعو کې داول قسم په حجیت باندې دصحابه وو او دتابعینو بلکې د اولې صدی تر آخره پورې دټول اُمت اتفاق وو، معتزله وو د اول صورت دحجیت څخه انکار وکړو او داخبرې یې شروع کړې چې په فروعو کې هم خبر واحد ته اعتبار نشته، په هغه وخت کې علماوو په ډیر زور سره دخبر واحد حجیت ثابت کړو، امام شافعي رحمه الله دخبر واحد په حجیت باندې یوه مستقله رساله ولیکله نورې هم ډیرې رسالې ولیکل شوې تر دې چې معتزله یې دې ته مجبور کړل چې دخبر واحد حجیت ومني، لکن بیایې دانکار لپاره بله طریقه شروع کړه، چې مونږ خبر واحد منو، لکن په هغه وخت کې چې ددې دراوي سره بل بنه راوي یو ځای شي، لکن دا طریقه یې هم غلطه وو ځکه دیو راوي په یو ځای کیدلو خو روایت دمتواتر مرتبې ته نه رسیږي بلکې بیا هم واحد وي.

## دخبر واحد دحجیت دلایل

(۱) کله چې دموسی علیه السلام دلاسه قبطي مړ شو او فرعون دموسی علیه السلام دګرفتارۍ حکم وکړو نو دموسی علیه السلام یو خیرخواه راغلو او موسی یې خبر کړو (وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِیْنَةِ) موسی علیه السلام پدې خبر واحد باندې عمل وکړو (فَخَرَجَ مِنْهَا) او شرایع من قبلنا من غیر نکیر حجت دی.

(۲) الله تعالی فرمایي (یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ فَتَبَیَّنُوْۤا) خلاصه دا چې دفاسق په خبر کې تحقیق پکار دی او دتحقیق مطلب دادی چې که دصدق قرائن یې ظاهر شو نو ویې منۍ او که نه مه یې منئ، نو دقرائنو له وجې دفاسق خبر منل کیږي نو دعادل به په طریقه اولی منل کیږي.

(۳) داولې صدی تر آخره پورې هیچا په فروعو کې دخبر واحد دحجیت څخه انکار نه دی، کړی علماوو ددې لپاره ډیر مثالونه پیش کړي دي، مثلاً کله چې تحویل دقبلې نازل شو، نو صرف یو سړي دقباء خلکو ته دتحویل خبر ورکړو دقباء خلک دسهار په لمونځ ولاړ وو په خبرو واحد یې عمل وکړو او په لمانځه کې یې بیت الله شریف

ته مخ کړو.

(۴) حضرت انس رضی الله عنه اویو جماعت دصحابه کرامو رضی الله عنه دشرابو په یو دعوت کې شرکت کړی وو، کله چې شراب حرام شو نو یو صحابي خبر راوړو چې شراب حرام شو، نو ابو طلحه رضی الله عنه حضرت انس رضی الله عنه ته حکم وکړو چې شراب واړوه.

(۵) د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددعوت خطونه به دخبر واحد په طریقه صرف یو یو کس وړل، نو که خبر واحد حجت نه وي نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم خو به اقلاً دري کسان لیږلی.

(٦) مختلفو علاقو ته دنبي کریم صلی الله علیه وسلم حاکمان، مبلغین او معلمین تلل چې دا هم دخبر واحد په طریقه وو.

(۷) دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دزکوة وصولونکي به هم یو یو کس تللو.

(۸) په نهم کال دهجرت باندې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دابوبکر صدیق رضی الله عنه په امامت کې صحابه حج ته ولیږل او وروسته یې دبراءت د اعلانولو لپاره دخبر واحد په طریقه باندې حضرت علی رضی الله عنه ولیږلو.

(۹) د دوو شاهدانو په شهادت باندې قتل ثابتیږي او قصاص پرې راځي، حالانکې ددوو شاهدانو شاهدي خبر واحد دی.

## خبر واحد مفید للیقین ندی

جمهور علماء کرام فرمایي چې خبر واحد حجت دی او مفید دظن دی لهذا په خبر واحد باندې عقیده نه ثابتږي بعضې حنابله، لکن ابن القیم رحمه الله همدارنګه ابن حزم رحمه الله فرمایي چې په خبر واحد باندې هم عقیده ثابتیږي.

**فانقیل:** خبر واحد اذا تلقته الأمة باقبول یفید القطع وکذالک المحتف بالقرائن؟

**قلنا:** فی هذه الصورة یصیر قسما من المتواتر وکلامنا فی خبر الواحد.

**فانقیل:** کله دخبر واحد په وجه دقرآن ایت منسوخیږي لکه دا قول دالله تعالی چې (كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ) البقره،

په تاسو باندې فرض ده چې د زنکدن په وخت کې که مال یې وو، نو والدینو او خپلوانو ته په معروفه طریقه باندې وصیت وکړئ، نو دا ایت ددې خبر واحد په وجه منسوخ دی چې (لا وصیة لوارث).

قلنا: دی حدیث ته هم تلقی بالقبول حاصله ده نو په حکم دمتواتر کې دی،.

## دلائل

۱-لوكان الخبر الواحد مفيدا للقطع لما قدّم مالك رحمه الله عمل اهل المدينة عليه، لكن التالى باطل فالمقدم مثله.
۲-لوكان الخبر الواحد مفيدا للقطع للزم علينا تصديق كل خبر، لكن التالى باطل فالمقدم مثله.
۳-لوكان الخبر الواحد مفيدا للقطع لما تردد فيه احمد بن حنبل، لكن التالى باطل فالمقدم مثله، دليل دبطلان دتالى دادى چې په يو خبر واحد كې راځي (يقطع الصلوة المرءة والحمار والكلب) امام احمد رحمه الله فرمايي (الذى لا شك فيه ان الكلب الاسود يقطع الصلوة وفى نفسى من المرءة والحمار شيء) سنن ترمذى، كتاب الصلوة باب ماجاء انه لا يقطع الصلوة الا الكلب والحمار.
۴-خبر واحد په پنځه قسمه دى، خبر يقطع بصدقه، خبر يقطع بكذبه، خبر يحتمل الصدق والكذب واحتمال الكذب ارجح فيه، خبر يحتمل الصدق والكذب واحتمال الصدق ارجح فيه خبر يحتمل الصدق والكذب على السواء، عام اخبار احاد په څلورم قسم كې داخل دي او په هغې كې اګر چې صدق راجح دى لكن بيا هم پكې احتمال دكذب شته.
۵-خبر الواحد يتصف بالتصحيح والتضعيف والتحسين والتصحيح والتضعيف والتحسين امور ظنية واليقين ينافي الظن.

## فائده أقسام الحديث

حديث په دوه قسمه دي: (۱) خبر متواتر، (۲) خبر واحد:
خبر متواتر هغه حديث ته وايي چې په هره زمانه كې يې راويان دومره زيات وي چې عقل سليم د هغوي اجتماع په كذب باندې محاله ګڼي او خبر واحد هغه حديث ته وايي چې راويان يې دومره ډير نه وي.

**دتواتر شروط:**

دخبر متواتر دتعريف څخه يو څو شرطونه رافهميږي (۱) ددې خبر تعلق به د أمر محسوس سره وي. (۲) ددې راويان به ډير وي. (۳) ډير والى د راويانو به دومره وي چې عقل ددوي اجتماع په كذب باندې محاله ګڼي. (۴) داكثرت به دابتداء څخه تر انتهاء پورې وي، حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله يو پنځم شرط هم اضافه كړى دى چې هغه ترتب دعلم يقني دى، يعني دا خبر به داسې خبر وي چې ددې څخه وروسته به يقين حاصليږي.

**دتواتر اقسام:**

تواتر په څلور قسمه دى (۱) تواتر الاسناد (۲) تواتر الطبقة (۳) تواتر التوارث ياتواتر التعامل (۴) التواتر المعنوى ياتواتر القدر المشترك.

**تواتر الاسناد:**

چې دحديث سند متعين وي، او په هر دور کې يې راويان دومره ډير وي چې عادةً دهغوي اجتماع په كذب باندې محاله وي ددې لپاره علماء داحديث په مثال کې پيش كوي چې (من كذب عليّ معتمدا فليتبوّ مقعده من النار)

**تواتر الطبقه:**

چې يوه خبره يوه طبقه دبلې څخه او جماعات يې دجماعتونو څخه رانقل كړي ، لكه نقل دقرءان چې قرون يې دقرونو څخه رانقلوي ددې قسم تواتر دتحقق څخه وروسته دمتعين سند ضرورت نشته.

**تواتر التوارث يا التعامل:**

چې يو كار جماعتٌ عن جماعتٍ په خپل عمل سره محفوظ كړي، لكه جماعت دصحابه وو رضی الله عنهم رسول الله صلى الله عليه وسلم په ماسپښين کې په څلور ركعته لمونځ باندې ليدلی دی، نو صحابه وو دماسپښين څلور ركعته په خپل عمل کې داخل كړل، بيا تابعينو رحمهم الله دصحابه وو عمل وليدلو او دا څلور ركعته يې په خپل عمل کې داخل كړل ، وهلم جرّا.

**تواتر القدر المشترک:**

دې ته تواتر معنوي هم وايي چې ديو كُلي لپاره جزئيات دخبر واحد په طريقه باندې رانقل شوي وي، يعنې دهر جزئي نقل دتواتر مرتبې ته نه وي رسيدلې لكن ددې جزئياتو په مابين کې چې كوم قدر مشترک دی هغه دتواتر مرتبې ته ورسيږي، لكه دحاتم طائي د جُود هره واقعه دخبر واحد په مرتبه کې ده، لكن ددې واقعاتو مشترک مدلول چې جُود دی متواتر دی، په احاديثو کې ددې مثال دمعجزاتو احاديث دی ، درسول الله صلى الله عليه وسلم دمعجزاتو ټول واقعات متواتر نه دي، لكن ددې ټولو واقعاتو په مابين کې يو امر مشترک چې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم څخه د خوارقو ظهور دی دا دتواتر مرتبې ته رسيدلی دی.

**فائده:**

حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمايي متواتر احاديث ډير لږ دي، لكن حافظ ابن حجر رحمه الله پدې خبره باندې رد كړی دی، ځكه چې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه اعمال چې دصحابه كرامو رضی الله عنهم د وخت څخه تر ننه پورې ورباندې عمل جاري وي هغه ټول په تواتر التعامل سره ثابت دي، همدارنګه دتواتر القدر المشترک او دتواتر الطبقه لپاره هم ډير مثالونه دي.

بعضې علماء فرمايي: چې دحافظ ابن الصلاح قول صرف د اول قسم تواتر په باره کې دی په ورستنيو دريو اقسامو کې هغه دقلت او يا دعدم دعوی نه ده كړې.

**دخبر متواتر حکم:**

خبر متواتر مفيد لپاره د علم يقيني دی اوکوم سړی چې دداسې شرعي حکم څخه منکر شي کوم چې په تواتر ثابت وي نو هغه کافر وي ځکه چې دا تکذيب النبی صلی الله عليه وسلم دی او تکذيب النبی کفر دی او کوم حکم شرعي چې په خبر واحد باندې ثابت وي دهغې څخه منکر ضال او فاسق دی، البته په تکفير کې يې احتياط پکار دی، ځکه چې امکان لري چې په وسائطو باندې يې اعتما نه وي، نو دا به تکذيب الرسول نه وي بلکې تغليط الوسائط به وي.

**دخبر واحد اقسام:**

خبر واحد په اعتبار دمنتهی سره په درې قسمه دي:

۱-مرفوع۲- موقوف ۳- مقطوع.

**مرفوع:** هغه حديث ته وايي چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم قول يا فعل او يا تقرير پکې ذکر شوی وي.

**موقوف:** هغه حديث ته وايي چې دصحابي قول يا فعل اويا تقرير پکې ذکر شوی وي.

**مقطوع:** هغه حديث ته وايي چې دتابعي قول يا فعل اويا تقرير پکې ذکر شوی وي.

خبر واحد د راويانو په اعتبار سره په درې قسمه دی: ۱-مشهور ۱-عزيز۳-غريب.

**مشهور:** هغه حديث ته وايي چې راويان يې په هيڅ مرتبه کې د دريو څخه کم نه وي او دمتواتر حد ته نه وي رسيدلی.

**عزيز:** هغه حديث ته وايي چې راويان يې په هيڅ مرتبه کې ددوو څخه کم نه وي.

**غريب:** هغه حديث ته وايي چې دهغې په سند کې په يوه مرتبه کې صرف يو راوي وي.

خبر واحد په اعتبار د صفاتو د راويانو سره په (۱٦) شپاړس قسمه دی.

۱-صحيح لذاته ۲-حسن لذاته۳-ضعيف۴- صحيح لغيره ۵- حسن لغيره۶- موضوع۷- متروک ۸-شاذ ۹- محفوظ -۱۰منکر ۱۱- معروف ۱۲-معلل ۱۳-مضطرب۱۴ مقلوب ۱۵ مصحف ۱۶- مدرج.

**صحيح لذاته:** هغه حديث ته وايي چې راويان يې عادلان او کامل الضبط وي سند يې متصل وي علت او شذوذ پکې نه وي.

**حسن لذاته:** هغه حديث ته وايي چې دصحيح لذاته ټول صفات په کې وي لکن په ضبط او په حفظ کې يې نقصان وي.

**ضعيف:** هغه حديث ته وايي چې دصحيح او دحسن شرائط پکښې نه وي.

**صحيح لغيره:** بعينه حسن لذاته دی چې په متعددو طرقو باندې روايت شي.

**حسن لغيره:** بعينه ضعيف حديث دی چې په متعدد و طرقو باندې روايت شي.

**موضوع:** هغه حديث ته وايي چې راوي يې د كذب على النبى صلى الله عليه وسلم مرتكب شوی وي.

**متروک:** هغه حديث ته وايي چې راوي يې متهم بالكذب وي او يايې روايت دقواعدو معلومه وو فى الدين څخه مخالف وي.

**شاذ:** هغه حديث ته وايي چې راوي يې ثقه وي لكن دداسې جماعت كثيره سره مخالف وي كوم چې دده څخه زيات ثقه وي.

**محفوظ:** مقابل د شاذ ته وايي.

**منكر:** هغه حديث ته وايي چې راوي يې دضعف سره دثقاتو څخه مخالف وي.

**معروف:** مقابل د منكر ته وايي.

**معلل:** هغه حديث ته وايي چې علت قادحه خفيه پكې وي.

**مضطرب:** هغه حديث ته وايي چې په متن او يا په سند كې يې داسې اختلاف وي چې ترجيح او تطبيق پكې نه وي ممكن.

**مقلوب:** هغه حديث ته وايي چې په متن او يا سند كې يې تقديم او تأخير راغلى وي او يا ديو راوي په ځای پكې بل راوي ذكر شوي وي.

**مصحف:** هغه حديث ته وايي چې دخطي صورت د برقرارۍ سره سره يې په نقطو او يا په حركت او سكون كې غلطي راغلې وي.

**مدرج:** هغه حديث ته وايي چې راوي پكې په يو ځای كې خپل كلام ور داخل كړی وي.

خبر واحد په اعبتار د سقوط د راوي او د عدم سقوط د راوي سره په اووه قسمه دي:

۱-متصل ۲- مسند ۳- معلق ۴-منقطع ۵- معضل ۶-مرسل ۷- مدلس:

**متصل:** هغه حديث ته وايي چې د سند ټول راويان يې ذكر شوي وي.

**مسند:** هغه حديث ته وايي چې سند يې تر رسول الله صلى الله عليه وسلم پورې رسيدلى وي.

**منقطع:** هغه حديث ته وايي چې په سند كې يې كوم راوي حذف شوی وي.

**معلق:** هغه حديث ته وايي چې د سند په شروع كې يې يو يا زيات راويان حذف شوی وي.

**معضل:** هغه حديث ته وايي چې د سند په مابين كې يې ديو څخه زيات راويان حذف شوي وي.

**مرسل:** هغه حديث ته وايي چې د سند په اخر كې يې راوي حذف شوی وي.

**مدلس:** هغه حديث ته وايي چې د راوي عادت يې دا وي چې د خپل شيخ او يا د شيخ الشيخ نوم پټوي.

خبر واحد په اعتبار د صيغو سره په دوه قسمه دی:

۱-معنعن ۲- مسلسل:

**معنعن:** هغه حديث ته وايي چې په سند کې يې لفظ دعن راغلی وي.

**مسلسل:** هغه حديث ته وايي چې په سند کې صيغ الاداء راغلې وي او يايې د راويانو صفات يو شی وي.

**صيغ الاداء:** ۱- حدثنی ۲- أخبرني ۳- انبئنا ٤- أنبأني ٥- حدثنا ٦- قرأت ۷- أخبرنا ۸- قال لی فلان ۹- ذکر لی فلان ۱۰- روی لی فلان ۱۱- کتب اِلَیَّ فلان ۱۲- عن فلان ۱۳- قال فلان ١٤- ذکر فلان ۱۵- روی فلان ١٦- کتب فلان.

**دحدثني او أخبرني فرق:**

متقدمين دواړو ته مترادف وايي او دمتاخرينو په نيز که استاذ يې لولي او شاګرد يې اوري نو که شاګرد تنها وو حدثني وايي او که ډير وو حدثنا وايي او که شاګرد يې لولي او استاذ يې اوري نو بيا که شاګرد تنها وو اخبرني وايي او که ډير وو اخبرنا وايي.

## كتب الحديث

المحدث الدهلوی شاه عبد العزيز رحمه الله په خپل کتاب (عجالة نافعه) کې دحديثو دکتابونو لپاره شپږ اقسام ذکر کړی دی.

۱-جوامع ۲- مسانيد ۳-معاجم ۴- اجزاء ۵- رسائل ۶-(مقدمة لامع الدراری ج ۱ص۱۴۲)

شاه عبدالعزيز رحمه الله سنن په جوامعو کې داخل کړی دی او که سنن دجوامعو څخه مستقل شمار کړلی شي نو بيا أوه اقسام کيږي، عام محدثين دا اوه قسمه ذکر کوي اګر چې دحديثو کتابونه د اوو څخه زيات دي دلته به ددې اوو اقسامو سره نور اقسام هم ذکر کړو ان شاء الله تعالی.

**جوامع:** جوامع جمع دجامع ده او جوامع هغو کتابونو دحديثو ته وايي چې په اتو مضامينو باندې مشتمل وي هغه اته مضامين په لاندې شعر کې ذکر شوي دي:

سير، آداب، تفسير وعقايد فتن، احکام، أشراط ومناقب

دسير څخه دجهاد او دمغازي احاديث مراد دي، دادب څخه دمعاشرت احاديث مراد دي، دتفسير څخه تفسيري روايات مراد دي، دعقائدو څخه دايمانياتو احاديث مراد دي، دفتن څخه هغه احاديث مراد دي چې د را روانو فتنو ذکر پکې شوی دی، داحکامو څخه هغه احاديث مراد دي چې داحکامو فقهيه وو سره يې تعلق دی،

داشراطو څخه هغه احاديث مراد دي چې دقيامت دعلاماتو ذکر پکښې شوی وي، او دمناقبو څخه هغه احاديث مراد دي چې دصحابه وو فضائل پکښې ذکر شوي وي، په صحاح سته وو کښې صحيح البخاري،سنن ترمذي بالاتفاق دجوامعو څخه دي او په صحيح مسلم کښې اختلاف دی بعضې علماء ورته جامع نه وايي ځکه چې تفسيري روايات پکښې ډير لږ دي او (القليل کالمعدوم) لکن صحيح داده چې صحيح مسلم هم دجوامعو څخه دی ځکه چې د صحيح مسلم په کتاب التفسير کښې اګر چې تفسيري روايات لږ دي، ليکن په نور صحيح مسلم کښې په مختلفو مواضعو کښې ډير تفسيري روايات راغلي دي او په کتاب التفسير کښې دتفسيري رواياتو دقلت وجه داده چې امام مسلم رحمه الله چې دکوم مناسبت له وجې څخه يو روايت ذکر کړي، نو دهغه روايت ټول اطراف هملته ذکر کوي، بيا دتکرار څخه ځان ساتي، لهذا کوم تفسيري روايات چې امام مسلم په مختلفو ځايونو کښې ذکر کړي دي، نو په کتاب التفسير کښې يې دهغې اعاده نده کړې، همدارنګه امام مسلم دصحابه وو او دتابعينو اثار نه ذکر کوي او داهل لغتو اقوال هم نه بيانوي.

ددې په خلاف امام بخاري رحمه الله مکررات هم ذکر کوي او دصحابۀ وو او دتابعينو اثار هم ذکر کوي او دأهل لغتو اقوال هم ذکر کوي،امام ترمذي هم په کتاب التفسير کښې مکرر روايات ذکر کوي، لهذا د ترمذي کتاب التفسير طويل دی او دامام مسلم کتاب التفسير مختصر دی اګر چې تفسيري روايات يې په مختلفو مواضعو کښې ډير دي، لدې وجې څخه صاحب دکشف الظنون او صاحب دقاموس علامه مجدالدين فيروز ابادي ورته جامع ويلي دي (کشف الظنون تحت حرف الجيم ج ١ص ٥٥٥، فتح الملهم ج١ص١٠٥)

**سنن:** دا دهغه کتاب نوم دی چې په هغه کښې احاديث دابوابو فقهيه وو په ترتيب مرتب شوي وي، دې قسم کتاب ته به په اول کښې ابواب ويلی کيدلو، وروسته دا نوم په سنن باندې بدل شو، په صحاح سته وو کښې، نسائي،ابوداود، ترمذي، او ابن ماجۀ سنن دي، کله چې دسنن أربعه وو لفظ ذکر شي نو همدا څلور کتابونه به ترې مراد وي، دسنن اربعه وو څخه علاوه سنن بيهقي، سنن دارمي، سنن دارقطني، او سنن سعيد بن منصور ددې نوعې مشهور کتابونه دي،

همدارنګه سنن ابن جريج او سنن وکيع بن الجراح ددې نوعې قديم کتابونه دي، همدارنګه مصنف عبدالرزاق او مصنف ابن ابی شيبه هم ددې نوعې څخه دي، بعضو علماوو د مکحول کتاب السنن هم پدې نوعه کښې شميرلی دی.

**المسانيد:** دمسند جمع ده دا دهغه کتابونو دحديثو نوم دی چې په هغه کې احاديث دصحابه کرامو رضی الله عنهم په ترتيب سره ذکر شوي وي، يعنې چې ديو صحابي تمام مرويات په يو ځل ذکر شي هغه که دهر باب سره متعلق وي بيا دبل صحابي تمام مرويات ذکر شي وهلم جرًا.

دصحابه کرامو رضی الله عنهم ترتيب کله دحروفو تهجيو په اعتبار سره وي، يعنې دکوم صحابي رضی الله عنهم دنوم په سر کې چې همزه وي نو دده احاديث اول ذکر کولی شي، وروسته دهغه صحابي احاديث ذکر کولی شي چې دنوم په سر کې يې (باء) وي وعلی هذا القياس، او کله دسابقيت فی الاسلام په اعتبار سره وي ، لکن داسې مسانيد مفقود دي او کله دفضيلت په اعتبار سره وي چې اول دخلفاء راشدينو رضی الله عنهم روايات ذکر کړی شي بيا دعشره وو مبشره وو رضی الله عنهم بيا دبدريانو رضی الله عنهم بيا دشرکاوو دبيعت الرضوان رضی الله عنهم بيا دهغو صحابه وو چې دفتح دمکې څخه يې مخکې هجرت کړی وي بيا دهغو صحابه کرامو رضی الله عنهم چې دفتح دمکې څخه يې وروسته ايمان راوي وي، بيا دصغارو صحابه وو رضی الله عنهم، لکن په زنانه وو کې د أمهات المؤمنين رضی الله عنهن احاديث مقدم کولی شي، ځکه چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لورگانو رضی الله عنهن کې دحضرت زينب رضی الله عنها، حضرت رقيه رضی الله عنها او حضرت أم کلثوم څخه هيڅ روايت نه دی راغلی، ځکه چې ددې درې واړو انتقال د رسول الله صلی الله په ژوند کې شوی دی، اودحضرت فاطمة الزهراء رضی الله عنها څخه يو څو روايات راغلي دي، لکن هغه ډير لږ دي ځکه چې ددې وفات د نبي کريم صلی الله عليه وسلم دوفات څخه شپږ مياشتې وروسته وو او دا شپږ مياشتې يې هم په مريضۍ کې تيرې شوې.

که مسند دقبايلو په اعتبار مرتبيږي، نو اول به دبنو هاشم روايات راوړلی شي خصوصاً به دحضرت علی رضی الله عنه، حسنينو رضی الله عنهما، او دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه روايت مقدم کولی شي، بيا به دهغه چا روايات راوړلی شي چې بنو هاشمو ته نږدې وي، نو په دې صورت کې به دحضرت عثمان رضی الله عنه روايات په شيخينو باندې مقدم کولی شي ځکه چې حضرت عثمان رضی الله عنه دبنو أميه دقبيلې څخه وو چې دا قبيله دحضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه او د حضرت عمر رضی الله عنه دقبيلو په نسبت سره بنو هاشمو ته ډيره نږدې وه.

په مسانيدو کې دټولو څخه مخکې نعيم بن حماد يو مسند ليکلی دی (لامع الدراری ته ج ۱ص۱۲)

ددې څخه وروسته بې شماره مسانيد ليکل شوي دي، تر دې چې داخبره مشهوره وه چې هر محدث يو يو مسند ليکلی دی، نن سبا په مطبوعه شکل باندې درې مسانيد پيدا کيږي، مسند ابی داود الطيالسی، مسند حميدی او مسند امام احمد رحمهم الله.

يو بله غير مشهور اصطلاح هم شته: چې هغه كتاب چې مرفوع احاديث پكې ذكر شوي وي مسند ورته ويلى شي لكه صحيح بخاري ته چې المسند الصحيح ويلى شي، همدارنگه سنن دارمي ته مسند الدارمي ويلى شي، ځكه چې په دوي كې مرفوع احاديث ذكر شوي دي لكن دا اصطلاح مشهوره نه ده.

**المعجم:** شاه عبدالعزيز رحمه الله په (عجاله نافعه) كې ليكلي دي چې معجم دحديثو هغه كتاب ته وايي چې په هغه كې محدث دخپلو شيوخو او استاذانو په ترتيب سره احاديث راجمع كړي وي، بيا دا ترتيب كله دتقدّم فى الوفات په اعتبار سره وي، يعنې كوم استاذ چې اول وفات شوى وي دهغه احاديث يې د ټولو څخه مقدم كړې وي بيا يې د هغه استاذ احاديث ذكر كړى وي كوم چې دده پسې وفات شوى وي او كله دا ترتيب د زيادت دفضيلت په اعتبار سره وي او كله دحروفو تهجيو په اعتبار سره وي، لكن مولانا زكريا رحمه الله فرمايلي دي چې: معجم دحديثو هغه كتاب دى په هغه كې دحروفو تهجيه وو په اعتبار سره احاديث ذكر شوي وي او دا په درې قسمه دي:

١-چې دا ترتيب دصحابه كرامو په نومونو كې وي.

٢-چې دا ترتيب دمشايخو په نومونو كې وي.

٣- چې دا ترتيب داحاديثو په حروفو كې وي، يعنې چې دكومو احاديثو په ابتداء كې همزه راغلې وي هغه مقدم كړى شي بيا هغه احاديث ذكر كړى شي دكومو په ابتداء كې چې (باء) وي وهلم جرّا.

نو دمسند او معجم په منځ كې نسبت دعموم او خصوص مطلق دى، معاجم هم ډير دي لكه معجم اسماعيلى معجم ابن الغويطى وغيره، خو د ټولو څخه مشهور دامام طبراني معاجم ثلاثه دي.

اول: المعجم الكبير پدې كې دصحابه كرامو په ترتيب سره احاديث دي (بستان المحدثين ص ١٣٧ الشاه عبدالعزيز محدث دهلوى رحمه الله) لكن مولانا زكريا رحمه الله فرمايي چې ما په مدينه منوره كې دمعجم كبير قلمي نسخه وليدله په هغه كې ترتيب دمشايخو په اعتبار سره وو، شاه عبدالعزيز رحمه الله په عجاله نافعه كې هم ليكلي دي چې په معجم كبير كې ترتيب دمشايخو په اعتبار سره دى (مقدمة لامع الدراري ج ١ ص ١٤٨)

**دوهم: المعجم الأوسط:** په دې كې دشيوخو په اعتبار سره احاديث راجمع شوي دي.

**دريم المعجم الصغير:** پدې كې امام طبراني دخپل هر شيخ يو يو حديث ذكر كړى دى.

**مستدركات:** مستدرك هغه كتاب ته وايي چې په هغه كې دبل مؤلف دشرط مطابق دهغه څخه پاتې شوي روايات ذكر شوي وي، لكه مستدرك على الصحيحين دا كتاب ابو عبدالله محمد بن عبدالله النيسابوري المشهور بالحاكم المتوفى (٤٠٥ هـ) ليكلى دى، دې كتاب ته مستدرك حاكم هم ويلى شي، پدې كې دوي هغه احاديث

راجمع کړي دي کوم چې په صحيحينو کې نه دي ذکر، خو د امام حاکم په خيال کې دبخاري او يا دمسلم په شرط برابر دي، لکن امام حاکم داحاديثو په تصحيح کې ډير متساهل دی، ډير ځلې ضعيف او منکر بلکې موضوعي روايت ته هم صحيح على شرط الشيخين وايي، امام ذهبي رحمه الله داما حاکم په ډيرو غلطيانو باندې تنبيه ورکړې ده او دده دا تنبيهات مستقل دتلخيص المستدرک للحاکم په نوم باندې شايع شوي دي، نو ترڅو چې امام ذهبي رحمه الله د مستدرک دحديث تصحيح ونکړي تر هغه پورې صرف دحاکم تصيح ته اعتبار نه شته.

**تنبيه:** مشکوة دعلامه بغوي رحمه الله په مصابيح باندې تخريج دی او دمشکوة دريم فصل مستدرک دی.

**مستخرجات:** مستخرج هغه کتاب ته وايي چې په هغه کې يو مصنف دبل مخکني مصنف حديث پخپل داسې سند باندې ذکر کړي وي چې دمخکني مصنف واسطه په کې نه وي، لکه مستخرج ابى عوانه على صحيح مسلم، په مستخرج کې فايده دا وي چې داصل کتاب داحاديثو توثيق او تأيد ورباندې کيږي.

**اربعينات:** اربعينات د أربعين جمه ده هغه کتابونو ته وايي چې په هغو کې ځلويښت احاديث ديو باب او يا دمختلفو بابونو راجمع شوي وي، اربعينات ډير زيات دي او داربعيناتو دتأليف مقصد په هغه حديث باندې عمل کول دي چې امام بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې دابوالدردا رضى الله عنه څخه مرفوعا رانقل کړی دی:

من حفظ على أمتى أربعين حديثا فى أمر دينها بعثه الله فقيها وكنت له يو م القيامة شافعا وشهيدا (مشكوة كتاب العلم، فصل ثالث)

امام احمد رحمه الله ددې حديث په باره کې فرمايلي دي:

متنه مشهور فيما بين الناس وليس له اسناد صحيح

لکن دتعدد د طرقو له وجې دحسن لغيره مرتبې ته رسيږي.

**اجزاء او رسائل:** دشاه عبدالعزيز رحمه الله دتحرير مطابق په اجزاء او رسايل کې فرق دی، اجزاء هغو کتابونو ته وايي چې په هغوي کې د يو شيخ احاديث راجمع شوی وي او رسايل هغو کتابونو ته اويي چې په هغوي کې ديوې مسئلې متعلق احاديث راجمع شوي وي (فوائد جامعه بر عجاله نافعه صه ١٦)

لکن تحقيق دادی چې دا دواړه يو شی دي متقدمينو چې دکوم شي څخه په اجزاء باندې تعبير کولو، متأخرين دهغې څخه په رسائل باندې تعبير کوي، لکه جزء رفع اليدين للبخاري او جزء القراءة خلف الامام للبخاري، حالانکې دا هريو ديوې يوې مسئلې سره تعلق لري.

**كتاب العقائد:** دا دحديثو هغه كتاب ته وايي چې دعقايدو احاديث پکې راجمع شوي وي، لکه كتاب الاسماء والصفات دبيهقي او كتاب التوحيد دابن خزيمه رحمه الله او خلق افعال العباد د امام بخاري رحمه الله (مقدمة لامع الدراري ج۱ص۱۴۳)

**كتاب الاحكام:** دا دحديثو هغه كتاب ته وايي چې دفقهي مسائلو سره متعلق روايات پکې راجمع شوي وي، لکه صحاح سته او الاحكام الصغرى او الاحكام الكبرى دحافظ عبدالحق او عمدة الاحكام دعبد الغنى مقدسي.

**كتاب التاريخ:** دا دحديثو هغه كتاب ته وايي چې دتاريخ متعلق روايات پکې راجمع شوي وي، بيا دا په دوه قسمه دي يو هغه دي چې د ابتداء دمخلوق څخه واقعات پکې راجمع شوي وي، لکه بدأ المخلوقات دامام بخاري رحمه الله اودوهم هغه دي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم پورې مربوط تاريخي واقعات پکې راجمع شوي وي، لکه سيرت ابن هشام او مغازي د محمد بن اسحاق.

**كتاب الزهد:** دحديثو هغه كتاب ته وايي چې په هغه کې د زړه نرمونکي احاديث راجمع شوي وي، په دې کې عبدالله بن مبارک رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله، امام بخاري رحمه الله، امام ترمذي رحمه الله، امام ابوداود رحهم الله او امام بيهقي رحمه الله وغيره كتابونه ليکلي دي.

**كتاب الأداب:** دحديثو هغه كتاب ته وايي چې د فتنو پورې متعلق احاديث پکې راجمع شوي وي، لکه دنعيم بن حماد، كتاب الفتن والملاحم.

**كتاب المناقب:** دحديثو هغه كتاب ته واي چې دکوم قوم يا دجماعت او يا دفرد وغيره دفضايلو متعلق احاديث پکې راجمع شوي وي، لکه دمحب الدين الطبري رحمه الله، (الرياض النضرة فى فضايل العشرة).

**كتاب الأفراد والغرايب:** دا دحديثو هغه كتاب ته وايي چې په هغه کې ديو شيخ تفردات راجمع شوي وي، لکه د دارقطني كتاب الافراد.

**مشيخه:** دحديثو هغه كتاب ته وايي چې په هغه کې ديو او يا د څو شيوخو روايات راجمع کړی شوي وي هغه که دهرې مسئلې سره تعلق لري، لکه مشيخة ابن البخاري او مشيخة ابن القاري.

**كتاب العلل:** دحديثو هغه كتاب ته وايي چې په هغه کې داحاديثو علل خفيه ليکل شوي وي، کوم چې صحت دحديث ته ضرر رسوي، دحديث په علت خفيه باندې خبريدل ډير مشکل کار دی چې دهر چا په وس کې نه دی.

**اطراف:** اطراف دحديثو هغه كتاب ته وايي چې په هغه كې دحديث يوه حصه ذكرشوي وي او دا په كې ښودلی شوي وي چې دا حديث په كوم كوم كتاب كې په كوم كوم ځاى كې موجود دي، لكه تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف للحافظ جمال الدين مزی.

**الترغيب والترهيب:** دحديثو هغه كتاب ته وايي په كوم كې چې د رغبت الی الاخرة او دخوف النار احاديث راجمع شوی وي، لكه دحافظ منذري رحمه الله الترغيب والترهيب.

**مسلسلات:** دا هغه كتاب ته وايي چې داحاديثو راويان يې په يو صفت يا په يو خاص لفظ اويا په يو خاص فعل كې متفق وي، مثلاً ديو حديث تمام راويان فقهاء اويا محدثين وي يا مثلا هر راوي د روايت په وخت كې مصافحه كړې وي.

**ثلاثيات:** دحديثو هغه كتاب ته وايي چې صرف هغه احاديث په كې ذكر شوي وي چې دمصنف څخه تر رسول الله صلى الله عليه وسلم پورې پكې درې واسطې وي، لكه ثلاثيات البخاري، ثلاثيات الدارمي، ثلاثيات عبدبن حميد وغيره.

په صحيح البخاري كې دوه ويشت ثلاثيات دي، چې يوولس يې دامام ابو حنيفه رحمه الله دخاص شاګرد مكي بن ابراهيم څخه روايت كړی دی، شپږ يې دامام صاحب ديو بل شاګرد ابو عاصم النبيل ضحاک بن مخلد څخه روايت كړی دی او درې يې دمحمد بن عبدالله الانصاري څخه روايت كړي دي، چې دا دامام ابو يوسف اوامام زفر رحمهما الله شاګرد دی، نو شل ثلاثيات يې دحنفي مشايخو څخه روايت كړي دي او پاتې دوه يې يو دخلاد بن يحى الكوفي څخه روايت كړي دي او بل يې دعصام بن خالد الحمصي څخه روايت كړي ذي، ددې دواړو په باره كې دا معلومات نشته چې حنفيان وو او كه نه؟

دصحيح البخاري څخه علاوه په ابن ماجه كې پنځه ثلاثيات دي او په ترمذي كې يو حديث ثلاثي دی، په صحيح مسلم،ابوداود او نسائي كې هيځ ثلاثي حديث نشته، ملاعلي قاري رحمه الله فرمايي دترمذي يو حديث ثنائي دی (مقدمة مرقات ج١ص ٢٣) لكن دا دملاعلی قاري رحمه الله وهم دی ځكه چې دترمذی هغه حديث په كتاب الفتن كې ذكر شوی دی او ثلاثي دی دحديث متن داسې دی:

يأتى على الناس زمان الصابر فيهم على دينه كالقابض على الجمر (كتاب الفتن باب ٧٣ حديث ٢٢٦٠) عجيبه لا داده چې ملا علي قاري رحمه الله چې دمشكوة داحاديثو په تشريح كې دې حديث ته رسيدلی نو دې حديث ته يې ثلاثي ويلي دي.

دملاعلي قاري رحمه الله څخه دوهمه سهوه هم شوې ده چې په مقدمه دمرقات کې يې اشاره کړې ده چې په صحيح مسلم او ابوداود کې هم ثلاثي روايت شته حالانکې په دې ذواړو کې هيڅ ثلاثي روايت نشته، البته په ابو داود کې يو روايت رباعي فی حکم الثلاثي دی، يعنې دمصنف څخه تر رسول الله صلی الله عليه وسلم پورې پکې څلور واسطې دي لکن دوه راويان پکې ديوې طبقې دي، يعنې تابعيان دي، چې ديته په اصطلاح کې رباعي فی حکم الثلاثي وايي.

په مسند احمدبن حنبل کې درې سوه درې ديرش (۳۳۳) ثلاثيات دي (عقودالللألی فی الأسانيد العوالی ص۱۲۷).

په صحيح البخاري او صحيح مسلم کې دټولو څخه نازل سند تساعي دی په ترمذي او په نسائي کې دټولو څخه نازل سند عشاري دی او په ابوداود کې ثماني دی.

دامام ابو حنيفه رحمه الله روايات اکثر ثلاثي او ثنائي دي کما فی مسند الامام الاعظم وکتاب الاثار، دکتابونو نور اقسام هم شته خو اکثر ذکر شو.

## دوهم تقسيم باعتبار کونه مقبولاً وغير مقبولٍ

پدې اعتبار سره کتب الحديث په پنځه قسمه دی:

اول: چې ټول احاديث يې صحيح وي لکه موطا مالک، صحيح بخاري، صحيح مسلم، صحيح ابن حبان، صحيح ابن حاکم، مختاره ضياء المقدسي، صحيح ابن خزيمه، صحيح ابن عوانه، صحيح ابن سکن، منتقی ابن جارود.

دوهم: هغه کتابونه چې صحيح، حسن او ضعيف هر قسم احاديث پکې وي، لکن ټول قابل د احتجاج وي ځکه چې ضعيف روايات يې هم حسن ته قريب وي لکه سنن ابي داود، جامع الترمذي، سنن سنائي، مسند احمد.

دريم: هغه کتابونه چې حسن، صالح او منکر هر قسم احاديث پکې وي لکه: ۱-سنن ابن ماجه۲-مسند عبدالرزاق۳- مسند ابو يعلی الموصلی۴- مسند طيالسی۵- مسند سعيد بن منصور ۶- مسند بزار، مسند ابن جرير۷- تهذيب ابن جرير ۸- تفسير ابن جرير ۹- تاريخ ابن مردويه۱۰- تفسير ابن مردويه ۱۱- دامام طبراني معاجم ثلاثه (معجم کبير، معجم اوسط معجم صغير)۱۲- سنن دراقطني ۱۳- غرايب دارقطني۱۴- حلية ابن نعيم ۱۵- سنن بيهقي ۱۶- شعيب الايمان بيهقي.

څلورم: هغه چې ټول احاديث يې ضعيف وي الا ماشاء الله، لکه سنن ابن ماجه، مسند طيالسي، زيادات ابن احمد بن حنبل نوادر الأصول حکيم ترمذي ،تاريخ الخلفاء ،تاريخ ابن نجار، مسند الفردوس ديلمی، کتاب الضعفاء عقيلی، کامل ابن عدي، تاريخ بغدادي، تاريخ ابن عساکر.

پنځم: هغه کتابونه چې موضوع احاديث يې معين کړي وي، لکه موضوعات ابن جوزي، موضوعات ملاعلي القاري

موضوعات شيخ محمد طاهر نهرواني، رسالت فی مايجب حفظه للناظر، للمحدث الشاه ولي الله الدهلوي.

## بيان الصحاح الستة

دصحاح سته وو څخه مراد: ١- صحيح بخاري، ٢- صحيح مسلم ٣- جامع الترمذي ۴- سنن النسائي ۵-سنن ابی داود ۵- سنن ابن ماجه دي، بعضو د سنن ابن ماجه په ځای موطا مالک او بعضو مسند دارمي پکې شمار کړي دي، دې شپږو ته صحيح ويل تغليباً دي، ځکه چې صحيح صرف صحيح بخاري او صحيح مسلم دی (عجاله نافعه)

**مذاهب أصحاب صحاح سته:**

۱-امام بخاري رحمه الله مجتهد دی (نافع کبير کشف الحجاب) يا شافعي دی (طبقات شافعيه) يا حنبلي

۲- امام مسلم رحمه الله شافعي دی (اليانع الجنی ص۴۹)

۳- امام ابو داود حنبلي دی (الحطه ص ۱۲۵) يا شافعي دی (طبقات شافعيه ج ۶ص ۴۸)

۴- امام نسائي رحمه الله، شافعي دی (الحطه ص ۱۳۷)

۵- امام ترمذي او ابن ماجه هم شافعي دی (عرف شذی)

## الجرح والتعديل

دتعديل الفاظ بعضې په توثيق کې اعلی دي، بعضې اوسط دي، بعضې أدنی دي، على هذا الفاظ دجرحې بعضې په جرحه کې اعلی دي بعضې اوسط دي او بعضې أدنی دي، دأعلی څخه ترادنی پورې على الترتيب داسې دي.

## الفاظ التعديل

١-ثبتٌ حجةٌ ٢- ثبتٌ حافظٌ ٣-ثقةٌ متقنٌ ٤- ثقةٌ ثبتٌ٥- ثقةٌ ثقةٌ ٦- ثقةٌ٧- صدوقٌ ٨- لابأس به ٩- ليس به بأس ١٠- محلّه الصدق١١- جيد الحديث ١٢- صالح الحديث ١٣- شَيخ وسط١٤- شيخ صالح الحديث ١٥- صدوق ان شاء الله ١٦- صويلحٌ. وغيرها.

## الفاظ الجرح

١- دجال كذاب٢- وضاع يضع الحديث ٣- متهم بالكذب ٤- متفق على تركه ٥- متروک ٦- ليس بثقة ٧- سكتوا عنه ٨- ذاهب الحديث ٩- فيه نظر ١٠- هالک ١١-ساقط ١٢-واهٍ بمرة ١٣- ليس بشيءٍ١٤- ضعيف جداً ١٥- ضعّفوه ١٦- ضعيف واه ١٧- يضعف ١٨- فيه ضعف ١٩- قد ضعف

۲۰- ليس بالقوى ۲۱- ليس بحجة ۲۲- ليس بذاک ۲۳- يعرف وينكر ۲٤- فيه مقال ۱۵- تكلم فيه ١٦- لين ۲۷- سيّئ الحفظ ۲۸- لا يحتج به ۲۹- اختلف فيه ۳۰- صدوق لكنه مبتدع وغيره (دیباجه ميزان الاعتدال.

## اقسام الجرح والتعديل

جرح او تعديل هريو په دوه دوه قسمه دی: ۱- مبهم، ۲- مفسر:

مبهمه جرحه او تعديل هغه ته وايي چې سبب د جرحې او د تعديل پکې نه وي ذکر شوی.

مفسر جرحه او تعديل هغه ته وايي چې سبب د جرحې او د تعديل پکې ذکر شوی وي.

جرح مفسره او تعديل مفسر اتفاقاً مقبول دي، او په جرحه مبهم او تعديل مبهم کې اختلاف دی، صحيح داده چې جرحه مبهمه مطلقا نه قبليږي او تعديل مبهم قبليږي، دا قول دامام بخاري، امام ترمذي، ابوداود، نسائي، ابن ماجه او جمهورو محدثينو دی.

## شروط قبول الجرح والتعديل

جرحه مفسره او تعديل مفسر به هم هلته قبليږي چې به جارح او معدل کې دا لاندې صفات وي:

علم، ورع، صدق، عدم تعصب، معرفة اسباب الجرح والتعديل او خصوصا جرحه مفسره به هلته قبليږي چې جرحه کونکی به متعصب نه وي او ددې سره به متعنت او متشدد هم نه وي.

هغه محدثين چې په جرحه کې متعصب دي:

۱- دارقطني ۲- خطيب بغدادي.

هغه محدثين چې په جرحه کې متعنت دي: ابن الجوزي، عمرو بن بدر موسلی، رضی صعناني لغوي، جوزقاني، مؤلف کتاب الاباطيل، ابن تيميه حراني، مجدالدين لغوي، مؤلف قاموس.

## تعارض الجرح والتعديل

په يو راوي کې د جرحې او د تعديل صورتونه څلور دي:

۱- جرح مبهم وتعديل مبهم ۲- جرح مبهم وتعديل مفسر ۳- جرح مفسر وتعديل مبهم ۴- جرح مفسر وتعديل مفسر، په اول او دوهم صورت کې جرحه غير معتبره ده، په دريم او څلورم صورت کې جرحه معتبره او تعديل غير معتبر دی.

## امام ابو حنيفه رحمه الله او علم الحديث

دامام صاحب تعديل اظهر من الشمس دی، چا چې جرحې کړې دي، نو په هغوي کې بعض جارحين متعصبين، متشددين

او متعنتین دي او اکثر خپله مجروحین دي، داسې جرحې دتعدیل په مقابله کې نه قبلیږي.
د رسول الله صلی الله علیه وسلم دوفات څخه وروسته په سلګونو صحابه کرام رضی الله عنهم په کوفه کې اوسیدل، لدې
وجې دمکې او مدینې څخه وروسته کوفه دریم علمي مرکز وو، امام صاحب پدغه علمي مرکز کې پیدا شو،بل طرفته الله
تعالی امام صاحب ته قوي استعداد ورکړی وو چې ددې قوي استعداد څخه په استفادې سره یې د نورو علومو شرعیه وو
په څنګ کې په علم الحدیث کې هم امتیازي مقام حاصل کړو، امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله بېشکه چې په علم الحدیث کې
لوی امام وو، ځکه چې په قرآن، حدیث، تاریخ او لغت کې دمهارت څخه بغیر د اجتهاد تصورنه شي کیدلی، ځکه چې
مجتهد دقرآن او حدیث څخه دمسایلو استنباط کوي او په استنباط او اجتهاد کې دامام صاحب نظیر نه وو، لکه امام
شافعي رحمه الله چې فرمایلي دئ چې الناس فی الفقه عیال علی أبی حنیفة(الخیرات الحسان صـ ٥) خلک په فقه کې
د امام صاحب روحاني اولاد دي، لهذا د قران او حدیث په مهارت کې دامام صاحب نظیر نه وو، همدارنګه مکي بن ابراهیم
فرمایلي دي چې: کان أعلم أهل زمانه (مقدمة اعلاء السنن ج ١صـ ١٨٧، مناقب الامام الاعظم للموفق ج ١صـ
٢٠٤) په (علم الحدیث والقران) کې دخپلې زمانې دټولو علماوو څخه لوی عالم وو، په هغه زمانه کې د علم اطلاق په علم
الحدیث کیدلو، علامه ذهبي رحمه الله د احادیثو په حافظانو کې ذکر کړی دی(تذکره ج ١صـ١٥٨)
دمحدثینو په اصطلاح کې حافظ هغه چاته ویلی شي چې یو لاکه احادیث یې متناً وسنداً جرحاً و تعدیلاً یاد وي (مقدمة
اعلاء السنن ج ١صـ٢٢)
مشهور محدث یزید بن هارون فرمایلي دي چې: کان ابو حنیفة احفظ اهل زمانه (ابن ماجه أور علم الحدیث،
عبدالرشید نعماني صـ٢١)
امام ابو حنیفه رحمه الله په خپله زمانه کې د ټولو څخه لوی حافظ وو، علامه ذهبي رحمه الله دامام صاحب د همدرسي
مسعر بن کدام په حوالې سره لیکلي دي چې ما د امام ابو حنیفه رحمه الله سره یو ځای علم الحدیث شروع کړو، لکن هغه
راباندې غالب شو او په زهد کې هم الله تعالی هغه ته فوقیت ورکړی دی او په فقه کې خویې تاسو ته مرتبه معلومه ده
(مناقب أبی حنیفه لشمس الدین الذهبي صـ ٢٧)
عبد الله بن المبارک ته علماء امیر المؤمنین فی الحدیث وایي کله چې عبد الله بن المبارک دامام صا حب په تربیت کې
راغلونو بیا به یې امام صاحب ته داحادیثو شهنشاه ویلی(تاریخ بغداد للخطیب ج ١٣صـ ٣٤٥)
همدارنګه به یې فرمایل چې که الله تعالی زه د امام صاحب په تربیت کې نه وی راوستی نو زه به یو عام سړی وم(مقدمه
اعلاء السنن ج ١صـ ١٨٧)
بې نظیره محدث امام سفیان الثوري رحمه الله فرمایلي دي چې: کنا بین ابی حنیفة رحمه الله کالعصافیر بین یدی
البازی وان أبا حنیفة سیدالعلماء (مقدمة اعلاء السنن ج ١صـ ٢٧)
مونږ به دامام صاحب په مخکې داسې وو لکه چڼچڼې(مرغۍ) چې دباز په مخکې وي او امام ابو حنیفه رحمه الله

دعلماوو سردارو.

امام ذهبي رحمه الله په تذكره صـ (۱۹۵) کې پخپل سند سره د سفيان بن عيينه قول رانقل کړی دی چې: لم يكن في زمان أبي حنيفة بالكوفة افضل منه ولا أورع منه ولا أفقه منه ، دامام صاحب په زمانه کې په کوفه کې دامام صاحب څخه بهتر تقوی دار او فقيه نه وو ، همدارنګه علامه ذهبي په تذکره صـ (۱۶۰) کې دامام ابو داود قول رانقل کړی دی چې: ان أبا حنيفه رحمه الله كان اماماً.

دامام صاحب د علم الحديث اندازه دامام صاحب د شيوخو او دشاګردانو څخه لګيږي ، امام مزي رحمه الله په تهذيب الکمال کې دامام صاحب (۷۴) شيوخ شميرلي دي او علماء پوهيږي چې امام مزي رحمه الله د يو راوي د شيوخو استيعاب نه کوي ، بلکې په بعضو باندې اکتفاء کوي، لهذا ملا علي القاري رحمه الله دمسند ابي حنيفة رحمه الله په شرحه کې او علامه ابن حجرا لمکي په (الخيرات الحسان) کې دامام ابو حنيفه رحمه الله دشيوخو تعداد (۴۰۰۰) ذکر کړی دی او شيوخ هم دداسې درجې دي چې په وروسته معروفو او مشهورو محدثينو کې چاته نه دي په نصيب شوي، ځکه چې دامام صاحب شيوخ يا صحابه او ياتابعين دي، دامام صاحب د شاګردانو شمير بعضې اصحاب التراجمو (۳۰۰۰) ذکر کړی دی، پدوي کې سلو کسانو په علم الحديث کې ممتاز حيثيت لرلو ، لکه عبد الله بن المبارک،يحيى بن سعيد القطان، وکيع بن الجراح، مکي بن ابراهيم، مسعر بن کدام، فضل بن دکين، صاحب دمصنف عبد الرزاق وغيره(تبيض الصحيفه صـ ۶۴) امام وکيع بن الجراح دامام صاحب څخه (۹۰۰) احاديث روايت کړي دي، امام ترمذي رحمه الله په کتاب العلل کې د عبد الحميد الرحماني په طريقه دجابر جعفي او دعطاء ابن أبي رباح په باره کې دامام صاحب داقول رانقل کړی دی چې ما دجابر جعفي څخه زيات دروغژن او دعطاء بن أبي رباح څخه زيات بهتر څوک نه دی ليدلی، (کتاب العلل ج ۵صـ ۷۴۱)

ددې څخه معلومه شوه چې دامام صاحب قول په جرح او تعديل کې معتبر وو، امام نسائي په السنن الکبری کې پخپل سند سره دامام صاحب څخه روايت رانقل کړی دی هغه فرمايي چې: أخبرنا عيسى بن حجر، قال أخبرنا عيسى بن يونس، عن النعمان يعني ابن ثابت عن عاصم، عن أبي رزين، عن عبد الله بن عباس رضى الله قال: ليس على من أتى بهيمةٍ حدُ (السنن الكبرى ج۴صـ ۲۲۳، ابواب التعزيرات، باب من وقع على بهيمة) همدارنګه مشهور محدث ابو داود الطيالسي دامام صاحب څخه يو روايت رانقل کړی دی چې: حبّک الشي يعمى ويصم( جامع المسانيد ج ۱صـ ۲۳)

د تاريخ او دسيرت په کتابونو کې دعلم الحديث په باره کې دامام صاحب عجيبه واقعات ذکر شوي، دلته به دنمونې په طريقه دوه واقعې رانقل کړو ، اول: ملاعلي القاري رحمه الله دامام صاحب په مناقبو کې فرمايلي دي چې يوه ورځ امام اعظم رحمه الله او امام اعمش رحمه الله په يو مجلس کې يو ځای وو ، نو يو چا ديوې مسئلې پوښتنه وکړه، امام اعظم رحمه الله جواب ورکړو ، امام اعمش رحمه الله چې جواب واوريدلو نو امام اعظم رحمه الله ته مخاطب شو او ورته وې فرمايل چې (من اين أخذت هذا؟) ددې جواب مأخذ څه شی دی؟ امام اعظم رحمه الله ورته وفرمايل چې: (انت

حدثتنا عن أبي صالح عن أبي هريرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كذا وأنت حدثتنا عن أبي أياس عن أبي مسعود الانصاري ، انت حدثتنا عن أبي وايل عن عبد الله قال قال رسول الله صلى عليه وسلم كذا وانت حدثتنا عن أبي مجلز عن حذيفة اليمان قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وانت حدثتنا عن أبي الزبير عن جابر رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كذا .

امام اعمش رحمه الله چې دا واورېدل نو حيران شو او وې فرمايل چې: (حسبک، ماحدثت به فى مأة يوم حدثتنى به فى ساعة واحدة) بيا يې وفرمايل چې (يا معشر الفقهاء أنتم الاطباء ونحن الصيادلة وانت ايها الرجل أخذت بكلا الطرفين).

اى فقهاوو تاسو سپيشلسټ ډاکټران يئ او مونږ پنساريان او دوا فروشان يو او ته اى ابو حنيفة رحمه الله هم طبيب يې او هم دوا فروش يې، يعني هم فقيه يې او هم محدث يې.

دوهمه واقعه: امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چې کله به چې امام اعظم رحمه الله يوه شرعي مسئله بيان کړه، نو ما به دا مسئله ياده کړه او بيا به دکوفې په محدثينو باندې گرزيدلم او ددې مسئلې متعلق احاديث به مې راجمع کول او بيا به مې دا احاديث په دې خيال باندې امام صاحب ته ور اورول چې امام صاحب به خوشحاله شي، کله به چې ما احاديث واورول او فارغ به شوم نو امام صاحب به زما په احاديثو کې تحقيق شروع کړو چې پدې احاديثو کې په فلان حديث کې فلان نقص دى او په فلان حديث کې فلان راوي ضعيف دى او په فلان حديث کې فلان علت دى له دې وجې قابل د استدلال نه دى او بيا به يې وفرمايل چې: أنا عالم بعلم اهل الكوفة)

## كتاب الاثار

دامام صاحب کتاب په نوم دکتاب الاثار په علم الحديث کې دامام صاحب په علمي مقام باندې شاهد دى ، دا کتاب په فقهي ابوابو باندې په حديثو کې د ټولو څخه اولنى کتاب دى ، دا کتاب د امام مالک رحمه الله دموطا لپاره د مأخذ حيثيت لري، عبد العزيز راوردي رحمه الله فرمايي چې: كان مالک ينظر فى كتب أبي حنيفة وينتفع بها.

امام مالک رحمه الله به د امام صاحب کتابونه مطالعه کول او نفعه به يې ترې اخستله، دکتاب الاثار راويان څلور دي: ۱- امام ابويوسف رحمه الله ۲- امام محمد رحمه الله ۳- امام زفر رحمه الله ۴- اما حسن بن زياد رحمه الله.

لکه دصحيح البخاري احاديث چې دشپږو لاکو احاديثو څخه انتخاب دى ، نو همدارنگه کتاب الاثار امام اعظم رحمه الله د څلويښتو زرو احاديثو څخه منتخب کړى دى، ابو بكر بن محمد فرمايي چې: (انتخب ابو حنيفة الاثار من اربعين ألف حديث) مناقب موفق المكى صـ ۹۵)

يحيى بن نصر رحمه الله فرمايلي دي چې: (سمعت أبا حنيفة رحمه الله يقول عندى صناديق من الحديث ما

أخرجت منها الا الشيئ اليسير الذى ينتفع به، مناقب موفق).

ما داامام ابو حنيفة رحمه الله څخه واوريدل چې فرمايل يې چې زما سره داحاديثو صندقونه دي ما دهغوي څخه ډير لږ راويستلى دي، هغه چې (دضرورت مطابق) نفع وربانديې اخستلى شي، علامه زبيدي رحمه الله په عقود الجواهر المنيفه کې دحافظ ابو نعيم اصفهاني په سند سره ديحيى بن نصر رحمه الله دا قول رانقل کړى دى چې زه يو ځل امام ابو حنيفة رحمه الله ته ورغلم، نو کوټه يې دکتابونه څخه ډکه وه، ما پوښتنه وکړه چې دا څه شى دي؟ امام صاحب رحمه الله وفرمايل چې دا دحديثو کتابونه دي.

نو ددې واقعاتو څخه دا ظاهره شوه چې په کتاب الاثار کې چې کوم احاديث دي دا دامام صاحب ټول احاديث نه دي بلکې دا دامام صاحب ډير لږ منتخب احاديث دي.

دکتاب الاثار اهميت دمحدثينو په نيز ددې څخه معلوميږي چې دوي په خپلو شاګردانو ددې کتاب د مطالعې تاکيدي حکم کولو او فرمايل به يې چې بغير ددې څخه علم فقه نه شي حاصليدلى، داسې اقوال ډير زيات دي چې دامام صاحب په مناقبو کې يې په تفصيل سره کتلى شئ او همدارنګه ددې کتاب اهميت ددې څخه هم معلوميږي چې ډيرو محدثينو د کتاب الاثار شروح ليکلي دي او ډيرو محدثينو ددې کتاب په رجالو باندې کتابونه ليکلي دي، د علامه ابن الهمام شاګرد حافظ بن زين الدين قطلو بغا په کتاب الاثار يوه شرحه ليکلې ده او يو مستقل کتاب يې ددې په رجالو ليکلى دى په نوم (الايثار لتذکرة رواة الأثار) ددې کتاب ذکر يې په (تعجيل المنفعة بذوايد رجال الاربعة) کې کړى دى، همدارنګه يې په تعجيل المنفعة کې دکتاب الاثار ټول روايات راجمع کړي دي، ځکه چې حافظ ابن حجر رحمه الله دا کتاب دامام ابو حنيفة رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، امام مالک رحمه الله او مام احمد رحمه الله يعني دايمه اربعه وو د رواياتو په رجالو ليکلى دى، دلامذهبه وکټوري اهلحديثو دسرګروه نواب صديق حسن خان په اتحاف النبلاء کې داخبره غلطه ده چې دحافظ ابن حجر کتاب تعجيل المنفعة دسنن أربعه وو په رجالو دى، ځکه چې حافظ ابن حجر رحمه الله د تعجيل المنفعة په مقدمه کې صراحةً ليکلي دي چې دده مقصد دايمه يې اربعه وو د رواياتو د رجالو تذکره ده، همدارنګه الحافظ ابو بکر بن حمزه الحسيني دصحاح سته وو او دايمه وو اربعه وو د رجالو لپاره يو کتاب ليکلى دى په نوم د (التذکرة لرجال العشرة) په دې کې هم دکتاب الاثار ټول راويان ذکر شوي دي.

## جامع المسانيد

د کتاب الاثار څخه علاوه لويو لويو محدثينو دامام اعظم رحمه الله روايات په نوم د مسند أبى حنيفة کې راجمع کړي دي، ددې مسانيدو تعداد تقريبا شلو ته رسيږي، په دې محدثينو کې ابو نعيم اصفهاني، حافظ ابن عساکر، حافظ ابو ا لعباس الدوري، حافظ ابن منده او حافظ ابن عدي وغيره شامل دي، حافظ ابن عدي رحمه الله په ابتداء کې دامام صاحب سخت مخالف وو، بيا چې کله دامام طحاوي رحمه الله شاګرد شو او دامام صاحب په علمي مقام باندې خبر شو نو بيا يې دسابقه خيالونو په کفاره کې مسند أبى حنيفة وليکلو دا مسانيد علامه ابن خسرو د (جامع المسانيد) په نوم راجمع کړي دي.

## د امام صاحب په تصانيفو کې اويا زره احاديث

دامام صاحب رحمه الله د يو شاګرد د وينا مطابق د امام صاحب په تصانيفو کې اويا زره احاديث دي، بعضې کم ظرفه خلک اعتراض کوي چې مونږ خو دامام صاحب رحمه الله په تصانيفو کې دومره احاديث پيدا نکړل، په حقيقت کې دا معترضين يا د متقدمينو دطريقې څخه جاهلان دي او يا تجاهل کوي. ځکه چې متقدمينو به احاديث په دوو طريقو بيانول، کله به يې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته منسوبول او مرفوعاً به يې بيانول او کله به يې د احتياط له وجې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دنسبت په ځاى خپل قول ګرځولو او د فقهي مسئلې په صورت کې به يې بيانول، پدې کې فائده داوه چې که په نقل کې به څه خطايي راغلې وه، نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته به نه منسوبيدله، بلکې دوي ته به منسوبيدله، ددې لپاره يو مثال دى چې بعضو محدثينو حضرت عمر رضى الله عنه په متوسطينو کې شميرلى دى او شاه ولي الله رحمه الله په (ازالة الخفاء) کې په مکثرينو کې شميرلى دى، مکثرين هغو حضراتو ته واي چې دهغوي روايات د زرو څخه زيات وي او د عمر رضى الله عنه مرفوع روايات د پنځوسوو څخه زيات او دزرو څخه کم دي، نو شاه ولي الله رحمه الله چې حضرت عمر رضى الله عنه په مکثرينو کې شميرلى دى وجه يې دا بيان کړې ده چې حضرت عمر رضى الله عنه به اکثر په دويمه طريقه حديث بيانولو، نو ددوي زيات روايات ددوي د قول په طريقه باندې مروي دي، ددې بل مثال دادى چې بعضې تابعين فرمايي:

لان نقول قال علقمه، قال عبد الله أحب الينا من أن نقول قال رسول الله)

علامه ظفر احمد العثماني رحمه الله په (انجاء الوطن بامام الزمن) کې يو څو نور واقعات هم په تفصيل سره بيان کړي دي، نو امام صاحب هم احتياطاً په دوهمه طريقه روايات بيانول، که څوک د امام محمد رحمه الله کتابونه مطالعه کړي، نو ډير داسې فقهي مسائل به وګوري چې عين حديث وي، نو ددې تحقيق مطابق د امام صاحب په تصانيفو کې د اويا زرو څخه هم زيات روايات پيدا کيږي او بله وجه داده چې دلته دوه خبرې دي: يو امام صاحب ته درواياتو رسيدل او حفظ او دوهم د رواياتو بيانول، اکثرو صحابه وو ته ډير احاديث رسيدلي وو او حفظ کړي يې وو، لکن بيان کړي روايات يې بيا هغومره نه وو، دامام صاحب رحمه الله مصروفيت چونکې دقران او سنت څخه د مسائلو استنباط وو، لهذا د امام صاحب رحمه الله ډير روايات دحديث په عنوان پاتې نه شو بلکې د فقهي مسائلو په حيثيت پاتې شو.

## په امام صاحب رحمه الله باندې داعتراضاتو مختصرجوابونه

۱-امام نسائي په کتاب الضعفاء کې دامام صاحب په باره کې فرمايي چې ليس بالقوي في الحديث.

قلنا: که دجرحې او دتعديل قواعد ته ونه کتلى شي، نو دهيڅ محدث او فقيه عدالت او فقهات به ثابت نه شي، ځکه چې په ټولو لويو لويو امامانو باندې ديو چا جرحه شته مثلا په امام شافعي رحمه الله باندې يحيى بن معين جرحه کړې ده، پهٔ امام احمد باندې امام کرابيسي جرحه کړې ده په امام بخاري باندې اما هلي جرحه کړې ده په امام اوزاعي باندې امام احمد بن حنبل جرحه کړې ده ،ابن حزم امام ترمذي ته مجهول وايي پخپله امام نسائي باندې ډيرو علماوو د تشيع جرحه کړې ده.

لهذا د جرحې او دتعديل خپل قونين دي هغه په نظر کې نيول پکار دي يو اصل دادى چې د چا امامت او عدالت چې تواتر ته رسيدلى وي نو په هغه باندې ديو دوه کسانو جرحه معتبره نده او دامام صاحب امامت او عدالت تواتر ته رسيدلى دى.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دتقليد لغوي او اصطلاحي معنى

دتقليد ماده قِلاده ده، او قِلادة چې دانسان په غاړه کې وي نو معنى يې په هارسره کيږي لکه استعارت من اسماء قِلادة (صحيح البخاري ج ۱ صـ ۴۸) او چې دحيوان په غاړه کې وي، نو بيا يې معنى په پړي او پټې سره کيږي لکه حضرت عائشه رضى الله عنها فرمايي چې انا فتلت قلائد هدى رسول الله صلى الله عليه وسلم بيدى ثم قلدها النبى صلى الله عليه وسلم بيديه (صحيح البخاري صـ ۲۳۰) همدارنګه په صـ (۲۲۹) کې حديث دی چې (قلّد النبى صلى الله عليه وسلم الهدى)

تقليد په لغت کې جعل القِلادة فى العنق ته وايي.

وفى الصراح تقليددر گردن افگندن حميل وغير ان کسى (صـ ۴۳) او يوه معنى دتقليد پيروي هم ده، صاحب دکشاف اصطلاحات الفنون فرمايي چې : التقليد هو اتباع الانسان غيره الخ صفـ ۱۱۷۸ يعني تقليد پيروی ته وائي الخ، نو په لغت کی د تقليد دري معنى ګاني شوی ۱- جعل القلادة فى العنق يعني بل چاته پړي پر غاړه کې وراچول، ۲- جعل القِلادة فى العنق، يعني خپل ځان يا بل چاته هار په غاړه کې اچول، ۳- الاتباع، يعني پيروي.

فائده: په دوهمې معنى کې مونږ داسې وويل چې خپل ځان يا بل چاته هار په غاړه کې اچول او په اوله معنى کې مو داسې وويل چې بل چاته پړي په غاړه کې وارچول، ځکه چې هار کله سړی خپل ځانته په غاړه کې اچوي او کله يئ بل چاته په غاړه کې وراچوي او پړې هميشه سړی بل چاته په غاړه کې وراچوي.

وفي الاصطلاح: ۱- هو اتباع الانسان غيره على ظن أنه محق فى الدليل بلا نظر فى الدليل ( النامي شرح الحسامي صـ ۱۹۰)

۲- یا قبول قول الغیر من غیر دلیل دلته من غیر دلیل د قبول سره لګیږي یعنې قول دغیر به دلیل لري لکن مطالبه د دلیل به ترېنه نه کیږي.

علامه جرجاني رحمه الله فرمایي چې: التقلید عبارة عن قبول قول الغیر بلاحجة (کتاب التعریفات صـ ۴۸)

۳- مولانا اشرف علي تهانوی رحمة الله علیه یې داسې تعریف کوي چی: تقلید دیته وائی چې دیو چا خبره ومنې پدې اعتماد چې دده خبره له دلیل سره موافقه ده لکن د دلیل مطالبه ترېنه ونه کړی الانصاف صفـ ۳)

۴- په مولوي یعقوب کې یې داسې تعریف لیکلی دی چې: التقلید اتباع الانسان غیره فیما یقول او یفعل معتقداً للحقیة من غیر نظر وتأمل فی الدلیل صـ (۳۸۰)

۵- د نور الانوار په حاشیه کې یې داسې تعریف لیکلی دی چې: التقلید اتباع الرجل غیره فیما سمعه یقول او فی فعله علی زعم أنه محق بلا نظر فی الدلیل (قمر الاقمار، حاشیه نور الانوار مبحث افعال النبي صلی الله علیه وسلم صـ (۲۱۶).

۶- صاحب د کشاف اصطلاحات الفنون یې داسې تعریف کوي چې (اتباع الانسان غیره فیما یقوله او یفعله من غیر نظرٍ الی الدلیل کأنّ هذا المتبع جعل قول الغیر او فعله فی عنقه) کشاف اصطلاحات الفنون صـ ۱۱۷۸ وفی البعض ج ۳ صـ ۵۰۸، باب القاف)

۷- د لامذهبو شیخ الاسلام ثناء الله امرتسري یې داسې تعریف کوي چې: تقلید کہتے ہے کسے کا قول محض اس حسن ظن پر مان لینا کہ یہ دلیل کی موافق بتلائے گا اور اس سے دلیل کے تحقیق نہ کرنا (فتاوی ثنائیہ ج ۱ ص- ۲۶۱)

۸- شاه ولي الله الدهلوي یې داسې تعریف کوي چې اتباع الروایة دلالةً د روایة څخ مراد شریعت دی او د دلالت څخه مراد راهنمائي ده، یعنې د یو ماهر شریعت په راهنمایی کې په شریعت باندې عمل کول او ماهر شریعت مجتهد دی، نو مجتهد او امام خدای او پیغمبر ندی بلکې راهنما دی

**نو دغير مجتهد لپاره په قران او سنت دعمل درې طريقې دي:**

اول: چې دمجتهد د راهنمايۍ څخه بغير بالذات پرې عمل وکړي لکه د وابيانو ملايانې چې دعوه کوي، دوهم: دا چې دغير مجتهد په راهنمايي کې ورباندې عمل وکړي لکه د وابيانو عوام چې ددې زمانې دکوم پېښوري کنړي او باجوړي په راهنمايۍ کې ورباندې عمل کوي، دهمدوي کتابونه ګوري او بيا دهمدې کنړي، پېښوري او باجوړي له وجې کله قاديانې شي کله پرويزي شي او کله بله بلاترينه جوړه شي، دريم: دا چې دمجتهد په راهنمايۍ کې ورباندې عمل وشي دا تقليد محمود دی، د وابيانو دملايانو مثال دهغه ړندو دی چې بغير د راهنما څخه سفر کوي نو دا هلاکيږي، د وابيانو دعوامو مثال دهغو ړندو دی چې دبل ړوند په راهنمايۍ کې سفر کوي دا هم هلاکيږي او د مقلدينو مثال دهغو ړندو دی چې دخير خواه، راه بلد، راهنما په راهنمايۍ کې سفر کوي، دا منزل ته رسيږي، يا داسې ووايه چې د وابيانو د ملايانو مثال دهغه مريض دی چې ډاکټر ندی او دطب دکتابونو څخه ځان ته نسخه ليکي دا هلاکيږي او د وابيانو دعوامو مثال دهغه مريض دی چې ډاکټر ندی او بل مداري ته وايي چې ته ماته د طب دکتابونو څخه نسخه وليکه دا هم هلاکيږي او دمقلدينو مثال دهغه مريض دی چې ډاکټر ندی ليکن سپيشلسټ ډاکټر ته وايي چې ته ماته دطب دکتابونو څخه نسخه وليکه نو دده علاج کامياب دی، نو پدې دغيرمقلدينو دا اعتراض دفع شو چې دوي وايي چې

**ايا قران او حديث صرف دمجتهد لپاره دي!**

څکه چې مونږ وايو چې دا حکامو ايتونه او حديثونه ايماناً و عملاً دمجتهد او مقلد دواړو لپاره دي او استنباطا يوائې دمجتهد لپاره دي، يو بل اعتراض هم دفع شو چې: غيرمقلدين وايې چې قرآنکريم او سنت نبوي صلی الله عليه وسلم شته، زه په همدغو دواړو عمل کوم او بل هيڅ شی نه منم، او تاسو حنفيان له دې دواړو څخه علاوه فقه هم منۍ، يا وائي چې زه د الله جل جلاله او د پيغمبر صلی الله عليه وسلم څخه علاوه د بل چا خبره نه منم، او تاسو حنفيان د امام صاحب رحمة الله عليه خبره منۍ، نو مونږ ورته وايو چې تقليد دې ته وايي چې ديو مجتهد په راهنمائۍ کې په دين باندې عمل وشي،

نو امام صاحب رحمه الله صرف راهنما او شارح دی شارع نه دی، شارع حقيقي صرف الله تعالى دی او شارع مجازي رسول الله ﷺ دی، نو مونږ د الله جل جلاله او د پيغمبر ﷺ خبره منو، د امام صاحب رحمة الله عليه په رهنمائی کې او تاسو د الله جل جلا له او د پيغمبر صلى الله عليه وسلم د خبرې دمنلو دعوه کوئ لکن ددې زمانې د ملا يانو په رهنمائی کې، ځکه چې تاسو ددې زمانې د ملايانو پښتو فارسي او اردو کتابونه ګورئ، بلکې په حقيقت کې تاسو ديو زوړ هندو نام نهاد مسلمان هري چند بن ديوان چند کتهري په رهنمايی کې په دين باندې عمل کوئ ځکه چې د فقهي حنفي په خلاف مخکې همدې هندو يو کتاب وليکلو په نوم دالظفر المبين، او ستاسو غير مقلدين علماء د همدې هندو د کتاب څخه نقالي کوي، نو زمونږ او ستاسو په مابين کې فرق صرف د راهنما په اعتبار سره دی، زمونږ راهنما د خير القرون مجتهد اعظم دی او ستاسو راهنمايان ددې زمانې ملايان، بلکې همغه زوړ هندو دی.

٢-د الله تعالى او د الله تعالى د نبي ﷺ خبرې منصوصات دي په منصوصاتو کې خو اختلاف نه شته ،اختلاف خو په اجتهاديا تو کې دی په اجتهادياتو کې وکتورياں څه کوي؟

## جامع او مانع تعريف

په فقهي مسائلو کې د تقليد لپاره جامع او مانع تعريف دا دی چې ١- په اجتهادي ٢- مفتى به مسائلو کې ٣- د غير مجتهد لپاره ۴- بغير د مطالبې د دليله ۵- د داسې مجتهد د خبرې منل چې د هغه مجتهد والی په دليل شرعي سره ثابت وي ۶- أو د هغه مذهب أصولاً وفروعاً مدون وي ٧- او مقلد ته په تواتر رسيدلی وي.

که غير مقلد ووايي چې د ا تعريف چا ليکلئ؟

قلنا چې دا د تقليد د ټولو تعريفونو خلاصه ده أو د تقليد حقيقي تصوير دی، که تاته پکې د إعتراض ځاي ښکاري. نو إعتراض وکړه چې زه جواب درکړم داسې مه وايه چې فلان دا ليکلي أو فلان دا ليکلي. د فلان خبره خو تا ته دليل نه دی، تقليد څه کوم او زما د عمل نقشه به هم زه پيش کوم.

## توضيحات

**(١) اجتهادي مسائل:**

**اجتهادي مسايل تقريبا پنځه قسمه دي:**

**اول:** مسائل غیر منصوصه.

**دوهم:** مسائل منصوصه متعارضه.

**دریم:** مسائل منصوصه محتمل التأویل.

**خلورم:** مسائل مجمله.

**پنځم:** مسائل منصوصه غیر مبینة الحکم. دا پنځه واړه غیر واضح مسائل دي او په دې مسایلو به مقلد د مجتهد په راهنمائي کې عمل کوي.

او مسائل منصوصه غیر متعارضه، غیر محتمل التأویل، مبینة الحکم: غیر اجتهادي او واضح مسائل دي، پداسې مسایلو کې تقلید نه دی واجب.

**دمسائل غیر منصوصه وو مثال:** لکه غومبسه (موچی) چې په اوبو کې وغورزیږي او به نجسیږي او که نه؟ په ټلیفون باندې نکاح کیږي او کنه؟ یا په پیچکارۍ باندې روژه ماتیږي او که نه؟ یا دیو انسان بل انسان ته وینه ورکول، دا مسائل غیر منصوصه دي او دا یوه نه ده بلکې په لکونو دی د معاملاتو اکثر غیر منصوص مسائل دي.

مجتهد دا مسائل راجع کوي مسائلو منصوصه ووته او غیر مجتهد د مجتهد په رهنمائي کې ورباندې عمل کوي، مثلا غومبسه چې په اوبو کې وغورزیږي نو اوبه نه نجسیږي، ځکه چې غومبسه په مچ قیاسیږي او د مچ حکم منصوصي دی، چې په اوبو کې وغورزیږي، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې پکې ډوب یې کړئ او بیا یې ترینه بهر وغورزوئ، ځکه چې په یو وزر کې یې داء او په بل کې دوا ده، نو اوس داء او دوا د غومبسو په وزرونو کې ثابت نه دي، لهذا د غومبسو ډوبول په اوبو کې نشته، لکن که ډوب کړی شو نو اوبه نه نجسیږي، ځکه چې د مچ په شان روانه وینه پکې نشته.

**اومسائل منصوصه متعارضه:** لکه د کونډې د عدت په باره کې دوه قسمه ایتونه دي پ یو ایت کې ورته یو کال عدت ذکر دی او په بل ایت کې ورته څلور میاشتې او لس ورځې عدت ذکر دی او همدارنګه رفع

الیدین وغیره دا مسایل هم دتعارض له وجې غیر واضح مسائل دي، مجتهد په دې مسائلو کې یا تطبیق کوي، که تطبیق نه وو ممکن نو بیا په نسخ باندې قول کوي او که نسخه نه وه ممکنه نو بیا ترجیح کوي، که ترجیح نه وه ممکنه نو بیا توقف کوي، او غیر مجتهد دمجتهد په رهنمائي کې پرې عمل کوي، او غیر مقلدین مجتهدین نه دي نو خپله خو په دې طریقو ددفع دتعارض کې یوه هم نشي کولی، ځکه چې اهلیت پکې نشته او دبل مجتهد پیروی ته کفر او شرک وائي، یعنې نه په خپله پوهیږي او نه دبل پوه خبره مني، له دې وجهې هغوي په متعارضو احادیثو عمل نشي کولی، بلکه غیر مقلدین همیشه په متعارضو احادیثو کې دیو جانب احادیثو څخه انکار کوي، مثلاً دآمین بالسر له آحادیثو څخه انکار کوي، دترک درفع الیدین له احادیثو څخه انکار کوي، دترک دقراءة خلف الامام له احادیثو څخه انکار کوي، وغیره...

**اومسائل منصوصه محتمل التاویل:** لکه دا قول دالله تعالی چې: [يَتَرَبَّصنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَثَةَ قُرُوءٍ الآیـه] په دې آیت کې د لفظ دقروء څخه طهر او حیض دواړه اخستیل کیدای شي، خو یو مجتهد حیض اخلي بواسطة القرائن او بل مجتهد طهر اخلي، او غیر مجتهد دمجتهد په راهنمایئ کېورباندې عمل کوي.

**مسائل منصوصه مجمله:** لکه: فاغسلوا وجوهكم نو دمخ وینځل فرض دي، لکن مخ دکوم ځای څخه ترکوم ځای پورې دی؟ نو دمقدار په بیان کې دا آیت مجمل دی، همدارنګه دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه په حدیث کې راځي چې (اذا ركع أحدكم فقال فى ركوعه سبحان ربى العظيم ثلاث مـراة فقد تم ركوعه) نو اوس دوه ځلې او یا یو ځلې سبحان ربى العظيم کافي دی او که نه؟ نو پدې کې دا ایت مجمل دی، همدارنګه: (یآایها الذین امنوا اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا الـخ) دلته اذا قمـتم مجمل دی، ځکه چې دفعل څخه مراد کله ۱- نفس فعل وي لکه فاغسلوا چې نفس غسل ترینه مراد دی ۲- او کله ترینه مراد دعوه دفعل وي لکه لا تزکـوا أنفسـکم، دتزکیې څخه منع نده بلکې ددعوې دتزکې څخه منع ده او دعوه د تزکې په ایت کې صراحة نشته نو دا ایت په دعوه د تذکیې کې مجمل دی

۳- او کله ترینه مراد اراده د فعل وي لکه (إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ) ای إذا أردتم نو اراده صراحةً نده ذکر شوې نو دا ایت په اراده د فعل کې مجمل دی.

**اومسائل منصوصه غیر مبینة الحکم:** لکه په لمانځه کې د قراءت ذکر په نص کې راغلی دی لکن حکم ئې په نص کې ندی راغلی چې فرض دی که واجب دی او که سنت دی؟ دلته مجتهد صرف حکم لګوي چې په، إذا قمتم إلى الصلوة فاغسلوا وجوهكم، کې أمر د فرضیت لپاره دی، إذا كبر فكبروا کې أمر د فرضیت لپاره دی، إذا قال سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لک الحمد کې أمر د إستحباب او سنتیت لپاره دی، دا حکمونه مجتهد لګوي.

**اومسائل منصوصة غیر متعارضه، غیر محتمل التاویل، مبینة الحکم:** لکه د عقاید و مسایل، پنځه لمونځونه، روژه، زکات وغیره ددې مسایلو یو اثبات من النصوص دی او بل ئې فهم من النصوص دی، ددې مسایلو د اثبات من النصوص لپاره تقلید نه دی واجب؛ ألبته ددې مسایلو د فهم من النصوص لپاره تقلید شته، قال الخطيب: فی الفقيه والمتفقه ص(۱۳۸ وصـ۱۳۲) والأحكام على ضربين عقلي، و شرعي فأماالعقلي فلا يجوز فيه التقليد كمعرفة الصانع وصفاته، ومعرفة الرسول وصدقه، وغيره ذلک من الأحكام العقلية وأما الأحكام الشرعية فضربان أحدهما يعلم ضرورة من دين الرسول صلى الله عليه وسلم كالصلوة الخمس والزكوة وصوم شهر رمضان، والحج وتحريم الزنا، وشرب الخمر وما أشبه ذلک فهذا لا يجوز التقليد فيه لأن الناس كلهم يشتركون في إدراكه والعلم به، فلا معنى للتقليد فيه، وضرب أخر لا يعلم إلا بالنظر والإستدلال كفروع العبادات والمعاملات، والفروج، والمناكحات وغير ذلک من الاحكام، فهذا يسوغ التقليد بدليل قوله تعالى (فَاسْئَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ). ذيل العقد الفريدصـ (۵٦ وصـ۵۷)

خطیب د (الفقیه والمتفقه) په صـ۱۳۸ او صـ۱۳۲) کې فرمایي چې احکام په دوه قسمه دي:

اول عقلي، دوهم شرعي، په عقلي احکامو کې تقليد نه دی جايز، لکه معرفت د صانع او د صفاتو د صانع او معرفت د رسول ﷺ او د صدق د رسول ﷺ او همداسې نور احکام عقليه! او شرعي احکام په دوه قسمه دي.

اول: هغه دي چې د نبي ﷺ د دين څخه بداهةً را فهميږي، لکه پنځه لمونځونه او زکات، د رمضان روژه، حج، او د زنا حرمت، او د شرابو د څکلو حرمت او همداسې نور، نو پداسې قسم احکامو کې تقليد نه دی جايز، ځکه چې په داسې احکامو باندې ټول خلک پوهيږي نو په داسې احکامو کې تقليد ته ضرورت نشته.

دوهم: هغه دي چې هغه د نظر او د استدلال څخه بغير نه را فهميږي لکه فرعي عبادات او معاملات او د فروجو او د نکاح مسئلې او همداسې نور احکام، نو په داسې احکامو کې تقليد جايز دی، ځکه چې الله تعالى فرمايي چې (فَسْئَلُوٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ )

فى خلاصة التحقيق: فالأمر المتفق عليه المعلوم من الدين بالضرورة لا يحتاج لى التقليد فيه لاحد الاربعة كفرضية الصلوة والصوم والحج ونحوها وحرمة الزنا واللواطة وشرب الخمر والقتل والسرقة والغصب وما اشبه ذلک والامر المختلف فيه هو الذى يحتاج الى التقليد فيه آه (خلاصة التحقيق فى بيان حكم التقليد والتلفيق للشيخ عبدالغنى النابلسى رحمه الله صـ ٤ استنبول تركيا)

وفى الفقيه والمتفقه: واما الاحكام الشرعية فضربان احدهما يعلم ضرورة من دين رسول الله صلى الله عليه وسلم كالصلوة الخمس والزكاة وصوم شهر رمضان والحج وتحريم الزنا وشرب الخمر وما اشبه ذلک فهذا لا يجوز التقليد فيه لان الناس كلهم يشتركون فى ادراكه والعلم به فلا معنى للتقليد فيه وضرب آخر لا يعلم الا بالنظر والاستدلال كفروع العبادات والمعاملات والفروج والمناكحات وغيرذلک من الاحكام فهذا يسوغ فيه التقليد بدليل قول الله عز وجل فاسئلوا أهل الذكر ان كنتم لا تعلمون ولا نالو منعنا التقليد فى هذه المسائل التى هى من فروع الدين لاحتاج كل احد ان يتعلم ذلک وفى ايجاب ذلک قطع عن المعايش وهلاک الحرث والماشية

وجب ان يسقط ، (الفقيه والمتفقه للخطيب البغدادى رحمه الله صـ ٥٤٢ الجزء الثامن، تقسيم المؤلف، باب الكلام فى التقليد وما يسوغ منه وما لايسوغ، مكتبة شان اسلام پشاور)

نو تقلید په دې پنځو اجتهادي مسائلو کې کیږي په غیر اجتهادي مسائلو کې تقلید نه دی واجب ایمان کله اعتراض کوي چې:

**قران او حدیث شته نو تقلید ته څه ضرورت دی؟**

نو جواب دادی چې په قران او حدیث کې دوه قسمه مسایل دي اول منصوصات دوهم اجتهادیات په منصوصاتو کې تقلید نه وي بلکې تقلید خو په اجتهادیاتو کې وي.او په اجتهادیاتو باندې دمجتهد د راهنمائي څخه بغیر عمل نه دی ممکن.

کله وایي چې فلان تعریف مثلا دتقلید تعریف د امام صاحب څخه پیش کړه ، نو جواب دادی چې تعریفات خو داجتهادیاتو څخه ندي او تقلید په پدغو پنځو اجتهادیاتو کې کیږي.

فانقیل: چې تعریفات د اجتهادیاتو څخه نه دي نو بیا به د منصوصاتو څخه وي نو په نص کې یې وښایه؟

قلنا :منصوصاتو او اجتهادیاتو ته علوم نقلیه عالیه تقسیم شوی دی او تعریفات دعلوم آلیه وو څخه دی ، همدارنګه کله وایي چې تاسو چې تقلید ته واجب وایي نو دا مونږ ته دامام صاحب څخه ثابت کړئ.نو جواب وشو چې تقلید خو په اجتهادي مسایلو کې کیږي او دنفس تقلید مسئله اجتهادي نه ده . همدارنګه وروسته به د دیارلسم سوال دجواب لاندې تحقیق راشي چې امام صاحب ویلي دي چې غیر مجتهد به تقلید کوي،همدارنګه دمدعي په ذمه دلیل دی د خاص دلیل مطالبه نه ده صحیح، مثلا د البینة علی المدعي مطابق دمدعي په ذمه شاهدان وي ، لکن مدعي علیه ترینه د خاصو شاهدانو مطالبه نه شي کولی ، مثلا داسې ورته نه شي ویلی چې صدر او وزیر اعظم دې شاهدي وایي.

همدارنګه کله چې دکوم غیر مقلد څخه پوښتنه وکړئ چې ته د چا په مذهب یې؟ نو هغه درته وایي چې زه په قران او حدیث عمل کوم. نو دا جواب یې دسوال سره مطابق نه دی، ځکه چې قران او حدیث خو منصوصات دي او سوال د منصوصاتو په باره کې ندی شوی بلکې داجتهادیاتو په باره کې شوی دی ، نو ته د چا په مذهب یې؟ د دې معنی داده چې ته په اجتهادیاتو کې په دین باندې څرنګه عمل کوې؟ خپله

مجتهد یې او که د بل مجتهد په راهنمائي کې پرې عمل کوې؟ که ته وایې چې زه خپله مجتهد یم نو بیا خپل مجتهد والی په دلیل شرعي سره ثابت کړه، په کوم ایت کې راغلي دي چې ته مجتهد یې؟ یا په کوم حدیث کې راغلي دي چې ته مجتهد یې؟ او که د بل مجتهد په راهنمایي کې پرې عمل کوې نو هغه څوک دی؟ او دهغه په مجتهد والي شرعي دلیل څه دی؟

خلاصه دا چې ته دچا په مذهب یې؟ ددې معنی داده چې په اجتهادیاتو کې دچا په راهنمایي کې په دین عمل کوې؟ نو په جواب کې دا ویل چې زه په قران او حدیث باندې عمل کوم د سوال سره مطابق ندی، ځکه چې سوال دقران او حدیث باره کې ندی شوی، بلکې د اجتهادیاتو په باره کې شوی دی.

فانقیل: چې دا په کم ځای کې راغلي دي چې تقلید صرف په اجتهادي مسائلو کې کیږي؟

قلنا: د واضح نص په موجودګۍ کې تقلید ته ضرورت نشته، ځکه چې تقلید ددې لپاره کیږي چې مجتهد درته غیر واضحه مسئله واضحه کړي او چې مسئله پخپله په نص کې واضحه ذکر شوې وي، نو بیا یې توضیح ته څه ضرورت دی؟

همدارنګه په قران کریم کې دهغه چا مذمت راغلی دی چې د نص په مقابله کې تقلید کوي دا دمشرکینو طریقه وه او په اجتهادي مسائلو کې دتقلید اجازت، الله تعالی ورکړی دی د اولی الأمر منکم په تشریح کې به تفصیل راشي ان شاء الله.

**(۲)مفتی به مسائل:**

تقلید په مفتی به مسائلو کې کیږي، که غیر مقلد دفقهې په غیر مفتی به مسایلو اعتراض وکړو نو ته به جواب ورکړې چې تقلید په مفتی به مسائلو کې کیږي.

## دغیر مقلدسره مختصره مکالمه

غیر مقلد: د امام صاحب ولې کله په یوه مسئله کې دوه قوله وي؟

قلنا: (۱) په یوه مسئله کې ولې کله دقرءان دوه ایتونه وي؟ لکه د کونډې دعدت په باره کې د یو کال دعدت ایت هم شته او دڅلورو میاشتو اولسو ورځو دعدت ایت هم شته.

(٢)په يو مسئله ولې كله د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دوه حديثه وي؟ لكه په مس الذكر باندې د اودس د ماتيدلو حديث هم شته او د نه ماتيدلو هم شته.

غير مقلد: هلته خو يو ناسخ او بل منسوخ وي؟

قلنا: همدارنګه د امام صاحب يو قول راجح او بل مرجوح وي، په قرآن او حديث كې د ناسخ او منسوخ كلمې استعماليږي او په فقه كې د راجح او مرجوح كلمې استعماليږي.

غير مقلد: نو بيا غير مفتى او مرجوحو مسائلو ته څه ضرورت دى؟ چې عمل پرې نه كوئ نو ولې يې د كتابونو څخه نه اوباسئ؟

قلنا: (١) د قران څخه ولې منسوخ ايتونه نه دي ويستلى شوي؟ (٢) د احاديثو څخه ولې منسوخ او غير معمول په احاديث ندي ويستلى شوي؟ (٣) تحقيقي جواب دادى چې يو حديث ته صحيح او يا ضعيف ويل اجتهادي دي، كيدلى شي چې يو محدث يو حديث ته صحيح ووايي لكن هغه په نفس الأمر كې ضعيف وي او يا يو محدث يو حديث ته ضعيف ووايي او هغه په نفس الأمر كې صحيح وي، همدارنګه په فقه كې يوې مسئلې ته مفتى به ويل او بلې ته غير مفتى به ويل اجتهادي دى كيدلى شي چې يو مجتهد يوې مسئلې ته مفتى به ووايي او هغه په نفس الأمر كې غير مفتى به وي او يا يو مجتهد يوې مسئلې ته غير مفتى به ووايي او هغه په نفس الأمر كې مفتى به وي.

غير مقلد: **د امام صاحب ولې دوه قوله وي يو راجح او مفتى به او بل مرجوح او غير مفتى به؟**

**قلنا:** چې كله په يو ايت او يو حديث كې دوو مسئلو ته اشاره وي، بعضې دلائل يوې مسئلې ته ترجيح وركوي او بعضې دلائل بلې مسئلې ته ترجيح وركوي، لكه مدة الرضاعة: پدې كې دامام صاحب دوه قوله دي، مفتى به قول يې دادى چې مدة الرضاعة دوه كاله دى، مور به دوه كاله ماشوم ته تى وركوي او غير مفتى به قول يې دادى چې مدة الرضاعة دوه نيم كاله دى، مور به دوه نيم كاله ماشوم ته تى وركوي او دا دواړه مسئلې په يو ايت كې ذكر شوې دي، يوه صراحةً ذكر شوې ده او بله اشارةً، الله تعالى فرمايي: (وَ الْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ) وروسته الله تعالى فرمايي: (فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَ تَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا) نو په دې ايت كې دوه كاله صراحةً ذكر

دي او دوه نیم کاله اشارهٔ ، یعني ښځې دې بچي ته دوه کاله تی ورکوي، اوس که ددې ځخه وروسته په رضا او مشوره ددوي اراده وي چې د تي ځخه یې بیل کړي نو گناه وربانديې نشته.

که ددوکلونو ځخه وروسته د تي د دورکولو گنجایش نه وی نو د تي ځخه بېلول به یې دوالدینو د رضا او مشورې پورې نه معلق کولو، د فان اراد الخ ځخه معلومیږي چې ددووکلونو ځخهَ د زیات رضاعت گنجایش شته، نو اوس هغه زیاته موده ځومره ده؟ نو الله تعالی یې په بل ایت کې بیانوي چې ﴿وَحَمۡلُهُۥ وَفِصَٰلُهُۥ ثَلَٰثُونَ شَهۡرًا﴾ نو هغه زیادة پدې ایت کې ذکر شو چې دوه نیم کاله دی، بیا هم دوه کلونو ته په مدة الرضاعة کې اعتبار دی او دوه نیمو کلونو ته په حرمت الرضاعة کې اعتبار دی، همدارنگه کله د یو ایت یا حدیث ځخه یوه مسئله رامعلومیږي او د بل ایت او حدیث ځخه بله مسئله رامعلومیږي.

**(۳)تقلید دغیر مجتهد لپاره دی:**

تقلید په غیر مجتهد باندې واجب دی، نو پدې سره هم دغیر مقلدینو ډیر اعتراضات دفع شو.

١–غیرمقلد : **ته دامام صاحب په مذهب یې نو امام صاحب د چا په مذهب وو؟**

قلنا : تقلید په غیر مجتهد باندې واجب دی او امام صاحب مجتهد وو، لهذا مقلد نه وو لکن غیر مقلد هم نه وو ځکه چې متعارف غیر مقلدین ، نه مجتهدین دي او نه مقلدین.

غیرمقلد : **مقلدین تقلید نه واجب وایي نو امام صاحب تارک د واجبو شو!**

قلنا : ١–په هر سړي د خپل نبي کریم صلی الله علیه وسلم د کلمې ویل واجب دي، نو محمد صلی الله علیه وسلم د کوم نبي کلمه ویلې ده؟ که ته وایئ چې محمد صلی الله علیه وسلم د بل چا کلمه نده ویلې نبي کریم صلی الله علیه وسلم خو خپله نبي وو، نو همدارنگه مونږ وایو چې په امام صاحب باندې تقلید نه وو واجب امام صاحب خو خپله مجتهد وو.

٢–په جماعت سره لمونځ ضروري دی ، په جماعت سره لمونځ دادی چې دامام شاته اقتداء وکړې نو مقتدیانو خو داما پسې اقتداء کړې ده لیکن امام دچاپسې اقتداء کړې دی؟ که ته وایي چې په امام باندې دبل چا پسې اقتداء لازمه نه ده ، هغه خو خپله امام دی، نو همدارنگه مونږ وایو چې په امام صاحب تقلید نه وو واجب هغه خو خپله مجتهد وو.

**غیرمقلد : امام مهدي رحمه الله به دچا په مذهب وي؟**

قلنا : چې امام دې ورته وويلې نو بيا څرنګه وايئ چې دچا په مذهب به وي ؟ هغه خو به خپله امام او مجتهد وي خو اميد شته چې دهغه اجتهاد به د امام صاحب داجتهاد سره موافق وي، همدارنګه دا سوال هم دفع شو چې عيسى عليه السلام به دچا په مذهب وي؟ ځکه چې عيسى خو به خپل اجتهاد کوي خو أميد شته چې دهغه اجتهاد به هم دامام صاحب رحمه الله داجتهاد سره موافق وي.

**(۴)په تقليد کې مطالبه د دليل نه وي:**

تقليد دېته نه وايي چې ديو چا بې دليله خبره ومنې، بلکې تقليد دېته وايي چې ديو مجتهد بادليله خبره ومنې خو مطالبه د دليل ونکړې، يعنې د مجتهد سره دليل وي لکن ته صرف مطالبه د دليل نه کوې،

۱- مثلا مونږ هم حج کوو . او غير مقلدين هم حج کوي لکن د حج د ټولو مناسکو تفصيلي دلائل اکثر و ته ياد ندي، صرف دا اعتماد د هرچا سره دی چې ددې هر څه دلائل شته لکن څوک ئې مطالبه نه کوي نو دتقليد دمخکينيو تعريفاتو مطابق دا تقليدي حج شو، نو څوک چې تقليد مني دهغو دعقيدې مطابق دا حج موجب دثواب دی ، او څوک چې تقليد ته کفر او شرک وائي نو دهغو دفتوو مطابق دا په اربونو، اربونو حاجيانو په حرم کې حج ندی کړی بلکه کفر او شرک ئې کړی دی. معاذ الله

۲- همدارنګه دلمانځه دټولو اقوالو او افعالو دلائل اکثرو ته ندي ياد، صرف دا اعتماد د هر چا سره دی چې ددې هر څه دلائل شته لکن مطالبه د دلائلو نکوي، نو ددې تعريفونو مطابق دا تقليدي لمونځ شو، څوک چې تقليد مني دهغوي دعقيدې مطابق دا لمونځ موجب دثواب دی ، او څوک چې تقليد ته کفر او شرک وائي دهغوي دفتوو مطابق دا په اربونو ،اربونو مسلمانان لمونځونه نه کوي بلکه کفر او شرک کوي. معاذالله

۳- په اربونو ،اربونو مسلمانانو دقرآنکريم تلاوت کړی دی او کوي ئې، لکن دقرآن (دهر حرکت او سکون ، دهر زبر،او هر زير، دهر پيښ، او دهر غړوندي ) دلائل اکثروته ندي ياد ،صرف دا اعتماد ورسره دی چې د دې ټولو دلائل شته دی لکن مطالبه د دلائلو نه کوي، نو ددی تعريفونو مطابق دا تقليدي تلاوت شو ، نو څوک چې تقليد مني دهغوي دفتوو مطابق دا تلاوت موجب دثواب دی، او

ځوک چې تقلید ته کفر او شرک وائي دهغوي دفتوو مطابق دا به اربونو ،اربونو مسلمانانو نه تلاوت کړی دی او نه ئي کوي ، بلکه کفر او شرک ئي کړی دی او کوي ئي. معاذالله

۴- کله چې مسلمانان ډېرشول نو حضرت عثمان رضی الله عنه په خپل اجتهاد د جمعې دلمانځه لپاره یو اذان زیات کړو ، ټولو صحابه وو او تابعینو د حضرت عثمان رضی الله عنهٗ دا اجتهادي فیصله ومنله او هېچا مطالبه د دلیل ونکړه، یوازې صحابه وو او تابعینو نه بلکې د حضرت عثمان ﷺ د زمانې څخه په هندوستان باندې تر انګریزي دورې پورې پدې څه دپاسه دولس سوه کلونو کې هیڅ مسلمان هم نه اعتراض وکړو او نه یې مطالبه د دلیل وکړه، نو ددې تعریفونو مطابق دا ددې ټولو صحابه وو او تابعینو رحمهم الله بلکې ددنیا د ټولو مسلمانانو تقلید شو ، او ددې ټولو اجماع شوه په تقلید باندې، نو ځوک چې تقلید ته واجب وایي دهغوي دفتوو مطابق دا په اربونو ،اربونو مسلمانانو صحابه وو او تابعینو ټولو اتیان بالواجب کړی دی او ځوک چې تقلید ته شرک او کفر وایي دهغوي دفتوو مطابق دا ټول صحابه کرام ﷺ او تابعین رحمهم الله کافران او مشرکان وو. معاذالله

۵: اسلام یقیناً چې حق دین دی، نن سبا اکثر مسلمانان داسې دي چې د اسلام حقانیت مني، لکن دلایل ورته ندي یاد ، او نه یې په دلایلو پوهېږي، صرف دا حسن ظن ورسره دی چې د اسلام د حقانیت دلایل ډېر دي چې مشائخو ته یاد دي، نو دمخکنیو تعریفونو مطابق داسې اسلام ته تقلیدي اسلام وایي، د اهلسنت والجماعت د فتوو مطابق دا کسان مسلمانان دي، او ځوک چې تقلید ته شرک او کفر وایي، نو دهغوي د فتوو مطابق دا کسان کافران او مشرکان دي.

۶: مثلا یو عیسایي سړی دی رحمت مسیح نومېږي، هغه اسلام راوړو ، علماو ور باندې نوم رحمت الله کېښنودو ، هغه ته د عیسایت په بطلان هیڅ دلیل ندی معلوم، بغیر د مطالبې د دلیله یې عیسائیت پرېښی دی، او نه ورته د اسلام د حقانیت دلائل معلوم دي،او نه یې د چا څخه د دلایلو مطالبه کړې ده بغیر د مطالبې د دلیله یې اسلام راوړی دی ، صرف دا حسن ظن او ښه ګمان ورسره دی چه اسلام حق دین دی،

او حقانیت یې په دلایلو باندې ثابت دی چې مشایخو ته یا ددې دتقلید دمخکنیو تعریفونو مطابق دې ته تقلیدي اسلام وایي.

داهل سنت والجماعت (مقلدینو) د فتوو مطابق دا سړی صحیح مسلمان شو، او څوک چې تقلید ته شرک وایي دهغوي د فتوو مطابق دا سړی مشرک راغلی وو او مشرک لاړو، ځکه چې ده عیسائیت تقلیداً پرېښودو او اسلام یې هم تقلیداً قبول کړو.

**(۵)دداسې مجتهد تقلید واجب دی چې دهغه مجتهد والی په دلیل شرعي سره ثابت وي:**

**که غیر مقلد (هري چند ملا) ووایي چې زه هم مجتهد یم زما تقلید وکړه!**

قلنا: ته مجتهد نه یې ځکه چې نه په کوم ایت کې راغلي دي چې غیر مقلد هري چند هم مجتهد دی او نه په حدیث کې راغلي دي چې هري چند مجتهد دی، ته خپل مجتهد والی په خپلو دوو دلایلو شرعیو ثابت کړه چې صرف قران او حدیث دی، نو په کوم ایت او یا کوم حدیث کې صراحةً راغلي دي چې لامذهبه هري چند مجتهد دی او زمونږ دلائل څلور دي قرآن، حدیث، اجماع او قیاس او امام ابو حنیفه رحمه الله داهل فن یعني دمجتهدینو په اجماع سره مجتهد دی.

فائده: نن سبا د مجتهد پیدا کیدل عقلاً هم ممکن دي او شرعا هم، عقلاً او شرعاً محال ندي، لکن عادةً ممکن نه دي، یعنې اوس دمجتهد وجود محال دی عادةً، داسې څوک دی چې خپل أصول ولري او دا أصول او د أصولو څخه راویستلي شوي فروع یې مدون وي؟.

**٦-د داسې مجتهدتقلید واجب دی چې دهغه مذهب اصولاً او فروعاً مدون وي:**

**۱-که غیر مقلد ووایي چې د فلان صحابي تقلید ولې نه کوئ!**

قلنا: داسې کوم صحابي دی چې دهغه مذهب اصولاً او فروعاً مدون وي؟

**۲-غیر مقلد: قرآن او حدیث دهر صحابي مذهب دی او قرآن او حدیث مدون دی، لهذا د هر صحابي مذهب مدون شو.**

قلنا: قرآن او حدیث منصوصات دي او ددې څخه مستنبَط او را ایستلی شوي مسائل اجتهادیات دي او تقلید په اجتهادیاتو کې کیږي نو داسې کوم صحابي دی چې اجتهادیات یې مدون وي،

**۳-غیر مقلد: منصوصاتو او اجتهادیاتو کې څخه فرق دی!**

قلنا: منصوصات دین دی او اجتهادیات مذهبونه وي.

**ددین او مذهب په منځ کې فرق**

اول: دین دمنصوصاتو نوم دی او مذهب د اجتهادیاتو نوم دی لکه ﴿وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ﴾دا دین دی او د قرء تشریح چې حیض او یا طهر دی مذهبونه دي، ځکه چې د اتشریح مجتهد دخپل اجتهاد مطابق کوي، نو طهر او حیض اجتهادیات شو، دوهم: فرق دادی چې: ددین څخه انکار کفر دی او دیو خاص مذهب څخه انکار کفر ندی، لکه د قروءٍ څخه انکار کفر دی او دحیض څخه انکار کول او طهر مرادول یا د طهر څخه انکار کول او حیض مرادول کفر ندی، دریم: فرق دادی چې دین یو دی او مذهبونه ډیر دي، لکه قروءٍ یو لفظ دی او حیض او طهر دوه مذهبه دی، څلورم: دا چې په دین کې د خطائي احتمال نه شته او په مذهب کې دخطائی احتمال دی لکه په قروءٍ کې دخطایي احتمال نشته ځکه دادین دی او په حیض او طهر کې دخطایي احتمال دی، د قرء تشریح په حیض یا طهر سره احتمال دخطاء او صواب دواړو لري، له دې وجې شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمایي چې: روافض چې الله تعالی یا نبي کریم صلی الله علیه وسلم اویا جبریل علیه السلام ته مذهب منسوبوي او وایي چې زه دالله تعالی یا د نبي صلی الله علیه وسلم یا د جبریل علیه السلام په مذهب یم نو دا ډیر احمق دی، ځکه چې دی الله تعالی نبي صلی الله علیه وسلم او جبریل علیه السلام ته خطائي منسوبوي (تحفه اثنا عشریه کید ۸۵)

**(۷)دمجتهد مذهب به مقلد ته په تواتر رسیدلی وي:**

په دې سره د غیر مقلدینو اعتراض دفع شو.

**کله غیر مقلدین اعتراض وکړي چې دفلانکی مسئلې سند تر امام صاحب پورې پیش کړه؟**

قلنا: دفقهې مسائل مونږ ته په تواتر رارسیدلي دي او متواتر سند ونو ته نه وي محتاج که نه نو سورة فاتحه اوه ایتونه دي ته د هر ایت سند پیش کړه.

## د لامذهبو تعریفونه

وابیان د تقلید مختلف تعریفونه کوي نو که هر تعریف یې وکړو نو ته ورته ووایه چې دا تعریف صحیح دی او غلط؟ که وې ویل چې صحیح دی، نو بیا ورته ووایه چې داتعریف الله تعالی کړی دی او که محمد صلی الله علیه وسلم؟ هغه به وایي چې دا تعریف نه الله تعالی کړی دی او نه پیغمبر صلی الله

علیه وسلم بلکې فلانکي ملا کړی دی، نو ته ورته ووایه چې تا دهغې ملا څخه د ایات او یا د حدیث مطالبه کړې ده؟ اویا هغه درته په دلیل کې ایات یا حدیث پیش کړی دی؟ هغه به وایی چې نه، نو ته ورته ووایه چې ته خو همدیته تقلید وایي، نو د تقلید په تعریف کې دی تقلید وکړو.

## دلامذهبو وېکټوري اهل حدیثو وسوسې

**اول اعتراض:دتقلید په معنی کې قباحت:** مخکې مونږ دتقلید لغوي او اصطلاحي معنی ذکر کړه، نو غیر مقلدین چونکه دتهذیب څه خلاص دي، نو دوي یو بې تهذیبه اعتراض کوي، او وایي چې زه خو تقلید دسپي او دخره هم کوم، یعني هغوي ته پړی او پټه په غاړه کې ورأچوم، یا درته وایي چې تقلید خو دې ته وایي چې حیوان ته پړی په غاړه کې ور واچوې، کله وایي چې تقلید خو چارپیان کوي کله وایي چې تقلید خو د وهکې ته وایي، نو دوي دتقلید لغوي معنی اخلي، او هغه هم صرف یوه معنی، نو تاسو به پنځه جوابونه ورکوئ.

**اول جواب:** چې تا وویل چې تقلید خو ځناور کوي یا تقلید دوهکې ته وایي، نو ته کافر شوې، ځکه چې په لغوي معنی سره خو نبي کریم صلی الله علیه وسلم هم تقلید کړی دی، د صحیح البخاري په حدیث کې راغي چې قلد النبی الهدی، نو معاذ الله نبي صلی الله علیه وسلم ته ځناور یا دوهکه باز ویونکي څخه خو بل غټ کافر نوي.

**دوهم الزامي جواب:** (جواب ترکي به ترکي) چې په لغت کې دتقلید درې معناګانې وې (۱) پیروي، (۲) خپل ځان یا بل چاته هار په غاړه کې اچول، (۳) حیوان ته پړی په غاړه کې ورأچول، او لې دواړه دانسانانو معناګانې دي او دریمه دحیواناتو معنی ده، نو انسان دانسانانو معنی کوي او حیوان دحیواناتو معنی کوي، څوک چې دحیواناتو په معاشره کې لوی شوی وي، دانګریزانو ډیر سپي یې مینځلي وي، نو هغه دسپیو سره بلد وي، له دې وجې دسپیو معنی زر ذهن ته ورځي، لکه دوږي سړي ذهن ته چې دهر عدد څخه زر ډوډی ذهن ته ورځي او څوک چې دانسانانو په معاشره کې لوی شوی وي، هغه دهار سره بلد وي، نو هغه دانسانانو معنی کوي.

فانقيل: چې هار خوښځې په غاړه کې اچوي؟

قلنا: چې دا خبره نه ده صحيح تاسو به ليدلی وي چې د دستاربندۍ، واده وغيره خوشحاليو په موقع نارينه وو ته هار اچولی شي.

**دريم جواب:** که لامذهبان د تقليد په معنی کې پړی او پټه ذکر کوي نو بيا مونږ وايو چې مقلد صيغه د اسم فاعل ده معنی ئي داده چې د پړي او د پټې اچوونکی، يعني بل چاته پړی ور اچول تقليد دی، نو مونږ مقلدين يو په دې معنا چې مونږ دغو لا مذهبو او وکټوري اهل حديثو ته پړي او پټې په غاړه کې وراچوو ځکه چې پړی خو څوک خپلې غاړې ته نه اچوي، او هار خلک خپلې غاړې ته هم اچوي، او دبل چا غاړې ته يې هم ور اچوي.

**څلورم جواب:** که لامذهبيان د تقليد په معنی کې پړی او پټه ذکر کوي، نو بيا خو د أهل حديث هم داسې معنی شته چې مونږ تاسو ته په هغې معنی سره اهل حديث وو ايو، هغه داسې چې د حديث لپاره درې معنا ګانې دي.

**اول:** حديث په معنی د جديد او دنوي سره، دا لغوي معنی ده.

**دوهم:** حديث په معنی د حديث الرسول صلی الله عليه وسلم سره، دا عرفي معنی ده.

**دريم:** حديث په معنی د شيطان سره، دا عَلمِي معنی ده، شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله په غنية الطالبين صفـ ۱۴۷ کې د شيطان په بحث کې ليکلي دي چې يوه ورځ شيطان خپله لکی په خپل مقعد کې ننويستله او اوه (۷) هګۍ ئي واچولې، د هرې هګۍ څخه ئې يو يو بچی پيدا شو، له دوهمې هګۍ څخه ئي چې کوم بچی را ووتلو دهغه نوم ئي حديث کيښودلو، او ورته وې ويل چې ستا وظيفه په لمانځه کې خلکو ته وسوسه وراچول دي، او س دَ ده فوج دی چې نوم ئي اهل حديث دی.

نو مونږ هم ستاسو په حق کې د حديث عَلمي معنی کوو او وايو چې تاسو اهل حديث يې په معنی د اهل ددې شيطان چې ابليس دلمانځه دوسوسې لپاره مقرر کړی دی، لامذهبه وکټوري اهلحديث هم انګريزانو د دې لپاره مقرر کړي دي چې لمونځ کوونکو ته په لمونځونو کې وسوسې ور واچوي، چاته

وايي چې تاسو (خوداسونو دلكيو دخوزولو په شان) رفع اليدين نه دي كړي، چاته وايئ چې تا (ديهود په شان) په سينه باندې لاسونه كېښېنودل، چاته وايي چې ته (داسې دګنج د دروازې په مقدار ) آزاد ونه دربدلې، وغيره وغيره، همدا رنګه دسلفي يوه معنى ده هلاک شوى فرعوني كافر ، الله تعالى فرمايي چې ﴿فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّ مَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ﴾ اوكه يو څوک تاسو ته په دې معنى باندې سلفي ووايئ نو صحيح دى او كه نه؟

**تحقيقي جواب:** اعتبار شرعي او عرفي معنى ته وي، نه لغوي معنى ته علامه سيوطي رحمه الله يوه قاعده ليكلې ده چې: ولو كان فى احدهما عرفية والأخر لغوية فالحمل على العرفية أولى،(الاتقان فى علوم القرآن ج ۲صـ ۳٦۲)، كه تاسو لغوي معنى ته اعتبار وركوئ، نو بيا خو مونږ وايو چې ديو قول مطابق دصلوة لغوي معنى تحريک الصلوين ده ، نو اوس كوناټيو ته يو شرنګ وركوئ لمونځ به موكيږي، حالانكه تاسو هم دلته لغوي معنى ته اعتبار نه وركوئ او دتقليد شرعي معنى ګانې مخكې بيان شوى.

**دوهم اعتراض: غير مقلدين يو اعتراض دا هم كوي چې مذهب خو بيت الخلاء ته وائي؟**

**جواب:** مذهب په معنى داجتهادي رأې سره راځي، كه تاسو دمذهب معنى په بيت الخلاء سره كوئ نو بيا خو په ازالة الخفاء ج ۲صـ۸۲) كې شاولي الله رحمه الله داسې ليكلي دي چې (مذهب عمر بمنزله متن است ومذاهب اربعة بمنزلة شروح ) نو ايا دلته هم دمذهب معنى په ليټرين سره كوئ؟ حالانكه دلته دليټرين ترجمه كفر دى، همدارنګه امام نووي رحمه الله كې فرمايي چې (الذي يعرف من مذهبهم)صـ ٥) همدارنګه امام نووي په شرح د مسلم شريف صفـ ۳۳ جـ ۲ كې ليكي چې وهو مذهب معاذ بن جبل ومعاويه رضي الله عنهما نو ايا دلته هم بيا دمذهب معنى په ليټرين سره كوئ؟ حالانكې دلته دليټرين معنى كفر دى ، او همدارنګه دلامذهبه ثناء الله امر تسري رساله ده په نوم (اہل

حدیث کا مذہب) یعني د اهل حدیثو مذهب، دلته هم بیا وو ایئ چې د اهل حدیثو لیتهرین، د دې جواب نور تفصیل د (۳۸) پوښتنې لاندې را روان دی.

## دریم اعتراض: آیاد تقلید او د اتباع په منځ کې فرق شته او که نه؟

کله چې څوک غیر مقلدینو ته وو ایي چې تاسو خو هم د سلفو تقلید کوئ، نو دوي جواب کوي چې مونږ تقلید نه کوو اتباع کوو، او د تقلید او د اتباع په مابین کې فرق داسې کوي چې: تقلید قبول قول الغیر بلا دلیل ته وایي او اتباع قبول قول الغیر مع الدلیل ته وایئ اول ته ناجایز او دوهم ته جایز وایئ.

اول رد: الله تعالی خو د غیر الله د اتباع څخه منعه کړې ده ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ﴾ او د تقلید د غیر الله څخه یې منعه نه ده کړې، یعني د تقلید د لفظ سره منعه نه ده راغلې (۲) همدارنګه دوي په دې فرق کې تقلید کوي، یعني په دلیل کې نه ایت پیش کوي او نه حدیث، بلکې وایي چې ابن القیم رحمه الله د تقلید او د اتباع په مینځ کې فرق کړی دی.

(۳) لکن مونږ وایو چې د تقلید، اتباع، اطاعت، او اقتداء په مابین کې فرق نشته او په عدم فرق زمونږ سره ډیر دلایل دي.

## اول دلیل له قران کریم څخه

په قرآنکریم کی الله جل جلاله فرمایي[وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَاأَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ (البقره/۱۷۰).

یعنې چې کله کفاروته وویلی شي چې تاسو د وحې اتباع وکړئ، دوي وو ایي چې مونږ د آباؤ او اجدادو د طریقې اتباع کوو، اوس په دې آیت کریمه کې د اتباع لفظ راغلی دی او مطالبه د دلیل پکې نشته، ځکه چې مشرکینو له خپلو آباو او اجدادو څخه د دلیل مطالبه نه وه کړې او نه ئي د آباؤ او د اجدادو سره دلیل وو.

په بل آيت كريمه كي الله تعالى فرمائي[وَاتَّبَعُوا اَمرَ فِرعَونَ الآيه] يعني هغوي پيروي وكړه دامر د فرعون ،دلته هم لفظ د اتباع راغلى دى، نه دليل شته او نه مطالبه د دليل.

په بل آيت كې الله تعالى فرمائي [وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيطٰنِ] دلته هم د شيطان د اتباع ذكر دى، او دليل او مطالبه د دليل ورسره نشته.

**دوهم دليل له حديث مباركه څخه:** په حديث كې هم د اتباع ذكر شته او مطالبه د دليل ورسره نشته، مثلاً نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلى دي چې (والعاجز من اتبع نفسه هواها) نو عاجز سړي نفس د خواهش تابع كړى دى او د خواهش سره نه دليل شته او نه مطالبه د دليل شته.

**دريم دليل اجماع د اهل لغتو:** د لغتو په كتابونو كى هم د دوي په مابين كې فرق نه شته. په نامي شرح د حسامى صفـ ۱۹۰ كې راغلي دي چې (التقليد اتباع الانسان غيره ...الخ/او پـه كشـاف اصطلاحات الفنون صفـ۱۱۷۸ كې راځي چې: التقليـد اتبـاع الانسـان الـخ /او په شرح د منار مصري صفـ۲۵۲ للعلامه ابن الملك وعلامه عيني كې ليكي چې: التقليد عبارةٌ عن اتباعه فى قوله وفعلـه فنقـول: لـوكان الاتبـاع مغـايراً للتقليـد (مقـدم) لمـا اورده اللغويـون فى تعريـف التقليد(تالى) لكن التالي باطل فالمقدم مثله. رشيد احمد گنگوهي رحمه الله فرمايي چې: التلقيد والاتباع مترادفان (الارشاد الى سبيل الرشاد صـ ۲۷)

۴- مونږ غير مقلدينو ته وايو چې تاسې هم په بعضو ځايونو كي اتباع او تقليد يو گڼئ، مثلاً تاسو چې د مقلدينو په خلاف كوم آيت پيش كوئ [بَل نَتَّبِعُ مَاأَلفَينَا عَلَيهِ آبَائَنَـا] دلتـه اتباع راغلې ده لكن تاسو يې معنى په تقليد سره كوئ.

**دلامذهبو د دليل څخه جواب:** (۱) د اخبره ابن قيم رحمه الله د ابو عبدالله بن خوازمنداد البصرى المالكي په حواله باندې ليكلى ده، علامه ابن فرحون رحمه الله د ده په باره كښې ليكلي دي چې (ولـم

يكن بجيد النظر ولاقوي الفقه (الى قوله) وكان يجانب الكلام وينافر اهله حتى يؤدى ذلك الى منافرة المتكلمين من اهل السنة ويحكم على الكل منهم بـانهم مـن أهـل الأهـواء .) [الديباج المذهب ص ۲٦٨].

دده رأيه عمده نه وه ،اوپه فقه کې هم کمزوری وو، بیا مخکښې لیکي چې: ده دعلم کلام څخه اجتناب کولو، او دمتکلمینو څخه ئې نفرت کولو، تردې چې په ټولو اهل سنتو باندې ئې دبدعت حکم کړی وو.

(۲) دده دا خبره دتقليد مذموم په باره کې ده، دتقليد ممدوح په باره کې نده.

(۳) دده دا خبره غلطه ده ځکه چې ده ویلي دي چې تقلید دالله په دین کې ناجایز دی، نو ددې څه معنی ده؟که هغه تقلید ئې مراد وي چې په عقایدو کې وي نو په هغې کې زمونږ بحث ندي، او که دغیر مجتهد تقلید ئې مراد وي چې دلاعلمي په وجه دمجتهد طرف ته رجوع کوي، نو بیا خو دا دقرآن او د حدیث څخه صریح بغاوت دی.

(۴) دابن خوازمنداد ددې خبرې منل دقرآن ایت دی؟ او که درسول الله ﷺ حدیث دی او که دیو امتي تقلید دی؟ څرنګه دمجتهد تقلید ته شرک وایئ او دغیر مجتهد (ابن خوازمنداد یا دابن قیم) تقلید ته جایز وایي.

فانقيل: چې اشرف علي تهانوي رحمه الله د تقليد او د اتباع په مابين کې فرق کړی دی؟

قلنا: اشرف علي تهانوي رحمه الله دتقليد او د اتباع په مابين کې د فرق قائل نه دی، په يو ځای کې فرمايي چې: "تقلید کہتے ہے اتباع کو" (شان صحابہ ص۔ ۲۶۹)

د اشرف علي تهانوي رحمه الله دخبرې معنی دا ده چې کله د دوو لفظونو معنی یو وي، ددې معنی لپاره د دواړو الفاظو استعمال صحیح وي، خو د خلکو په ژبه د یو لفظ استعمال عام شوی وي. لکه حمد او نعت دواړه ثناء او صفت ته وايي خو د خلکو په ژبه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په باره کې د نعت کلمه عامه شوې ده، د حمد د کلمې استعمال ورته صحیح دی، خو څوک یې نه استعمالوي، همدارنګه څوک چې د امام په اقتداء کې لمونځ کوي هغه ته دمقتدي، متّبع، مقلد او مطيع هريو استعمالول، صحيح دی، لکن د خلکو په ژبه ورته

دمقتدي، استعمال عام شوی دی، ددې نورو درې وارو الفاظو استعمال ورته صحیح دی خو څوک يې نه استعمالوي، نو د الله تعالی او د رسول صلی الله علیه وسلم د خبرې منلو ته د خلکو په ژبه د اتباع کلمه عامه شوې ده او د مجتهد د خبرې منلو ته د خلکو په ژبه د تقلید کلمه عامه شوې ده او په نفس الامر کې د تقلید او د اتباع په مابين کې فرق نه شته د الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم د خبرې منلو ته د تقلید بالمعنی اللغوي او د اتباع بالمعنی اللغوی هر يو لفظ استعمالول صحيح دي.

**څلورم اعتراض: ايا تقليد بې دليله خبرې منلو ته وايي؟** لا مذهبان اعتراض کوي چې د احنافو په مشهور کتاب (مسلم الثبوت/ص۲۸۹) او نورو کتابونو کې د تقليد تعريف داسې شوی دی چې: (التقليد أخذ قول الغير من غير حجة) يعنې له دليل څخه پرته د بل چا د خبرې منلو ته تقليد وايي، نو اوس کومو حضراتو فقهاوو چې له مسايلو سره دلايل وړاندې کړي دي دوي مقلدين نه شول، او نه د دوي پيروي تقليد شوه. لکه: امام ابويوسف، امام محمد، امام زفر، امام طحاوي، علامه عيني، حافظ ابن الهمام، امام مرغيناني، امام کاساني، امام سرخسي، امام کرخي، امام جصاص او ملا علي قاري رحمهم الله او نور. ځکه چې دا ټول حضرات د مسايلو دلايل هم بيانوي، او د تقليد تعريف دا دی چې: خالص په نېک ګمان بغير د دليله د بل چا خبره ومنې.

**قلنا :** دا اعتراض له ډېرو وجوهو څخه بالکل غلط دی: لومړی وجه دا ده چې: لامذهبان چې کله دا اعتراض کوي نو د مسلم الثبوت پوره عبارت نه رانقلوي، که پوره عبارت رانقل کړي، نو بيا هيڅ شبهه پکې نه پاتې کيږي. او کېدی شي چې په ناقص عبارت رانقلولو کې دوي د ځان له پاره خير ګوري. د مسلم الثبوت پوره عبارت داسې دی چې: ( فصل : التقليد العمل بقول الغير من غير حجة كأخذ العامي والمجتهد من مثله . فالرجوع الى النبي صلى الله عليه وسلم او الى الاجماع ليس منه. و كذا رجوع العامى الى المفتى والقاضى الى العدول لا يجاب النص ذلك عليهم لكن العرف على ان العامى مقلد للمجتهد. قال الامام و عليه معظم الاصوليين .. الخ) [مسلم الثبوت/ ص ۲۸۹].

**ترجمه:** فصل دی په بیان ددې کې چې تقلید دې ته وایي چې بغیر د دلیل څخه د بل چا په قول باندې عمل وکړئ، لکه عامي او مجتهد چې د خپل هم مثل یعنې د عامي او د مجتهد په قول باندې عمل وکړي، نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د اجماع طرف ته رجوع کول تقلید نه دی. او همدارنګه د عامي رجوع د مفتي طرف ته او د قاضي رجوع د عادلانو طرفته، هم تقلید نه دی، ځکه چې په دوي باندې داسې کول نص واجب کړي دي. مګر عرف په دې روان دی چې عامي د مجتهد مقلد دی. امام الحرمین فرمایي چې: په دې باندې اکثره اصولیان دي.

نو د مسلم الثبوت د ملاصیب رحمه الله د عبارت خلاصه داشوه چې: د چا قول چې د چا له پاره حُجت وي د هغه له پاره دده د خبرې منل تقلید نه دی. لکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د خبرې منل تقلید نه دی، ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمان حُجت دی. همدارنګه اجماع هم حجت دی، نو د اجماع منل هم تقلید نه دی. همدارنګه د ( فاسئلوا اهل الذکر ) و غیره آیتونو مطابق د عامي ( غیر مجتهد ) له پاره د مفتي (مجتهد) د قول منل حجت دی. نو داهم تقلید نه شو. او همدارنګه قاضي چې د عدولو طرف ته رجوع کوي نو د ﴿مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ﴾ او د ﴿ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ﴾ و غیره نصوصو مطابق دا هم تقلید نه شو. بلکې تقلید یوائې او یوائې دا شو چې د چا قول چې حُجت نه وي د هغه په قول باندې عمل وکړئ.

لکن په عرف کې، او د اکثرو اصولیانو په نیز اګرکه د مجتهد قول د عامي ( غیر مجتهد ) له پاره حُجت دی، خو بیا هم ددې منلو ته تقلید وایي انتهی، لهذا غیر مجتهد چې د مجتهد تقلید کوي نو په ده باندې د (من غیر حجّة) تطبیق داصولیانو ددې واضح عبارت څخه غفلت دی.

دو همه وجه داده چې: د تقلید په تعریف کې د: مِن غیر مطالبة دلیلٍ او د :من غیر تأمّلٍ فی الدّلیل او د بلا نظر فی الدّلیل ،الفاظ هم راغلي دي. ددې معنا داده چې دلیل په خپل ځای کې موجود دی، لکن مقلد ددې دلیل مطالبه نه کوي. او د هغه خاص دلیل فکر ورسره نه وي د کوم څخه چې مجتهد استنباط کړی دی. ځکه چې په ( الدّلیل ) کې الف لام عهدي دی، هغه دلیل ترینه مراد دی کوم چې مجتهد د

استنباط په وخت کې ملحوظ کړی دی. هغه دلیل ترینه نه دی مراد کوم چې مقلد د خپل طرف څخه پېش کوي، دمقلد د هغه دلیل سره کار نه شته کوم چې مجتهد داجتهاد په وخت کې ملحوظ کړی وي، (استدلالاً لاتحقیقاً)

خلاصه دا چې د تقلید تعریف یوائې هغه نه دی کوم چې د مسلم الثبوت او دنورو په حواله باندې ذکر کولی شي. بلکې نور تعریفونه یې هم شته، چې په هغې کې داسې راغلي دي چې : مقلد مطالبه د دلیل نه کوي، اګرکه دلیل په خپل ځای کې موجود وي.[کما فی کشاف اصطلاحات الفنون / ص ۱۱۷۸ و شرح منار مصري / ۲۵۲ و نامی شرح حسامی / ص ۱۹۰ ]

دریمه وجه داده چې: په دې تعریف کې تفصیل دی. ځکه چې په دې تعریف کې دوه مقامه دي. اول دا چې غیر مجتهد د بل چا قول ومني، یوائې د نېک ګمان او داعتماد په بنیاد، دلیل وي او که نه وي. دوهم دا چې دلیل اګرکه په خپل ځای کې موجود وي لکن مقلد د مجتهد د خبرې په منلو کې د دلیل محتاج نه وي. او په دواړو مقامونو باندې ښه ډېر دلایل دي.

د اول مقام له پاره وګوره : بخاری / ج ۲ / ص ۱۰۷۲ / مسلم / ج ۲/ ص ۱۲۰/ طیالسی / ص ۷/ نووی شرح مسلم / ج ۲ / ص ۱۲۰/ بخاری / ج ۲ / ص ۷٤۸ / تذکره / ج ۱ / ص ۲٤/ تدریب الراوی/ ص ۲۰۵/ طبقات ابن سعد/ ج ۲ / ص ۲۵/ بخاری / ج ۲ / ص ۹۹۷/ ابوداوود / ج ۲ / ص ٤٤ / ترمذی / ج ۲ / ص ۳۰/ طبقات ابن سعد / ج ۷ / ص ۱۲۸ / تذکره / ج ۱ / ص ۷٦ .

ددې حوالو والا احادیث لفظاً وروسته راراوان دي. د دوهم مقام له پاره هم ډېر دلایل دي چې وروسته به راشي. ان شاء الله

**پنځم اعتراض: مقلدین به مناظرو کې ولې قران او سنت پیش کوي؟** لامذهبیان اعتراض کوي چې دغیر مجتهد کار خو صرف تقلید د مجتهد دی نو دوي په مناظرو کې ولی د قران او سنت دلایل پیش کوي؟

**قلنا(۱):** دمقلد دوه قسمه دلائل دي، يو دخپل عمل لپاره او بل دهغه چا لپاره چې دمجتهد څخه مخالف وي او په مجتهد اعتراض کوي، نو د مجتهد قول دليل دی دخپل عمل لپاره او چې کله مخالف دمجتهد په قول اعتراض وکړي نو بيا ددليل د پيش کولو ضرورت وي، چې دمجتهد د قول بنياد دا دليل دی، نو دمجتهد قول دمقلد لپاره دليل دی، کله چې دمقلد سره بحث وي او هغه پوښتنه وکړي چې ددې مسئلې دليل څه دی ؟ نو ته به ورته وايئ چې امام ابو حنيفة رحمه الله داسې فرمايلي دي او چې کله دمخالف سره بحث وي نو هغه دامام صاحب په مسئله اعتراض کوي چې دامام صاحب ددې قول بنياد څه شی دی ؟ نو هغه ته مونږ وايو چې دامام صاحب رحمه الله ددې مسئلې بنياد فلان ايت يا فلان حديث يا اجماع او يا قياس دی، لکه کله چې زمونږ د مسلمان سره بحث وي نو دنبي کريم صلی الله عليه وسلم قول ورته په دليل کې پيش کوو او که د غير مسلم سره مو بحث وي نو هغه وايي چې دنبي کريم صلی الله عليه وسلم ددې قول بنياد څه شی دی؟ د کوم حکمت په بنياد نبي صلی الله عليه وسلم داسې ويلي دي؟ نو هغه ته به د نبي صلی الله عليه وسلم د قول بنياد پيش کوو.

**قلنا(۲):** مخکې مونږ واضحه کړه چې په تقليد کې مطالبه ددليل نشته (من غير مطالبة الدليل) او په الدليل کې الف لام عهدي دی هغه دليل ترېنه مراد دی کوم چې مجتهد داستنباط په وخت کې ملحوظ کړی وي، هغه دليل نه دی مراد کوم چې مقلد دخپل طرف څخه پيش کوي او يا داسې ووايه چې په تقليد کې علم بالدليل ممکن دی صرف مطالبه ددليل نه وي، نو دعدم مطالبة الدليل او دعلم بالدليل په مينځ کې منافات نه شته (احسن الفتاوی ج۱ صـ ۴۰۸)

مولنا زکريا رحمه الله فرمايي چې: *تقلید یہ ہے کہ جس کے تقلید کے جائی اس کے قول کو بلا دلیل مان لی' چاہے اسکو دلیل بھی معلوم ہو جائے (شریعت وطریقت کا تلازم ص- ۷۳)*

داسې هم ويلی شئ چې دلته پنځه امور دي (۱)مسائل (۲)دلائل(۳)علم بالمسائل (۴)علم بالدلائل(۵)استنباط المسائل من الدلائل، دا پنځم امر تر مجتهد پورې خاص دی، علم بالمسائل او علم بالدلائل دمجتهد او مقلد دواړو راتللی شي.

## ایا د مجتهد څخه مطالبه د دلیل حرامه ده؟

فانقیل: چې د تقلید په تعریف کې عدم د مطالبې د دلیل معتبر دی او تقلید واجب دی، نو عدم د مطالبې د دلیل واجب شو او ضد د واجب حرام وي، نو د مجتهد څخه مطالبه د دلیل حرامه شوه، حالانکې د مجتهد څخه مطالبې د دلیل شوې دي؟

قلنا: مطالبه د دلیل په دوه قسمه ده، یو دا چې مقلد د مجتهد څخه مطالبه د دلیل وکړي د تردید په طریقه دا ممنوعه ده، دوهم دا چې مقلد د مجتهد څخه مطالبه د دلیل وکړي د زیادت اطمنان لپاره او دا مطالبه جایزه ده، لکه امتیان چې د خپل پیغمبر څخه د تردید په طریقه مطالبه د دلیل نه شي کولی او د زیادت اطمنان لپاره یې کولی شي.

## ایا دا څلور اصول یوازې د مجتهد لپاره دي؟

اعتراض: کله چې مونږ ووایو چې د اهل السنة والجماعة اصول څلور دي نو غیر مقلدین اعتراض کوي چې دا څلور اصول خو د مجتهد لپاره دي د مقلد لپاره خو ندي، نو جواب دادی چې دا څلور اصول باعتبار الایمان والعمل والعلم والتسلیم د مقلد او مجتهد دواړو لپاره دی، البته باعتبار الاستنباط بیا صرف د مجتهد لپاره دي، یو بل اعتراض هم دفعه شو، غیر مقلدین کله وایي چې ایا قرآن او حدیث صرف د مجتهد لپاره دی د مقلد به ورسره کار نه وي؟

قلنا: په قران او حدیث کې د احکامو ایتونه او احادیث ایماناً وعلماً وعملاً د مجتهد او مقلد دواړو لپاره دي او استنباطاً یوائې د مجتهد لپاره دي.

**شپږم اعتراض: د لامذهبو شیخ الکل نذیر حسین دهلوي اعتراض کوي چې:** د احنافو د اصولو په کتابونو کې د تقلید تعریف داسې شوی دی چې: ( التقلید، العمل بقول الغیر من غیر حجةٍ ، یتعلق بالعمل، والمراد بالحجة حجةٌ من الحُجج الاربع ).

بیا لیکي چې: د مقلدینو د اصطلاح مطابق واضحه شوه چې تقلیدي عمل د ادله اربعه وو څخه خارج دی او کوم عمل چې د ادله اربعه وو څخه خارج وي هغه عمل شرعاً تکلیفي عمل نه وي، بلکې مردود او باطل وي. نو نتیجه دا شوه چې تقلیدي عمل باطل او مردود عمل دی. او مخکې لیکي چې: الحمد لله چې دا اصطلاح د مقلدینو څخه ثابته شوه چې تقلید څه شرعي اصل نه لري، او دا په مقلدینو باندې سخت حُجت دی. الخ. [فتاوی نذیریه /ج ۱/ص ۱۸۴].

**قلنا:** چې په دې تعریف کې د (من غیر حجةٍ) معنا داده چې: د غیر مجتهد له پاره د مجتهد خبره حجت ده، لکن د مجتهد قول دده له پاره نه قرآني آیت دی، او نه د حدیث متن دی، او نه د اجماع مقوله ده، او نه د غیر مجتهد په حق کې قیاس او اجتهاد دی، ځکه چې هغه نه پوهیږي. مثلاً یو مجتهد مسئله بیان کړه چې: که د یوې پیغلې نجلۍ او یا د یوې مړې شوې ښځې په تیونو کې الله جل جلاله شودې پیدا کړې او دا یو ماشوم ته ورکړی شوی نو ددې څخه رضاعت ثابتیږي. [فتاوی قاضیخان /ج ۱/ص ۱۸۹].

نو دا مسئله د مقلد له پاره نه قرآني آیت دی، او نه د حدیث متن دی، او نه اجماعي مقوله ده او نه د مقلد په حق کې قیاس دی، بلکې دا د مجتهد قیاس دی، او غیر مجتهد یې په منلو باندې مکلف دی.

**اوم اعتراض-** **وابیان وایي چې موږ تقلید نه کوو بلکې تحقیق کوو:** لامذهبیان اعتراض کوي چې موږ د هرې مسئلې علم ددې مسئلې د دلیل سره حاصلوو تقلید نه کوو، او که پوښتنه تر ینه وشي چې مقلد نه یې نو بیا مجتهد یې؟ نو بیا ځانته مجتهد هم نه شي ویلي لکن وایي چې زه تحقیق کوم، نو ځانته محقق وایي.

**قلنا:** چې تحقیق عبارت دی د اثبات المسئلة بالدلیل څخه او تدقیق عبارت دی د اثبات الدلیل بالدلیل څخه، نو محقق به پخپله د دلیل څخه د مسئلې استنباط کوي، د بل چا دلیل به نه رانقلوي، ځکه چې د بل چا د دلیل رانقلول تحقیق نه دی بلکې د تحقیق نقل دی او د تحقیق نقل تقلید دی.

**انم اعتراض: ايا د دتقليد له وجې په دين کې فرقې جوړې شوې؟** لامذهبيان اعتراض کوي چې د تقليد په وجه په دين کې د حنفيت، شافعيت، مالکيت او حنبليت فرقې جوړې شوې او الله جل جلاله فرمايي چې: (ولا تتفرّقوا).

**قلنا:** معترض د روافضو په شان په دين او مذهب کې فرق ندی کړی همدارنګه يې د اختلاف او افتراق په منځ کې فرق ندی کړی، حالانکې د دوي په منځ کې فرق دی، دين د منصوصاتو څخه عبارت دی او مذهب د اجتهادياتو څخه عبارت دی، دين منزل دی او مذهب لاره ده، همدارنګه يو افتراق دی او بل اصطلاحي اختلاف دی، اختلاف په اجتهادياتو کې راځي چې: لارې او مذهبونه جُدا جُدا وي، مګر دين منزل او مقصود يو وي چې عمل بالشريعت دی، او دې ته رحمت ويلی شوی دی. مرفوعا: (اختلاف امتي رحمةٌ) عقد الفريد صـ۱۱۲) بحواله جامع الاصول ج اصـ۱۸۲، فيض القدير ج اصـ۲۱۲) په بعض رواياتو کې راځي چې يوه ورځ هارون الرشيد امام مالک رحمه الله ته وفرمايل چې زما سره عراق ته لاړ شه زه به خلک ستا په ليکلي شوي کتاب موطأ باندې راجمع کړم، لکه حضرت عثمان رضي الله عنه چې خلک په قرآن باندې راجمع کړل، نو امام مالک رحمه الله ورته وفرمايل چې: واما حمل الناس على الموطأ فليس الى ذلك سبيل لأن اصحاب رسول الله ﷺ افترقوا بعده في الأمصار، فحدثوا أهل الأمصار، فعند أهل كل مصر علم وقد قال ﷺ اختلاف أمتي رحمة (عقدالفريد صـ۱۱٤) يعني په موطأ باندې د خلکو راټولولو ته (دجواز) لاره نشته ځکه چې د نبي ﷺ څخه وروسته د نبي ﷺ صحابه مختلفو ښارونو ته تللي دي او حديثونه يې ورته بيان کړي دي نو د هر ښار والا سره علم دی او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې زما د أمت اختلاف رحمت دی.

او افتراق په منصوصاتو کې راځي چې: لارې او مذهبونه هم جُدا جُدا وي او دين منزل او مقصود هم جُدا جُدا وي.

## په لغوي معنی سره اختلاف په درې قسمه دی

**(۱) بين الكفر والاسلام (۲) بين السنة والبدعة (۳) بين المجتهدين:**

نو د اسلام او د کفر په منځ کې افتراق دی، پدې کې يو کافر بل مؤمن وي، دا دحق او باطل مقابله ده د بدعت الحاد، او د سنت په منځ کې هم افتراق دی،پدې کې يو اهل سنت او بل اهل بدعت وي، دا هم دحق او دباطل اختلاف دی، مګر د مجتهدينو په مابين کې په اجتهادياتو کې اختلاف دی او دې ته فرقې نه شي ويل کېدلی بلکې دا يوه فرقه ده او دا د خطا او د صواب اختلاف دی او د رحمت سبب دی.

په [مسلم / ج ۲ / ص ۳۳ ] او نورو ځايونو کې راځي چې: ( و هو مذهب معاذ بن جبل و معاوية رضی الله تعالیٰ عنهما ) نو د مختلفو صحابه وو مختلف مذاهب وو، نو آيا دلته داسې ويلی شي چې ددغو صحابه وو مختلفې فرقې وې ؟

ددې ډېر مثالونه دي. مثلاً وګوره : ] مقدمه مسلم / ص ۱۳ و ص ۵ / و کتاب الاعتبار / ص ۱۱/ طبقات / ج ۶/ ص ۱۸۲ / الجنه / ص ۴۰ و غيره ].

**دجواب تشريح:** د مجتهدينو په مابين کې چې کوم اجتهادي اختلافات دي دا ټول اجتهادي اختلافات دصحابه وو رضی الله عنهم په مابين کې موجود وو، نو دامامانو داختلاف دپاره منشأ دصحابه کرامو اختلاف دی او دصحابه کرامو اختلاف رحمت دی وقال رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصحابی کالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم) په احاديثو کې دصحابه وو د اجتهادي اختلاف لپاره ډېر مثالونه دي شاه ولی الله رحمه الله فرمايي چې : (وقدكان بعض الصحابة والتابعين ومن بعدهم من يقرأ البسملة ومنهم من لايقرأ ومنهم من يجهر بها ومنهم من لا يجهر بها، وكان منهم من يقنت فی الفجر ،ومنهم من لايقنت فی الفجر ، ومنهم من يتوضأ من الحجامة والرعاف والقی ، ومنهم من لا يتوضأ من ذلک، ومنهم من يتوضأ من مس الذكر ومس النساء بشهوة ، ومنهم من لايتوضأ من ذلک، ومنهم يتوضأ من ما مست النار، ومنهم من لايتوضأ من ذلک، ومنهم من يتوضأ من اكل الابل ومنهم من لايتوضأ منها) په صحابه وو او تابعينو کې به بعضو (په لمونځ کې) بسم الله لوستله او بعضو به نه لوستله بيا چې چا لوستله نو بعضو به جهراً لوستله او بعضو به خفيةً لوستله، بعضو به قنوت فی الفجر لوستلو او بعضو به نه لوستلو، بعضو به دحجامت او درعاف او دقی ځخه اودس کولو او بعضو به نه کولو، بعضو به دمس الذكر

او د مس المرأ ښځه او دس کولو او بعضو به نه کولو، بعضو به داوېن د غوښې د خوراک ښځه وروسته اودس کولو او بعضو به نه کولو. همدارنګه مولانا زکریا رحمه الله په کتاب الاعتدال فی مراتب الرجال کې یو څو مثالونه ذکر کړي دي: ۱- د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په نیز په مس الذکر اودس ماتیږي او د حضرت علي او د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنهما په نیز نه ماتیږي. ۲- د عمر او د عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما په نیز باندې دژوندیو په ژړا مړي ته تکلیف رسیږي، او د حضرت عایشې رضی الله عنها په نیز نه رسیږي، ۳- د قضاء شوو روژو په باره کې د حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما په مابین کې په تتابع او عدم تتابع کې اختلاف دی. ۴- د جمهورو صحابه وو او د ابو هریرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په مابین کې د جمعې په ورځ د عطرو د استعمال په وجوب او په عدم وجوب کې اختلاف دی، د جمهورو په نیز مستحب دی او د ابو هریرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په نیز واجب دی. ۵- وضوء من مامست النار د بعضې صحابه وو په نیز شته او د خلفاء راشدینو او د جمهور صحابه وو په نیز نشته. ۶- د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په نیز په تیمم کې مسح الیدین الی المرفقین دی او د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په نیز باندې الی الرسغین دی ۷- د جمهورو صحابه وو په نیز که مقتدیان دوه وو نو امام به ترې مخکې ودریږي او د بعضو صحابه وو په نیز باندې به په منځ کې ودریږي. ۸- عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما به د غسل په وخت کې زنانه وو ته د کوڅیو د سپړلو امر کولو حضرت عایشې رضی الله عنها به نه کولو او فرمایل به یې: چې ولې ورته امر نه کوئ چې ویښته وخروي. ۹- د جمهورو صحابه وو په نیز باندې په طواف کې رمل سنت دی او عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما به فرمایل چې پیغمبر علیه السلام رمل اتفاقا کړی دی، څوک چې د دې په باره کې تفصیل غواړي نو د ترمذي اول جلد ته دې مراجعه وکړي.

امام شاه ولی الله رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې اختلاف اسباب او عوامل بیانوي او فرمایي چې: ثُمَّ اِنَّهُمْ تَفَرَّقُوْافِي الْبِلَادِ وصَارَ کُلُّ وَاحِدٍ مُقْتَدٰي نَاحِيَةٍ مِنَ النَّوَاحِيْ (۱).

یعنې بیا دغه مجتهدین صحابه رضی الله عنهم په مختلفو وطنونو کې خپاره شول او دهرې علاقې خلکو دیو یو صحابي تقلید شروع کړو. (ددې پوره تفصیل به داتم اعتراض لاندې راشي.

۱-الزامي جواب: غیر مقلدین چې ددې له وجې تقلید پرېدي چې دتقلید له وجې په دین کې فرقې جوړېږي نوبیا خپله ولې نوې نوې فرقې جوړوي؟د(۲۵) سوال دجواب لاندې وګورئ چې دغیر مقلدینو څومره فرقې دي.

۲-الزامي جواب: داامامانو رحمهم الله اختلاف دصحابه وو رضی الله عنهم دا ختلاف څخه راپیدا شوی دی، لکن غیر مقلدین دشیعه ګانو په شان دصحابه وو څخه تښتي، ددوي علماء لیکي چې دصحابه وو اقوال په دین کې حجت نه دي (احسن الکلام ج ۱ص ۱۸۸، دلیل الطالب ص ۶۱۷، الحق الصریح ج ۲ص ۴۵۴، فتاوی الدین الخالص ج ۱ص ۶۵، تمام المنه للالبانی ص ۱۲۹،) نو کله چې تاسو دصحابه وو اقوالو ته حجت نه وایئ نو ستاسو ددې لاندې اختلافاتو منشأ څه ده: ۱- شوکانی او صدیق حسن خان لیکي چې په مانځه کې ستر عورت ضروري نه دی او وحید الزمان لیکي چې ضروري دی، ۲-نواب صدیق حسن خان لیکي چې په اذان باندې داجرت اخستل جایز نه دي او وحید الزمان لیکي چې جایز دي. ۳- وحید الزمان لیکي چې دمؤذن دپاره دا شرط دی چې نربه وي او نواب صدیق حسن خان لیکی چې دا ورته شرط نه دی. ۴-نواب صدیق حسن خان لیکي چې اذان واجب دی او وحید الزمان لیکي چې سنت دی ۵- وحید الزمان لیکي چې د زانیې روپۍ حرامې دي او وحید الزمان لیکي چې که فاحشه توبه وباسي مال یې حلال دی. ۶-وحید الزمان تعویذونو ته جایز وایي او نور لامذهبه علماء ورته ناجایز وایي. ۷- نواب صدیق حسن خان لیکي چې په مقاربت باندې حج نه فاسدیږي او وحید الزمان لیکي چې فاسدیږي ۸.- دتراویحو په ختم کې دسورة اخلاص درې ځلې لوستل دبشیر احمد قنوجي په نیز بدعت دی او دوحید الزمان په نیز جایز دی، ۹ - وحید الزمان لیکي چې دذهني ارام لپاره دموسیقۍ اوریدل جایز دي او په ودونو کې مستحب دی او دنواب صدیق حسن خان په نیز ناجایز دی ۱۰- وحید الزمان لیکي چې دمیقات څخه مخکې احرام جایز دی او نواب صدیق حسن خان لیکي چې ناجایز دی.

**تنبيه**: اكثر غير مقلدين په دې حديث اعتراض كوي چې اصحابي (كالنجوم بأيهم أقتديتم أهتديتم) ضعيف دى، حالانكې اول خو ددې حديث معنى د قرآن څخه ثابته ده او دوهم دا چې دې حديث ته تلقي بالقبول هم حاصله ده او دريم دا چې دا حديث په صحيح سند هم روايت شوى دى:

- حدثنا القاضى ابو على (امام ذهبي ورته الامام العلامه، الحافظ برع فى الحديث متنا واسناداً)
- حدثنا ابو الحسين (حافظ ابن حجر فرمايي: ثقة، ثبت)
- وابو الفضل (يحيى بن معين او امام ذهبي فرمايي چې: ثقة حافظ)
- قالا حدثنا ابو يعلى (خطيب بغدادى فرمايي چې: احاديث يې حسن دي)
- حدثنا ابو على السنجى (خطيب بغدادي فرمايي چې شيخ او ثقه دى)
- حدثنا محمد بن محبوب (علامه ذهبي فرمايي چې ثقة او حافظ وو)
- حدثنا الترمذي (صاحب الجامع دى)
- حدثنا الحسن بن الصباح (امام احمد فرمايي چې ثقه وو ابن حجر فرمايي چې صدوق وو)
- حدثنا سفيان بن عيينه (دا خو صحيح البخاري راوي دى)
- عن زايدة (ابو حاتم، نسائى، او ابن حجر فرمايي چې ثقه دى)
- عن عبد الملک بن عمير (امام ذهبي، ابو حاتم او ابن حجر ورته ثقه ويلي دي)
- عن ربعي بن حراش (ابن سعد، ذهبي او ابن حجر ورته ثقه ويلي دي)
- عن حذيفة رضى الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اقتدوا باللذين من بعدى أبى بكر وعمر، وقال: أصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم (الشفاء باحوال المصطفى للقاضى عياض، القسم الثانى: فيما يجب على الانام من حقوقه، الباب الثالث: فى تعظيم أمره ووجوب توقيره وبره (رقم الحديث صـ ٦١)

**نهم اعتراض: ایا مقلدین د قران او سنت په مقابله کې د امامانو پسې روان دي!** غیر مقلدین وایي چې: موږ په قرآن او په سُنّت باندې عمل کوو، او تاسو په امامانو پسې روان یئ!

**قلنا:** (۱) مقلدین هم په قرآن او په سنت باندې عمل کوي، خو د یو ماهرِ شریعت یعنې د مجتهد په رهنمایی کې او غیر مقلدین خپله په قرآن او په سنت نه پوهیږي، ځکه چې مجتهدین نه دي، او نه د بل مجتهد رهنمایي مني، نو دوي په کتاب او په سنت باندې عمل نه شي کولی.

د مقلِد مثال د هغه مریض دی چې خپله ډاکټر نه دی، او د طب د کتابونو څخه خپل علاج د یو ماهر سپېشلسټ ډاکټر په رهنمایي کې کوي. نو مقلدین په قرآن او په سنت باندې عمل کوي، مګر د یو داسې ماهرِ شریعت په رهنمایي کې چې د هغه مهارت او مجتهد والی په شرعي دلیل یعنې په (اجماع) سره ثابت دی.

او د لا مذهبو د مولویانو مثال د هغه مریض دی چې خپله ماهر ډاکټر نه دی، او د طب د کتابونو څخه خپل علاج د یو ماهر په رهنمایي کې نه کوي، بلکې په خپل سر لګیا وي او د علاج کولو دعوا کوي، او د ماهرو سپېشلسټانو ډاکټرانو او له دوي څخه د علاج کوونکو مریضانو پسې ښکنځلې کوي، او خلک علاج کولو ته نه وربرېږدي، او د لا مذهبو د عوامو مثال د هغو مریضانو دی چې خپله ډاکټران نه دي او نه د ماهرو ډاکټرانو په راهنمایي کې د طب د کتابونو څخه خپل علاج کوي. بلکې د طب له کتابونو څخه خپل علاج د مداریانو په رهنمایي کې کوي.

همدارنګه د مقلدینو مثال د هغو ړندو دی چې یو خیرخواه، راه بلد، بینا سړي ته یې لاس ورکړی وي او روان وي، یعنې دوي غیر مجتهدین دي لکن د مجتهدینو پسې روان دي، نو دا به ضرور خپل منزل مقصود ته رسیږي. او د لامذهبو د مولویانو مثال د هغو ړندو دی چې مثلاً له جلال آباد څخه نورستان ته په خپله روان وي، نه چا ته لاس ورکوي، او نه د چا څخه پوښتنه کوي، نو همدارنګه دوي هم مجهتدین او پوهان نه دي او نه د بل پوه پسې ځي او د لامذهبو د عوامو مثال د هغو ړندو دی چې مثلاً له جلال آباد څخه نورستان ته روان وي مګر بل ړوند ته یې لاس ورکړی وي، نو همدارنګه دوي هم غیر مجتهدین دي

او ددې زمانې د کومو ملايانو پسې چې روان دي هغوي هم غير مجتهدين دي نو يو ړوند (غيرمجتهد) د بل ړوند (غيرمجتهد) پسې روان دی، نو دا دواړه قِسمه خلک به ضرور د هلاکت کندې ته غورځيږي.

(۲) و کذلک نقول : چې د لا مذهبو دا دعوه بالکل غلطه ده چې مونږ په قرآن او په سنت باندې عمل کوو. ځکه چې لامذهبه خلک صرف هغه ايت او حديث مني چې ددوي د خواهش سره موافق وي او اکثر ايتونه او حديثونه چې ددوي د خواهش ځخه مخالف وي دهغې منلو ته نه وي تيار، مثلاً په قرآن کريم او په سنت کې يو اصل ذکر شوی دی چې (اجماع) ورته وايي.

الله جل جلاله فرمايي چې: (وَمَنْ يَشَاقِقِ الرَّسولَ مِن بَعدِ مَا تَبَيّنَ لهُ الهُدى وَ يَتّبِع غَيرَ سَبِيلِ المُؤمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلّى) . او حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: ( لاَ يَجتَمِعُ أُمّتِي عَلى الضّلالَةِ ). همدارنګه بل اصل قياس دی. الله تعالى جل جلاله فرمايي چې: ( فَاعتَبِرُوا يَاأُولِي الأَبصَارِ ) . او لا مذهبان له دغو دواړو اصولو ځخه منکر دي. نو که دوي قرآن کريم او سنت منلی نو قرآني او نبوي اصول (اجماع او قياس) به يې منلی، نو ددې نبوي او قرآني اصولو (اجماع او قياس) نه منل په حقيقت کې د قرآن کريم او د سنت نه منل دي.

او همدارنګه په قرآن کريم او په سُنتو کې د فقهاوو او د مجتهدينو ذکر راغلی دی (وأولی الامر منکم) نو که دوي قرآن او سُنّت منلی، نو فقهاء او مجتهدين به يې منلی، نو د فقهاوو او د مجتهدينو نه منل دا د قرآن کريم او د سنتو نه منل دي.

**لسم اعتراض : ايا په عقائدو کې تقليد شته؟** غير مقلدين پوښتنه کوي چې : تاسو ولې په عقايدو کې د امام صاحب رحمه الله تقليد نه کوئ ؟ هلته خو تاسو د ابو منصور ماتريدي رحمه الله تقليد کوئ !

**قلنا**: اوّلاً الزماً : چې تاسو ولې په قرئت کې د امام بخاري رحمه الله تقليد نه کوئ ؟ هلته خو تاسې د قاري عاصم کوفي رحمه الله تقليد کوئ!

و قلنا ثانياً تحقيقاً : چې په غير مجتهد باندې په اجتهادي (غيرواضحو) مسائلو کې تقليد واجب دی، او په عقايدو (واضحو مسايلو) کې د اجتهاد ځه دخل نشته لهذا تقليد پکې واجب نه دی لکن په

دې باندې ځان پوه کړئ چې يو اثبات دعقايدو دى نو په دې کې تقليد نه شته، او يو فهم العقايد من النصوص دى په دې کې تقليد شته او جايز دي.

وقلنا ثالثا: چې مونږ به هر فن کې دهغه فن دماهرينو تقليد کوو اوس يو عقايد دي او بل دعلم الکلام فن دى نو عقايد اجتهاديات ندي، لهذا په عقايدو کې تقليد نه شته البته په فن دعلم الکلام کې مونږ د ابو منصور ماتريدیي تقليد کوو ددې داسې مثال دى لکه حديث او فن اصول الحديث، په احاديثو کې تقليد نه شته لکن په فن داصول حديث کې ددې فن دماهرينو تقليد شته.

**يوولسم اعتراض: چې بيا ځان ته ولې اشعريان يا ماتريديان وايئ؟**

**قلنا:** دا تقليد نه دى بلکې نسبت دى.

**دولسم اعتراض: چې بيا ولې دا نسبت امام ته نه کوئ؟**

**قلنا:** په اجتهادي باب کې دمسايلو مکمل ترتيب او تدوين امام صاحب رحمه الله وکړو اود عقايدو په باب کې يو حنفي (ابومنصور ماتريدي رحمه الله) دامام صاحب څخه د رانقل شوو عقايدو تشريح، ترتيب او تدوين وکړو، او بل شافعي (ابوالحسن اشعرى رحمه الله) دامام شافعي رحمه الله او دامام مالک رحمه الله څخه د رانقل شوو عقايدو تشريح، مکمل ترتيب او تدوين تفصيلا وکړو، په لنډو الفاظو کې داسې ووايه چې که غير مقلد پوښتنه وکړه چې تاسو په عقايدو کې دچا په مذهب يئ؟ نو جواب داسې ورکړئ چې زه په اثبات دعقايدو کې دچا په مذهب نه يم، او په فهم العقايد من النصوص کې دامام صاحب په مذهب يم، او که بيا ووايي چې بيا نو ځان ته ماتريدي ولى وايئ؟ نو جواب وشو چې دا دأدنى مناسبت له وجې او هغه دا چې ابو منصور ماتريدي رحمه الله دامام صاحب څخه رانقل شوو عقايدو ته تفصيل او ترتيب ورکړو.

**دوولسم اعتراض: ايا په تقليد کې ممدوح او مذموم ته تقسيم شته او که هر تقليد واجب دى؟**

**قلنا:** دتقلید د دلایلو په اول دلیل کې به راشي چې په اهدنا الصراط المستقیم کې ممدوح تقلید ذکر شوی دی او په غیر المغضوب علیهم ولاالضالین کې مذموم تقلید ذکر شوی دی، لکه د شودو اطلاق د خرې او دسپیو په شودو هم کیږي او د میښې او غوا په شودو هم کیږي، خو د حلالو حیواناتو شودې حلالې دي او د حرامو حیواناتو شودې حرامې دي، همدرانګه محمود تقلید حلال دی او مذموم تقلید حرام دی، غیر مقلد عبدالسلام رستمي دا تقسیم منلی دی، هغه لیکي چې اهل علمو د تقلید څلور قسمونه لیکلي دي: ۱-تقلید ممدوح. ۲-تقلید مذموم. ۳- مطلق تقلید. ۴-تقلید شخصي (تفسیر احسن الکلام ج ۱ص ۵۵۳) په فتاوی ثنائیه ج ۱ص ۲۵۴ کې غیر مقلد ثناء الله امرتسري او تاریخ اهل حدیث ص ۱۴۶ کې غیر مقلد ابراهیم سیالکوټي هم د اتقسیم لیکلی دی

## د اهل السنة والجماعة دعوی

مختصره دعوه داده چې: ۱-په اجتهادي مسائلو کې ۲-په غیر مجتهد ۳-د مجتهد ۳-تقلید واجب دی.

تفصیل دادی چې مونږ اهل سنة والجماعة (۱) په اجتهادي مسائلو کې (۲) پر مجتهد باندې اجتهاد واجب ګڼو (۳) او په غیر مجتهد باندې د داسې مجتهد تقلید واجب ګڼو چې د هغه مجتهد والی په شرعي دلیل سره ثابت وي (۴) او مذهب ئې اصولا او فروعاً مکمل مدون وي (۵) او مذهب ئې متواتر وي (٦) مونږ مطلق تقلید ته واجب بالذات او تقلید شخصي ته واجب بالغیر وایو، اهل سنت والجماعت په هر فن کې د هغه فن د ماهرینو تقلید کوي.

پدې تفصیل سره ډیر اعتراضات دفع شول مثلاً (۱) که غیر مقلد وائي چې تاسو په عقائدو کې د چا په مذهب ئي؟ نو جواب وشو چې د عقائدو مسائل اجتهادي او غیر واضح نه دي، نو دعقائدو په اثبات کې تقلید نه دی واجب او د اشعري او د ماتریدي نو مونه نسبتي دي لکه د افغاني او پاکستاني، او دا نسبت ابو منصور ماتریدي ته له دې وجهې کیږي چې د امام صاحب رحمه الله څخه د رانقل شو عقائدو ترتیب او تدوین تفصیلا د هرچا څخه مخکې ابو منصور ماتریدی رحمه الله کړی دی، علامه سمهودي

رحمه الله فرمايي چې: ومنع الاستاذ التقليد فى القواطع كالعقايد دون غيرها(العقد الفريد صـ٥٦) همدارنګه که غیر مقلدین اعتراض وکړي چې قرآن او سنت شته نو تقليد ته څه ضرورت دی، نو تاسو جواب ورکړئ چې قران او سنت خو منصوصات دي او تقليد په اجتهادياتو کې کيږي.

(۲) که غير مقلدين ووائي چې تاسې د امام صاحب رحمه الله په مذهب یاست نو امام صاحب رحمه الله د چا په مذهب وو؟ نو دا سوال دفع شو ځکه چې امام صاحب رحمه الله مجتهد دی، په هغه خو اجتهاد واجب دی، تقليد پرې نه دی واجب، دا داسې سوال دی لکه يو څوک په موټر کې ناست دی، او وائي چې که مونږه ددريور سورلی يو نو ډريوار د چا سورلی ده؟ يا يو سړی ووائی چې مونږه خو په جامع مسجد کې د امام پسې اقتدا کړې ده نو امام په چا پسې اقتداء کړې ده؟ يا مونږ د نبي کريم صلی الله عليه وسلم کلمه ويلې ده، نو نبي صلی الله عليه وسلم د چا کلمه ويلې ده؟

همدارنګه دا سوال هم دفعه شو چې عيسی عليه السلام به د چا په مذهب وي؟ ځکه چې تقليد غير مجتهد کوي او عيسی عليه السلام به خپله اجتهاد کوي.

(۳) که غير مقلد ووائي چې تاسې ولې د دې زمانې له يو ژوندي ملا څخه پوښتنه نه کوئ؟

نو جواب وشو چې زه له داسې کس څخه توضيح طلبوم او تقليد يې کوم چې مجتهد وي، که غير مقلد دعوه وکړي چې زمونږ فلان ملا هم مجتهد دی، نو ته به ورته ووائي چې ته د خپلو اصولو مطابق د دې ملا مجتهد والی په دليل شرعي باندې چې ستا په نيز صرف ايت او حديث دی ثابت کړه، که غير مقلد ووائي چې ته د امام صاحب رحمه الله مجتهد والی په دليل شرعي باندی ثابت کړه! نو ته به ورته د خپلو اصولو مطابق جواب ورکړی چې د امام صاحب رحمه الله مجتهد والی په اجماع د فقهاؤ او د محدثينو باندې ثابت دی، په هر فن کې د هغه فن د ماهرينو اجماع معتبره ده.

کله غير مقلدين په مناظره کې وايي چې په دعوې کې داسې وليکه چې د امام ابو حنيفة تقليد واجب دی او يا چې کله ورته د تقليد د وجوب دليل پيش کړې نو هغه ورته وايي چې په دې کې د امام صاحب نوم راته وښايه؟

جواب دادی چې زه خو دانه وایم چې په دنیا کې صرف دامام ابو حنیفة رحمه الله تقلید واجب دی او د نورو مجتهدینو جایز نه دی، بلکې زه دا وایم چې په غیر مجتهد دمجتهد تقلید واجب او لازم دی.

**فائد:** پکار ده چې د غیر مقلدینو سره په تقلید شخصي مناظره ونه شي، ځکه چې هغوي مطلق تقلید نه مني، نو په تقلید شخصي باندې بحث ته څه ضرروت دی؟

همدارنګه کله غیر ملقدین وایي چې دا تاچې کومه دعوه لیکلي دا راته دامام صاحب رحمه الله څخه ثابته کړه؟

قلنا: دا دعوه دمسایلو اجتهادیه وو څخه نده، نو ته راته اول دا ثابته کړه چې دا اجتهادي مسئله ده چې بیا یې زه درته دامام صاحب رحمه الله څخه ثابته کړم.

۲- غیر مقلد چې کومه دعوه لیکلې ده دا دې صراحةً په قرآن یا حدیث کې وښایي؟

(۴) که غیر مقلد اعتراض وکړي چې ته ولې د ابو بکر صدیق رضي الله عنه یا د حضرت عمر رضي الله عنه په مذهب نه ئي؟ نو جواب وشو چې د دوي مذهبونه اصولاً او فروعاً مکمل مدون شوي نه دي، بلکه هغوي په جهاد او د جهاد په شان د دین په نورو ضروریاتو باندې مصروف وو، تدوین ته وزګار نه وو، بیا هم که تاسو سر زوري کوئ نو زه به د فقهې دیو کتاب صرف د یوې صفحې یو څه مسائل درته ذکر کړم، او تاسو له حوالي سره د هرې مسئلې په اړه د ابو بکر صدیق رضی الله عنه مذهب یا د حضرت عمر رضی الله عنه مذهب پکې راته بیان کړئ.

وفی المجموع ولیس له التمذهب بمذهب احدٍ من ائمة الصحابة رضی الله عنهم وغیرهم من الاولین وان کانوا اعلم واعلی درجة ممن بعدهم لانهم لم یتفرغوا لتدوین العلم وضبط اصوله وفروعه فلیس لاحد منهم مذهب مهذب محرر مقرر، وانما قام بذلک من جاء بعدهم من الائمة الناحلین لمذاهب الصحابة والتابعین القائمین بتمهیداحکام الوقائع قبل وقوعها الناهضین بایضاح اصولها وفروعها کمالک رحمه الله وابی حنیفة رحمه الله آه (المجموع شرح المذهب للنووي رحمه الله صـ ۹۱

ج۱) فصل فی اداب المستفتی بحواله تقليد شرعی حيثيت للعلامه مفتي محمدتقی عثماني ص ۸۱،
مکتبة دار العلوم کراچی.

(۵) که غير مقلد اعتراض وکړي چې د فقهي مسائل د امام صاحب څخه په سند ثابت کړه، نو جواب وشو چې دا مسائل په تواتر ثابت دي او تواتر سند ته ضرورت نه لري که نه يې منې نو سورة فاتحه او ه ايتونه دي ته ما ته دهر ايت سند وښايه، همدارنګه که غير مقلد اعتراض وکړي چې ته ولې شافعي يا مالکي، او يا حنبلي نه يئ؟

نو جواب وشو چې دکوم وخت څخه چې اسلام دبرصغير دې ملکونو ته راغلی دی، نو دلته تمام مدارس مفتيان او کتابونه د امام صاحب رحمه الله د مذهب چليږي، په دې ټول تاريخ د اسلام کې دلته دهيڅ شافعي يا حنبلي او يا مالکي مدرسه يا شيخ الحديث او يا مفتي نه شته او نه تېر شوی دی، دلته د شافعيانو يا مالکيانو او يا حنبليانو په نوم باندې هيڅ مسجد نه شته او نه تېر شوی دی، نو په دې ملکونو کې صرف د امام صاحب رحمه الله مذهب متواتر دی، او د امام مالک ،امام شافعي او امام احمد رحمهم الله مذهبونه دلته متواتر ندي او مونږ په دعوه کې دا ويلي وو چې مونږ د داسې مجتهد تقليد کوو چې مذهب يئ متواتر وي (٦) واجب بالغير: دخپلو خواهشاتو پيروي حرامه ده، او دخواهشاتو دپيروی څخه عادةً په هغه وخت کې بچ کېدل متحقق کيږي چې په يو مجتهد باندې اعتماد وکړی شي او صرف دهمدې يو مجتهد تحقيق ومنلی شي، په نورو الفاظو باندې داسې ووايه چې دخواهشاتو پيروی حرامه ده، او دحراموضد واجب وي، نو دخواهشاتو دپيروی نه کول واجب شول، او دا واجب عادةً او تجربةً ديو معين مجتهد تر پيروی پورې موقوف دي او موقوف عليه دواجبو واجب وي فلهذا ديو معين مجتهد پيروي هم واجبه شوه، په خير القرون کې ديند اري غالبه وه او دخواهشاتو غلبه کمه وه، همدارنګه دکوم معين مذهب تدوين هم نه وو شوی، لهذا هلته اجازت وو چې دمتعددو مجتهدينو پيروي وکړی شي، نو بالفرض که بيا هم دخير القرون په شان دور راشي نو بيا به هم دغير (خواهشاتو) دمرتفع والي له وجې دا حکم مرتفع شي، همدارنګه دلته دوجوب بالغير لپاره يو دليل دا هم دی چې دلته دبل مجتهد مذهب متواتر نه دی، لکه په يوه علاقه کې چې صرف يو ډاکټر وي نو تکويناً صرف دهمدې يو څخه علاج ضروري وي.

فانقيل: چې احناف خو يو ائې د امام ابو حنيفه رحمه الله تقليد شخصي نه كوي بلكې د دريو امامانو (امام ابو حنيفه، امام ابو يوسف، امام محمد رحمهم الله) تقليد كوي، كله د امام صاحب رحمه الله قول ته مفتى به وايئ كله د امام ابو يوسف رحمه الله قول ته مفتى به وايئ او كله د امام محمد رحمه الله قول ته مفتى به وايئ.

قلنا: ۱- چې يو عقايد دي، دو هم احكام كليه او قواعد او اصول دي او دريم جزئيات او فروع دي، نو مونږ د امام صاحب تقليد شخصي كوو په دې معنى چې د حنفي اصولو او قواعدو پابند يوو، بيا كله د يو اصل لاندې مختلف فروع او جزئيات وي يو امام په يو جزئي قول كړى وي او بل امام په بل جزئي قول كړى وي، په دې جزئياتو كې كله يو مفتى به وي او كله بل (معارف القرآن لمولنا ادريس كاندهلوي تحت قوله تعالى: مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ حَنِيْفًا، پاره اول)

۲- د تقليد شخصي څخه مراد فرد نوعي دى چې دا فرد نوعي بيا منحصر دى په افرادو ثلاثه وو كې لكه شمس چې نوعه ده او منحصره ده په يو فرد كې.

(۳) جواب د صاحبينو د قول منل هم امتثال لقول أبي حنيفه رحمه الله دى ځكه چې امام صاحب فرمايلي دي چې اتبعوا قول الامامين وقت ترجيح قولهما فنحن تقليد الامامين امتثالاً لقول ابى حنيفه رحمه الله فهو فى الحقيقة تقليد لابى حنيفه رحمه الله.

(۴) جواب: د صاحبينو ټول اقوال په حقيقت كې د امام صاحب اقوال دي، علامه شامي درد مختار په مقدمه كې ليكي چې كه په يوه مسئله كې يو قول د امام صاحب يعني د استاد راغلو، او بل قول د ده د شاګرد راغلو نو دغه د شاګر قول په اصل كې د استاد قول دى، شاګرد ته ئې نسبت صرف د موافقت د رأې له وجې كيږي بيا په فتاوى ولوالجيه باندې حواله وركوي او فرمايي چې:

په فتاوى ولوالجيه كتاب الجنايات كې ليكي چې (قال ابو يوسف رحمه الله ماقلت قولاً خالفتُ فيه أبا حنيفة رحمه الله الا قولاً قد كان قاله) يعني اما أبو يوسف فرمائى چې ما هيڅكله له امام صاحب سره مخالفت په يو قول كى هم نه دى كړى مګر مخكى دا قول د امام صاحب قول وو (زما

صرف د رأى موافقت ورسره راغلى دى) (رد محتار جاصف۱۵۹) مطلب (صح عن الامام انـه قـال اذا صح الحديث فهو مذهبي.

فانقيل: چې تاسو وايئ چې مونږه په هره مسئله کې د امام صاحب تقليد کوو ، حالانکې کله د بل مذهب د امام قول ته راجح وايئ.

قلنا: (کل) کله د استغراق حقيقى لپاره وي لکه کل انسان حيوان او کله د استغراق عرفي لپاره وي لکه (وأوتيت من كل شيء) نو مونږ په طريقې د استغراق عرفي سره په هره مسئله کې د امام صاحب تقليد کوو، نو د بعضو مسايلو استثناء جايزه ده.

## دلائل على الدعوى

### اول دليل:

(اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ)

په صراط المستقيم باندې د تللو دوه لارې دي، يوه د اجتهاد ا و د تحقيق لاره ده او دوهمه د تقليد لاره ده، تقليد بيا په دوه قسمه دى: اول تقليد محمود ادوهم تقليد مذموم، الله تعالى دواړه تقليدونه ذکر کوي په صراط الذين انعمت عليهم کې تقليد محمود ذکر کوي، او په غير المغضوب عليهم والا الضالين کې تقليد مذموم ذکر کوي،په صراط الذين ا نعمت عليهم کې تقليد ممدوح داسې ذکر کوي چې د منعم عليهم لپاره الله تعالى په بل ايت کې څلور طبقې ذکر کړې:۱-نبيين۲-صديقين۳-شهداء۴-صالحين﴿مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿۶۹﴾﴾

الله تعالى څلور طبقې ذکر کړې، يوه يې نده ذکر کړې ځکه چې يواځې نبيين يې ذکر کړې وې، نو اوس خو نبي نه پيدا کيږي چې بالمشافهه والمشاهده مونږ ته صراط مستقيم وښايي وروسته به عيسى عليه السلام راځي خو اوس نه پيدا کيږي،نو الله تعالى صحابه او صديقين هم ذکر کړل چې که نبيين نه پيدا کيدل نو د صديقينو په نقش قدم لاړ شه او که صحابي نه پيدا کيدلو نو بيا د شهيد ومنه او که خلک بزدله وو شهيدان نه وو نو بيا د صالحينو ومنه او صالحين په هر ځاى کې پيدا کيږي ،أيمه مجتهدين صالحين دي او د

صالحینو په نقش قدم باندې تلل تقلید محمود دی، او د مغضوب علیهم (بې عملو) او د ضالین (بې علمو) په نقش قدم باندې تلل تقلید مذموم دی.

فائده: نن د دین د ساتلو طریقه د صالحینو (ایمه وو سلفو او اکابرو) دفاع ده او د دین ورانول هم د دې څخه راځي چې په صالحینو اعتراضات شروع شي، نن سبا د دین دشمنان د صالحینو سره دشمني کوي، د دوي مقصد صرف په صالحینو اعتراضات ندی، بلکې دوي په شهداوو، صدیقینو او انبیاوو باندې داعتراض لپاره ځان ته لاره صفا کوي، داسې نده چې دشهیدانو، صدیقینو او انبیاوو سره یې دوستي ده او صرف د صالحینو سره یې دشمني ده، په مسجد کې یوه مصلّی ده بل محراب دی، بله دروازه دمحراب ده او بل عمومي ګیټ(دروازه) ده، نبي داسې دی لکه په مصلّی، صحابه داسې دي لکه محراب، شهیدان داسې دي لکه دروازه دمحراب او صلحاء داسې دي لکه عمومي ګیټ (دروازه)، دشمن اول په ګیټ حمله کوي بیا په دروازه دمحراب حمله کوي بیا په محراب حمله کوي او بیا په مصلّی حمله کوي او چې په ګیټ کې د دشمن څخه دفاع وشي نو چې ګیټ بچ شي، دمحراب دروازه پخپله بچ کیږي او چې دمحراب دروازه بچ شوه، نو محراب بچ شو او چې محراب بچ شي نو مصلی پخپله بچ کیږي، د دین د شمنان اول په صالحینو اعترضات کوي بیا په شهیدانو اعتراضات کوي، بیا په صدیقینو اعتراضات کوي او بیا په انبیاوو اعتراضات کوي او څوک چې په صالحینو اعتراضات نه برداشت کوي نو هغه په شهیدانو اعتراضات نه برداشت کوي او څوک چې په شهیدانو اعتراضات نه برداشت کوي هغه په صدیقینو اعتراضات نه برداشت کوي او څوک چې په صدیقینو اعتراضات نه برداشت کوي نو هغه په انبیاوو باندې کله اعتراضات برداشت کولی شي؟ نو د تقلید څخه دفاع د صالحینو څخه اولاً دفاع ده، دشهیدانو څخه ثانیاً دفاع ده، دصدیقینو څخه ثالثاً دفاع ده او دانبیاوو څخه رابعاً دفاع ده، ځکه چې اول د ګیټ څخه دفاع شروع کیږي.

په نیمه سورة فاتحه کې توحید دی او په نیمه کې تقلید دی ، دالحمد څخه تر ایاک نستیعن پورې توحید بیانیږي او د ا هدنا الصراط المستقیم څخه تر اخره پورې تقیلد بیانیږي، توحید دا معنی ده چې دالله تعالی سره په ذات او صفاتو کې څوک نه شریکول او دتقلید معنی ده د یو ماهر شریعت په رهنمایي کې په شریعت باندې عمل کول او دلیل نه طلبول.

لطيفه: دتوحيد لفظ په قرآن کې نشته لکن معنى يې شته، دالحمد څخه تر اياک نستعين پورې د توحيد معنى ده، همدارنګه د تقليد لفظ هم په قرآن کې نشته لکن معنى يې شته، د اهدنا الصراط المستقيم څخه تر ولا الضالين پورې دتقليد معنى ده، لهذا مونږ توحيديان هم يوو او تقليديان هم يوو، وكتھوريان وايي چې مونږ توحيديان يوو، لكن تقليديان نه يو، نو نيمه سورة فاتحه مني او نيمه نه مني او بريلويان تقليديان دي لكن توحيديان ندي، وكتھوريان دفاتحې خلف الامام والا دي هغوي ځانونو ته توحيديان وايي ، لكن تقليديان ندي او بريلويان دفاتحې على الطعام والا دي هغوي تقليديان دي، لكن توحيديان ندي، مونږ ټوله سورة فاتحه منو دتوحيد حصه يې منو ، لهذا مونږ توحيديان هم يو او دتقليد حصه هم منو ، لهذا منوږ تقليديان هم يوو.

**دوهم دليل:**

الله ﷻ فرمايي: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ﴾

اى هغو كسانو چې ايمان ئې راوړى دى (اى مؤمنانو !) اطاعت (تقليد او اتباع) وكړئ تاسي دالله تعالى او تقليدً او اطاعت او اتباع وكړئ درسول الله ﷺ او تقليد ،اتباع او اطاعت وكړئ د اولى الامر (دعلماؤ، فقهاؤ او مجتهدينو). په عام الفهمه طريقه داسې معنى وكړه چې اى مؤمنانو د الله خبره ومنئ،د مصطفى خبره ومنئ او د فقهاوو خبره ومنئ ، دالله تعالى خبره قرآن دى ، دمصطفى خبره حديث دى او دفقهاوو خبره فقه ده، نو قرآن حق دى، حديث حق دى او فقه حقه ده، نو الله تعالى دقرآن، سنت او دفقهې د منلو حکم کړى دى، څوک چې قرآن نه مني هغه کافر دى څوک چې سنت نه مني هغه کافر دى او څوک چې مطلق فقه نه مني هغه هم د امنوا مصداق نه شي كيدلى البته كه يو خاصه فقه نه مني او بله مني مثلا شافعي فقه نه مني حنفي مني نو ده فقه ومنله لهذا د(أمنوا) مصداق دى.

**اوله فائده:** په دې آيت کې ۱ -په (اطيعوالله) کې د کتاب الله ذکر دى ۲-او په (اطيعوالرسول) کې د سنتِ رسول الله ذکر دى. ۳-او په (اولى الامر) کې د اجماع ذکر دى. ۴-او په (فان تنازعتم فى شيئ) کې د قياس ذکر دى. [ تفسير كبير / ج ۴ / ص ۱۱۳ / مكتبه دار احياء التراث العربى / و ج ۱۰ / ص ۱۶۴ فى بعض المطابع ]. يعنې په دې ايت كريمه کې د ادله وو اربعهٔ اثبات دى.

**دوهمه فائده:** په دې ایت کریمه کې د تقلید د وجوب ذکر دی، ځکه چې په دې آیت کې د الله جل جلاله د اطاعت ذکر دی، او د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د اطاعت ذکر دی او د أولی الامر د اطاعت ذکر دی چې دا دریم اطاعت تقلید دی، د اولوالامر د اطاعت له پاره درې شرطه دي: لومړی دا چې: أولی الامر به مسلمان وي، لکه څرنګه چې په همدې آیت کې د (منکم) په لفظ کې ورته اشاره شوې ده، نو د غیر مسلم اطاعت ناجایز او ګناه ده.

دوهم: دا چې کله چې صاحب د امر د الله جل جلاله او د الله د پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه نافرماني کوي نو بیا یې هم اطاعت کول ناجایز او ګناه ده او تقلید مذموم ورته وايي. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي چې: (فاذا امر بمعصية فلاسمع ولا طاعة). [بخاري / ج ۲ / ص۱۰۵۷].

دریم: صاحب دامر به د الله جل جلاله او د الله د پیغمبر صلی الله علیه وسلم اطاعت کوي. نو په دې صورت کې نه یوازې دا چې اطاعت یې جایز دی بلکې د دې آیت مطابق واجب دی. پاتې شوه دا خبره چې د (أولي الأمر) څخه څوک مراد دي؟ نو په اصولي توګه له دې څخه دوه قسمه خلک مرادیږي: ۱- علماء او فقهاء. ۲- أمراء د جیوشو او مُطلق حُکّام. په دواړو صورتونو کې تقلید ثابتیږي که اول قسم خلک ترینه مراد شي نو بیا زمونږ دعوی ورڅخه صراحتاً ثابتیږي.

## اول قسم

کومو صحابه وو رضي الله عنهم چې د (اولی الامر) څخه فقهاء مراد کړي دي په هغوی کې حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه، او عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دي. د حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه الفاظ دا سې دي: (اولی الامر منکم قال الفقـه والخير) [مسـتدرک / ج ۱ / ص ۱۲۳]. او د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما الفاظ دا سې دي: (يعني اهل الفقه والدين (الی ان قـال) فأوجب الله طاعتهم) [مسـتدرک / ج ۱ / ص ۱۲۳]. نو دواجب لفظ یې ذکر کړی دی نو د تقلید په وجوب یې تصریح کړې ده لهذا زمونږ دعوه چې د تقلید وجوب دی صراحةً ثابت شو.

او د صحابي د تفسير په باره کې علماء کرام لاندې نظرونه لري چې: (تفسير الصحابى مسند، تفسير الصحابي حجة ، تفسير الصحابى مرفوع . [توجيه النظر / ص ١٦٥ / طبع مصر/مستدرک/ج ١/ ص ١٢٣ / معرفة علوم حديث / ص ٢٠ / زاد المعاد / ج ٤ / ص ٥٢/ تدريب الراوى / ص ٦٥ / الجنة لنواب صديق حسن خان غيرمقلد/ ص ٩٦].

يعنې د صحابي رضى الله عنه تفسير د رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان وي، او د صحابي تفسير حجت دى. او د صحابي تفسير مرفوع دى.

خلاصه دا چې د اولى الامر څخه د فقهاوو مراد ول د مذکورې قاعدې مطابق د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان شو د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حکمي فرمان سره تقليد ته واجب ووېلى شو او په تابعينو کې چې کومو حضراتو د (أولى الأمر) څخه فقهاء مراد کړي دي په هغوي کې حضرت عطاء بن ابى رباح ، حضرت حسن بصري ، امام مجاهد ، قتاده او ابن أبى ليلى رحمهم الله دي.

په [دارمى / ص ٤٠ / طبع هند و طبع دمشق / ص ٧٢ ] کې د حضرت عطاء بن ابى رباح الفاظ داسې دي چې: ( اولى الامر ، اولوالعلم والفقه ).

او امام ابوبکر جصاص الرازى رحمه الله المتوفى (٣٧٠ هـ) ددې صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله تفسير په داسې الفاظو سره ذکر کوي چې: (فروى عن جابر بن عبدالله رضى الله عنه و عبدالله بن عباس رضى الله عنهما روايةً، والحسن، وعطاء، و مجاهد انهم اولوالفقه والعلم. و عن ابن عباس روايةً وعن ابى هريرة انهم أمراءالسرايا و يجوز ان يكونوا جميعاً مرادين ). [احكام القرآن / ج ٢/ ص ٢١٠ ].

او په بل ځاى کې ليکي چې: (قال الحسن ، وقتادة و ابن ابى ليلى : هم اهل العلم والفقه). [احكام القرآن / ج ٢/ ص ٢١٥ ].

او علامه الوسي رحمه الله فرمايي: (وقيل المراد بهم اهل العلم، و روى ذلک غير واحد عن ابن عباس، و جابر بن عبدالله، و مجاهد، والحسن، و عطاء وجماعة، واستدل عليه ابوالعاليه بقوله تعالى: ( ولو ردّوه الى الرسول و الى اولى الامر منهم لعلمه الذين يستنبطونه منهم ..... الاية) فان العلماء هم المستنبطون المستخرجون للاحكام ). [ روح المعاني / تحت هذه الاية / ج ٥ / ٦٥ ].

يعنې په دې صحابه وو رضى الله عنهم او تابعينو رحمهم الله کې حضرت ابوالعاليه د ( القرآن يفسر بعضه بعضاً ) مطابق فرمايي چې: له دې څخه فقهاء مراد دي، ځکه چې الله تعالى جل جلاله په بل ځاى کې فرمايي : ( و اذا جاءهم أمر من الامن او الخوف اذاعوا به و لوردّوه الى الرسول و الى اولى الأمر منهم لعلمه الذين يستنبطونه منهم .... الاية ) نو (الذين يستنبطونه) د ( أولى الأمر) تفسير دى، نو معلومه شوه چې د ( أولى الأمر ) څخه فقهاء مراد دي.

نورې هم ډېرې حوالې شته. په تفسير معالم التنزيل /ج ۲ /ص ۴۹۴ کې او په تفسير کشاف /ج ۱ / ص ۳۷۰ کې / په تفسير ابن کثير /ج ۲/ ص ۴۹۷ کې او په نورو ډېرو تفاسيرو کې د (اولى الامر) مصداق فقهاء ګرځولى شوي دي.

د لامذهبو سرخېل نواب صديق حسن خان ليکي چې: ( قال ابن عباس و جابر رضى الله عنهم و الحسن رحمه الله، و ابوالعاليه رحمه الله و عطاء رحمه الله والضحاک رحمه الله و مجاهد رحمه الله و الامام احمد رحمه الله تعالى: هم العلماء . [ الجنة / ص ٤٠ ] همدا رنګه په بل ايت کې دد دې تفسير همدا راغلى دى ، الله تعالى فرمايي چې ﴿ لَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ مِنْهُمْ ﴾

نو د (اولى الامر) څخه فقهاء مراد شو او الله جلا جلاله د فقهاوو د اطاعت امر کوي او امر د وجوب له پاره وي. د لا مذهبو سر ګروه نواب صديق حسن خان هم ليکي چې: ( اصل در امر وجوب فعل مامور به است ) [بدور الاهله/ ص ۲۲ ].

لا مذهبيان له الله تعالى جل جلاله څخه دومره هم نه داريږي چې د الله جل جلاله ماموربه شي ته کفر او شرک وايي. الله تعالى جل جلاله فرمايي: د فقهاوو اطاعت وکړئ ! او لا مذهبيان وايي چې هېڅکله يې ونه کړئ، بلکې د فقهاوو اطاعت کفر او شرک دی. (معاذالله).

## د لا مذهبيانو اعتراضونه

۱- کله چې د صحابه وو او د تابعينو دا تفسير د لا مذهبو له نظريې څخه مخالف وو نو اول اعتراض يې دا وکړو چې په دې آيت کې خو د الله جل جلاله او د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د (اطيعوا) جمله راغلې ده او د (اولى الامر) سره نه ده راغلې.

لومړی ځواب: په (اولى الامر) کې واو عاطفه راغلی دی، نو (اولى الامر) عطف دی په لفظ د (الله) او يا په لفظ د (رسول) او معطوف په حکم د معطوف عليه کې وي، نو هغه (اطيعوا) چې له لفظ د (الله) او يا له لفظ د (رسول) سره ذکر شوی دی هغه له (اولى الامر) سره هم مراد دی.

دوهم ځواب: د (اولى الامر) سره يې ځکه د (اطيعوا) جمله مستقلاً نه ده ذکر کړې چې د فقهاوو اطاعت اطاعت حقيقي او مقصود بالذات نه دی، بلکې د دوي اطاعت مذهب دی، او په دې باندې د الله جل جلاله او د الله تعالى د پيغمبر صلى الله عليه وسلم دين ته ځان رسول مقصود دي. يعنې د دوي اطاعت مذهب دی، چې منزل او مقصود ورته دين دی، نو د أولى الامر پيروي که د الله تعالى او د رسول صلى الله عليه وسلم د پيروی سره موافقه وه او د الله تعالى او د نبي ﷺ د دين راهنمايي کوله نو بيا صحيح ده او که نه وه موافقه نو بيا نه ده صحيح.

دريم ځواب: د لفظ (الله) سره لفظ د اطيعوا راغلی دی ځکه چې الله جل جلاله شارع حقيقي دی، او د (رسول) سره هم لفظ د طيعوا راغلی دی ځکه چې رسول صلى الله عليه وسلم شارع مجازي دی، القواعد فى علوم الفقه الاحتجاج على بطلان التقليد باقوال الأيمة ثم الجواب عنه ص(۲۴) او د (أولى الامر) سره يئ مستقل لفظ د اطيعوا ندی ذکر کړی ځکه چې أولى الأمر نه شارع حقيقى دي او نه شارع مجازي دی بلکې صرف شارحان دي.

څلورم ځواب: دادی چې د الله او د رسول سره یې ځکه لفظ د اطیعوا مستقل ذکر کړو چې د دوي دواړو اطاعت بلاقیدٍ و شرطٍ دی او د أولی الأمر سره یې ځکه مستقل ذکر نه کړو چې د أولی الأمر د پیروۍ لپاره شرطونه دی کما مرّ.

۲-بل اعتراض دوي دا کوي چې: بیا تاسو ولې د ﴿أطیعوالله و أطیعوالرسول﴾ له وجهې د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت ته فرض وایئ او د (اولی الامر) اطاعت ته واجب وایئ؟ حالانکه دا ټول د (اطیعوا) د صیغې لاندې داخل دي!

الجواب: که چېرته نص قطعي الثبوت او په معنی مراده قطعي الدلالت وي نو هلته حکم د فرضیت راځي. او که قطعي الثبوت لکن غیر قطعي الدلالة وو نو بیا حکم د وجوب راځي. نو ﴿أطیعوالله وأطیعوالرسول﴾ قطعي الثبوت او قطعي الدلالة دی، له دې وجهې د الله تعالی او د رسول الله اطاعت فرض شو او منکر یې کافر دی. او (أولی الأمر) قطعي الثبوت دی، لکن د دې په معنی کې دا اختلاف له وجې په فقهاوو باندې قطعي الدلالة نه دی، له دې وجهې د فقهاوو اطاعت واجب او منکر یې ضال او مُضِل دی. که چېرته (أولی الأمر) په فقهاوو باندې قطعي الدلالة وي. نو بیا به تقلید د فقهاوو فرض وای، او مونږ به غیر مقلدینو ته د (ضال او مُضِل) په ځای کافران ویلای.

۳-دلته خو صیغه د جمعِ راغلې ده، نو د مطلق تقلید ذکر راغی او تاسو خو تقلیدِ شخصي کوئ!

اول جواب: لامذهبان خو مطلق تقلید هم نه مني، نو چې په دې ایت سره مطلق تقلید ثابت شو نو آیا تاسو مطلق تقلید منئ؟

دوهم جواب: که مطلق تقلید منئ نو بیا په تقلیدِ شخصي کې د یو امام تقلید کېږي او په مطلق تقلید کې د څلورو امامانو تقلید کېږي، نو چې ستاسو په نزد د یو امام تقلید شرک دی، نو بیا خو د څلورو امامانو تقلید څلور شرکه شول، نو څرنګه یو شرک حرام دی او څلور شرکه جایز بلکې واجب شو؟

دریم جواب: (اطیعوا) د جمعِ صیغه ده او (اولی الامر) هم د جمع صیغه ده، او مقابله چې د جمعِ له جمعِ سره راشي نو فایده کوي تقسیم د أحادو په أحادو، نو د یو یو امام تقلید هم له همدې آیت څخه ثابت شو.

څلورم ځواب: مونږ غیر مقلدینو ته الزاما وایو چې تاسو د أولی الامر معنی په حکامو سره کوئ نو دلته خو هم اعتراض راځي چې اولی الأمر خو صیغه د جمع راغلې ده او په یو وخت کې خو صرف دیو أمیر اطاعت کیږي، نو دلته تاسو څرنګه د صیغې د جمعې څخه د یو امیر اطاعت واجبوئ.

پنځم جواب: چې مطلق تقلید جایز، واجب، او مامور به شو او د مطلق من حیث أنه مطلق له پاره خو په خارج کې وجود په ضمن د افرادو کې وي، نو خامخا د مجتهدینو د افرادو تقلید واجب شو، له دې څخه وروسته مونږ وایو چې (تتبع الرخص او تلفیق) اجماعاً حرام دی، چې په یوه مسئله کې په یو مجتهد پسې ځې او په بله مسئله کې د بل مجتهد په رأیه عمل کوې. علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمایي: ( فیکون فی وقت یقلدون من یفسده وفی وقت یقلدون من یصححه بحسب الغرض والهوی و مثل هذا لا یجوز باتفاق الائمة ) [ مجموعة الفتاوی /۳۲/ ص ٦٦ / مکتبة العبیکان ].

یعنې په داسې صورت کې به په یو وخت کې د هغه چا پسې روان وي چې دده اصلاح به کوي او په بل وخت کې به د هغه چا پسې روان وي چې دده افساد به کوي او د ټولو امامانو په اتفاق سره دا کار حرام دی.

همدارنګه لیکي چې: (لان ذلک یفتح باب التلاعب بالدین و فتح للذریعة الی ان یکون التحلیل والتحریم بحسب الهوی، و لو جاز هواه، و یتخیر بین التحلیل والتحریم والواجب والجواز، و ذلک یؤدی الی انحلال ربقة التکلیف، بخلاف العصر الاول فانه لم تکن المذاهب وافیةً باحکام الحوادث مهذبة فعلی هذا یلزمه ان یجتهد فی اختیار مذهب یقلده علی التعین) [ شرح المهذب / فصل فی اداب المستفتی / ج ۱ / ص ۸۸ / دار الفکر بیروت ].

په یوه مسئله کې د یو امام پسې او په بله مسئله کې د بل اما پسې روانېدل په دین باندې لوبې دي، او ددې له پاره ذریعه ده چې هر سړی تحلیل او تحریم د خپل خواهش تابع کړي. او که چېرته دا جایز شي چې د هر سړي چې د هر مذهب کومه مسئله خوښه وي په هغې دې عمل کوي نو بیا به یو سړی په یوه مسئله کې د یو مذهب د رخصت او په بله مسئله کې به د بل مذهب په رخصت پسې ګرځي، او د حلالو او د حرامو، د جایزو او د ناجایزو په منځ کې به په خپل خواهش یو طرف خوښوي. او داسې کار کول د مکلفیت څخه خارجېدلو ته مفضي کېږي. په خلاف د عصرِ اول څخه، چې هلته به غیر مجتهد په یوه مسئله کې د یو مجتهد او په بله مسئله کې به د بل مجتهد پسې تللو، ځکه چې هلته مذهبونه مُدَوّن نه وو

په هر مذهب کې به د ټولو حوادثو حل نه پيدا کېده، نو له دې امله په هر سړي لازمه ده چې د يو مُعيّن مذهب په غوره کولو کې کوښښ وکړي.

همدارنګه علامه شاطبي رحمه الله فرمايي: ومتى خيرنا المقلدين فى مذاهب الائمة لينتقوا منها طيبها عندهم لم يبق مرجعاً الا اتباع الشهوات فى الاختيار و هذا مناقض لمقصد وضع الشريعة. [الموافقات / ج ٤ / ص ٨٢ / المسئلة الثالثة فى بيان ان الشريعة كلها ترجع الى اقوال، واحدة فى فروع / مكتبة محمد على صبيح ازهر].

هر کله چې مونږ مقلدينو ته اختيار ورکړو چې د هر مذهب څخه د خپلې خوښې مطابق مسئلې راټولې کړي، نو بيا به د مسلمانانو له پاره بله مرجع پاتې نه شي، ماسوا د اتباع د خواهش څخه، او دا کار د مقصد د وضع د شريعت سره نقيض دی.

همدارنګه علامه شاطبي رحمه الله فرمايي چې: وقد حكى ابن حزم الاجماع على ان ذلك (اى تتبع الرخص فى المذاهب) فسقٌ لا يحل [ الموافقات / ج ٤ / ص ٨٤ / المسئلة الثالثة ].

يعنې ابن حزم رحمه الله په دې خبره باندې اجماع رانقل کړې ده چې په مذهبونو کې آسانه آسانه مسئلې راټولول فسق او حرام دي.

علامه مناوي رحمه الله فرمايي : ان مثل هذه الالتزامات لكف الناس عن تتبع الرخص. [ فتح القدير / ج ١/ ص ٤٠٣ / مكتبة نزار مصطفى باز. ]

يعنې په خاصو خاصو مذهبونو باندې د پابندۍ لازمول ددې له پاره دي چې خلک د رخصتونو له لټولو څخه رابند کړو. علامه سمهودي رحمه الله د امام نووي رحمه الله قول رانقلوي چې: هل يجوز لمن تمذهب بمذهب ان يقلد مذهباً أخر فيما يكون انفع له ويتبع الرخص؟

اجاب: لا يجوز تتبع الرخص (عقدالفريد صـ ١١١) ايا يو مقلد ته جايز دي چې رخصتونه ولټوي او د خپلې ګټې لپاره د بل مذهب تقليد وکړي امام نووي جواب ورکوي چې نه دي جايز.

۴–لا مذهبيان دا اعتراض هم کوي چې د ﴿ اطيعوالله و اطيعوالرسول و اولى الامر منكم ﴾ پسې الله جل جلاله فرمايي چې: ( فان تنازعتم فى شيئ فردوه الى الله والرسول ) او په (فان تنازعتم) کې خطاب

عامو مؤمنانو ته دی، يعنې که د مؤمنانو په منځ کې په يوه مسئله کې اختلاف راشي نو الله جل جلاله او د الله تعالى رسول صلى الله عليه وسلم ته به يې راجع کوي، امامانو او فقهاوو ته به يې نه راجع کوي.

لومړی ځواب: مفسرين فرمايي چې په (فان تنازعتم) کې عامو مؤمنانو ته خطاب نه دی، بلکې (أولى الأمر) ته دی، ځکه چې په (فان تنازعتم) کې د (فا) کلمه راغلې ده او (فا) د تعقيب مع الوصل له پاره ده، نو دا جمله چې د (أولى الأمر) پسې متصله ذکر شوې ده، نو خطاب به هم يوازې (أولى الأمر) ته وي، چې که د دوی په يوه اجتهادي مسئله کې اختلاف راغی نو کتاب او سُنت ته دې يې راجع کړي او هلته دې ورته مقيسٌ عليهِ وګوري.

امام ابوبکر الجصاص رحمه الله د دې له پاره بل دليل هم ذکر کړی دی، هغه فرمايي چې: فأمر اولى الامر بِردّ المتنازع فيه الى كتاب الله تعالى و سنة نبيه صلى الله عليه وسلم اذا كانت العامة و من ليس من اهل ليست هذه منزلتهم، لانهم لا يعرفون كيفية الرد الى كتاب الله تعالى و سنة نبيه صلى الله عليه وسلم. [احكام القرآن / ج ۲/ ص ۲۱۱].

يعني دا خطاب (اولوالامر) ته دی، چې مختلف فيه مسئله کتاب الله او سنت رسول الله ته راجع کړي، ځکه چې عوام او هغه خلک چې د دې اهليت پکې نه وي هغوی د واپس کولو په چل نه پوهيږي. ډېر وران او کلينډران او تانګو والا به څرنګه خپله اختلافي مسئله له کتاب او سنت څخه حل کوي؟

## لطيفه

د يو لا مذهبه سره زما مناظره وه، هغه د مناظرې په دوران کې خپلو عوامو ملګرو ته وويل چې: الله جل جلاله فرمايي چې: ﴿فان تنازعتم فى شئ فردوه الى الله والرسول﴾ نو په دې آيت کې خو د امام ذکر نشته. نو ما يې ملګرو ته وويل چې: ستاسو دې مناظر د الوهيت او د نبوت دعوه وکړه، ځکه چې دی تاسو ته وايي چې اختلافي مسئله الله تعالى او د هغه پيغمبر ته حواله کړئ! او امام ته يې مه حواله کوئ! او تاسو خپله اختلافي مسئله دې مناظر ته حواله کړې ده، او مناظر هم ستاسو د دې مسئلې د حل کولو له پاره راغلی دی، نو ستاسو خدای او پيغمبر دغه مناظر شو، ځکه چې تاسو ده ته مسئله حواله کړې ده، او ده هم د خدايي او د پيغمبرۍ دعوه وکړه، ځکه تاسو ته وايي چې الله تعالى او د الله تعالى پيغمبر ته

ې حواله کړئ او دا هم وايي چې ماته يې حواله کړئ! نو اوس تاسې ووايا ست چې دغه مناظر ستاسو لله دی او که پیغمبر؟

۵ - لا مذهبان دا اعترض هم کوي چې په آيت کريمه کې د (أطيعـوا) جمله راغلې ده او تاسو اطاعت نه کوئ بلکې تقليد کوئ!

ځواب: مخکې له حوالو سره یو ځای دا خبره ذکر شوه؛ چې: تقلید، اتباع، او اطاعت یو شی دی.

## دوهم قسم

که له (أولوالأمر) څخه حُکام مراد شي، کما هو المروی عن ابی هريـرة رضی الله تعـالی عنه و رواية عن ابن عباس رضی الله عنهما [ احکام القرآن/ ج ۲ / ص ۲۱۰ / روح المعانی / ج ۵ / ص ۶۵ ] نو بیا هم ترینه د تقلید وجوب ثابتيږي، ځکه چې دین او دنيا، سیاست او مذهب یو شی دی، د دوي په منځ کې فرق کول زندیقیت، الحاد او غربي مفکوره ده. حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې مفکورې تردید داسې کوي چې هغو خلکو ته به الله تعالی د رحمت په نظر ونه ګوري چې د دنيا له پاره د وخت د حاکم سره بیعت کوي. (رجلاً بايعَ إمامَهُ لا يُبايعهُ الاّ للدُنيا ) [ بخاری / ج ۱ / ص ۳۱۷ ].

همدارنګه د عقايدو په کتابونو کې هم راځي چې د امام او د حاکم د اطاعت مقصد اقامت د دين دی. (ان المقصود من نصب الامام بالذات اقامة امـر الديـن ). [ مسـامره / ج ۲ / ص ۱۵۳ ]. (وهـو الامر المقصود الاَهَمّ والعمدةُ العُظمی ) [ شرح العقيد/ ص ۱۱۰ ].

خلاصه دا چې د خليفه او د حاکم سره بيعت هم د دین په امورو کې شامل دی، او په شرعي مسائلو کې تقلید هم ديني فعل دی. نو چې خليفه او حاکم د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم نایب وي او د خبرې منل يې واجب دي، نو د مسائلو په استنباط کې هم ائمه مجتهدين د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم نايبين دی او اطاعت يې واجب دی.

او د امیر د اطاعت له وجهې چې شِرک فی الرِّسالة نه راځي اګر که حبشي غلام وی (کما فی البخاری / ج ۲ / ص ۱۰۵۷ / مسلم ج ۲ / ص ۱۲۸ و ۱۲۴) نو د امامانو مجتهدینو د اطاعت له وجهې څرنګه شرک فی الرسالة راغی ؟

د لا مذهبو مشر نواب صدیق حسن خان لیکي چې: ( والتحقیق ان الامرآء انما یطاعون اذا امروا بمقتضی العلم فطاعتهم تبع لطاعة العلماء کماان طاعة العلماء تبع لطاعة الرسول صلی الله علیه وسلم. [الجنة / ص ٤ ].

یعنې د امراوو اطاعت هلته دی چې کله دوي په مقتضی د شریعت فیصله وکړي ، نو د امراوو اطاعت د علماوو د اطاعت تابع شو ، لکه څرنګه چې د علماوو اطاعت د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د اطاعت تابع دی.

۲-امام فخرالدین رازی رحمه الله فرمایي چې: که د (أولوالأمر) څخه حُکام مراد شي نو بیا هم فقهاء ددې اولین مصداق دی. فرمایي چې: ( اِن أعمال الأمراء والسلاطین موقوفة علی فتاوی العلماء والعلماء فی الحقیقة أُمراء الامراء فکان حمل لفظ ( أولی الأمر ) علیهم أولی ) [ تفسیر کبیر / ج ۱۰ / ص ١٤٦ ]. یعنې د بادشاهانو کارونه د علماوو تر فتواوو پورې موقوف دي او په حقیقت کې علماء د امیرانو امیران دي. نو د (أولوالأمر) د لفظ اطلاق او حمل کول په علماوو بهتر دي.

## لا مذهبان د اولی الامر یوه معنا هم نه مني

د (أولی الأمر) معنی یا فقهاء شو کما هو رالراجح اویا هم حُکام. مګر د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم له رحلت څخه وروسته حضرت ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه هم فقیه وو او هم حاکم. بیا حضرت عمر فاروق رضي الله تعالی عنه هم فقیه و او هم حاکم. بیا حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه هم فقیه وو او هم حاکم، بیا حضرت علي رضی الله تعالی عنه هم فقیه وو او هم حاکم، او لا مذهبان ددې فقهاو او امراوو اطاعت نه مني، کما سیأتي، لا مذهبان شلو رکعتونو تراویحو ته (عمري بدعت) وایي، او د جُمعې د ورځې په دوو اذانونو کې یو (عثماني بدعت) ګڼي وغیره .

# لا مذهبان ولې ډاريږي ؟

د غير مقلدينو شعار دادی چې (اہلحدیث کے دو اصول اطیعوا اللہ واطیعوا الرسول) . دغو ګمراهانو او نيمچه رافضيانو دا آيت ولې په منځ دوه ځايه کړو ؟ ولې پوره آيت د ځان له پاره شعار نه ګرځوي ؟ چې (اطيعوالله والرسول و اولی الامر منكم ) دی.

دا ځکه چې دا نيمچه رافضيان په دې پوهيږي چې: كه زه دا آيت تر (أولی الأمـر) پورې پوره ولولم نو بيا په ما باندې د صديق اكبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اطاعت لازميږي.

او كه زه دا آيت پوره ولولم نو په ما باندې د عمر فاروق رضی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اطاعت لازميږي.

او كه زه دا آيت پوره ولولم نو په ما باندې د عثمان ذی النورين رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اطاعت لازميږي.

او كه زه دا آيت پوره ولولم نو په ما باندې د علی المرتضی کرم الله وجهه اطاعت لازميږي .

او كه زه دا آيت پوره ولولم نو په ما باندې د حضرت امير معاويه رضی الله تعالی عنه اطاعت لازميږي.

او د صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ له اطاعت كولو سره د لامذهبو غير مقلدينو دښمني ده .

وګوره د لامذهبو کتابونه :

*په صديقه كاينات / ص ۲۲۷ كې يې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د الله جل جلاله عذاب ويلي دي.

*په نزل الابرار / ص ۹۴ كې يې شپږو صحابه كرامو ته فاسقان ويلي دي (نعوذ بالله) .

*په عرف الجادی / ص ۲۰۷ كې يې صحابه وو ته د مشت زنی يعنې د (موټک) نسبت کړی دی .

*وحيد الزمان په كنز الحقايق / ص ۵ كې ليكي چې: په خطبه كې د صحابه وو د نوم ذكر كول بدعت دی.

*په كنز الحقايق / ص ۲۳۴ كې ليكي چې: د ابوسفيان، معاويه ، عمرو بن العاص، مغيرة، شعبة او د سمرة بن جندب سره د (رضی الله عنه) ذكر كول ناروا دي.

*په عرف الجادی / ص ۱۰۱ كې ليكي چې: (در اصول مقرر شده كه قولِ صحابی حُجت نيست).

*د لامذهبو شيخُ الكل نذير حُسين دهلوی په فتاوی نذيريه/ج ۱ / ص ۳۴۰ / ۶۲۲/ ۴۵۵ کې ليکي چې: د صحابي قول، فعل او د صحابي فهم حُجت نه دی.

*محمد جوناګړی په: شمعِ محمدی / ص ۱۹ کې ليکي چې: د صحابي درايت حُجت نه دی.

*بلکې په شمعِ محمدی / ص ۱۹ او په طريق محمدی / ص ۵۷ کې ليکي چې: تاسو د امام او د مجتهد خبره کوئ ! که پيغمبر له وحيې څخه بغير خبره وکړي مونږه يې نه منو.

*د الحق الصريح / ص ۴۰ د مشکوة شريف د خطبې د دې قول په تشريح کې چې ( كـأني اسندتُ الى النبی صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ... الخ ) ؛ لا مذهبه امين الله ليکي چې: د صحابه وو اقوال او افعال حُجت نه دي.

*نواب صديق حسن خان ليکي چې: د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کفن کې د قميص ورشاملول د صحابه وو فعل دی، او په دې سره حُجت نه قايميږي. [بدور الاهلة / ص ۸۸]. بيا ليکي چې: د صحابه وو موقوفات حجت نه دی. ص ۱۲۹. بيا ليکي چې د صحابي تفسير حُجت نه دی. ص ۱۳۹.

په يو ځای کې ليکي چې: دا د صحابه وو فعل دی چې د حُجت لايق نه دی. ص ۹۵.

* ثناءالله امرترسری د درې طلاقونو په باره کې د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د فيصلې ترديد داسې کوي چې: مونږ دا څرنګه ومنو؟ مونږ خو فاروقيان نه يو، مونږ خو محمديان يو. مونږ خو د عمر رضی الله عنه کلمه نه ده ويلې بلکې د محمد (صلی الله عليه وسلم) کلمه مو ويلې ده. [فتاوای ثنائيه / ج ۲ / ص ۲۵۲].

*مفتي عبدالستار ليکي چې: د صحابه وو قول او فعل حجت نه دی. [فتاوای ستاريه / ج ۳ / ص ۸۶ / ۸۷ / ۸۵ / ۶۵ / ۶۶].

*وحيد الزمان ليکي چې: د صحابي اجتهاد حجت نه دی. [نزل الابرار / ج ۱ / ص ۲۳۹].

*غير مقلد ابو عبدالله قصوری ليکي چې: د حضرت رسول الله تهول اقوال او افعال محمود نه دي او نه د نبی عليه السلام مطلق عصمت ثابت دی، که نبی عليه السلام معصوم وی نو صحابه کرام رضی

الله عنهم به د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ځينو خطاګانو باندې اعتراضونه کول. [تحقيق الکلام في مسئلة البيعة والالهام/ ص ۴۴ و ۴۵].

*په يو ځاى کې ليکي چې: د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم سره زيات محبت شرک دى او زيات محبت کوونکى مشرک دى. [تحقيق الکلام فى مسئلة البيعة والالهام ص/ ۴۰ و ۴۱/ تصنيف بوعبدالله قصورى/ عرف غلام علي/ مطبوعه رياض هند پريس امرتسر/ مؤرخه ۱۲۹۸].

*د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحيح قول هم د قبلولو قابل نه دى. [فتاواى نذيريه/ ج ۱/ ص ۵۷۸].

## دتقليد دوجوب لپاره دريم دليل

الله تعالى جل جلاله ده قرانکريم په سورة النحل کې فرمائي[ فَاسْئَلُوا اَهْلَ الذِّكْرِ اِن كُنتُم لَا تَعلَمُونَ] وفي سورة الانبياء آيت نمبر ۷ [ فَاسئَلُوا اَهلَ الذِّكرِ] داهل الذ کر او لين مصداق مجتهدين علماء دي او دلا تعلمون اولين مصداق غير مجتهدين دي،

ددې آيت کريمه څخه دا معلومه شوه چې په غير مجتهد باندې د مجتهد تقليد واجب دى، ځکه چې (فاسئلوا) صيغه د امر ده. او امر د وجوب له پاره راځي.

حضرت امام رازى رحمه الله او علامه الوسى رحمه الله ددې آيتِ کريمه په تفسير کې ليکي چې: انّ من الناس مَن جوّز التقليد للمجتهد لهذه الاية، فقال لما لم يكن أحد المجتهدين عالماً وجب عليه الرجوع الى المجتهد العالِم، لقوله تعالى فاسئلوا .. الاية . فان لم يجب فلا أقل من الجواز. [تفسير كبير/ ج ۱۹/ ص ۱۱/ روح المعانى/ ج ۱٤/ ص ۱٤۸ واللفظ للروح المعانى].

ځينو خلکو ددې آيت له وجهې د مجتهد له پاره د تقليد جواز ثابت کړى دى. د امام رازي په قول چې کله په مجتهدينو کې کوم يو په کومه مسئله نه پوهېده نو په ده باندې واجب دى چې هغه د بل مجتهد عالم طرف ته رجوع وکړي، ځکه چې الله جل جلاله فرمايي چې: پوښتنه وکړئ! .... الخ. که رجوع واجبه نه شي نو د جواز څخه خو به نه کميږي. نو چې کله په ځينو مسايلو کې مجتهد ته جايز دي چې د خپل ځان څخه د لوى مجتهد څخه پوښتنه وکړي نو عامي او غير مجتهد ته څرنګه نه دي جايز؟

همدارنگه علامه قرطبي رحمه الله فرمايي چې: لم يختلف العلماء ان العامة عليها تقليد علماءها وانهم المراد بقوله عزوجل فاسئلوا اهذ الذكر ،سورة انبياء ج(٧ص-٢٤١)پدې کې دعلماو هيڅ اختلاف نشته چې په عوامو (غيرمجتهدينو) باندې دخپلو علماو (مجتهدينو) تقليد واجب دی او د(فاسئلوا اهل الذکر) څخه همدوي مراد دي او تقليد کول ثمره او نتيجه دسوال ده، ځکه چې اول سوال کيږي بيا جواب ورکول کيږي او سايل دغه جواب مني او دجواب منل تقليد دی، خلاصه دا چې سوال کول مقدمه دتقليد ده او تقليد ددې ثمره او نتيجه ده صاحب دتوضيح فرمائي چې الاستفتاء طلب الحكم الشرعي هكذا في كنز اللغات فيكون مرادفا للتقليد.

١- په دې استدلال باندې لا مذهبان اعتراض کوي چې دا ايتِ کريمه د يهودو په حق کې نازل شوی دی، فلهذا دا ايتِ کريمه عام نه دی، چې فقهاو ته هم شامل شي. [ فتاوی نذيريه / ج ١ / ص ١٦٣].

الجواب: د جمهورو مسلمانانو په دې خبره اتفاق دی چې: د قرآن کريم په آيتونو کې عموم د لفظ ته اعتبار وي، خصوص دسبب ته نه وي. ترڅو يې چې په منسوخوالي او يا مخصوصوالي باندې نصِ قاطع نه وي موجود شوی. وګوره: [کتاب الام للامام الشافعی /ج ٥ / ص ٢٤١ / الصارم المسلول لابن تيميه / ص ٨٠ / بدايع الفوايد لابن القيم /ج ٣ / ص ١٦١ / تفسير ابن کثير /ج ٢ / ص ٩ / نيل الاوطار للشوکانی /ج ٢ / ص ١٤٩.

د لا مذهبو سرلښکر نواب صديق حسن خان هم ليکلي دي چې: (عبرت بعموم لفظ است نه بخصوص سبب، چنانچه در اصول متقرر شده است. [ بدور الاهله / ص ٢٠٩ ].

او د لا مذهبو شيخ الکل نذير حسين دهلوي ليکي چې: (اب جو کوئی کہے کہ یہ آیت کفار کی حق وارد ہیں تو وہ بڑا جاہل اور بی وقوف ہے، کیونکہ اعتبار عموم لفظ کا ہے، نہ کی خصوص محل کا، جیسا کہ جا بجا کتبِ احادیث، کتب اصول فقہ، واستدلالات صحابہ کرام سی واضح ہوتا ہے.. الخ. [ فتاوی نذیریہ / ج ٢ / ص ١٩٥ ].

ځوک چې وايي چې دا آيتِ کريمه د کفارو په حق کې نازل شوی دی، نو دا غټ جاهل دی، ځکه چې عتبار عموم د لفظ ته وي، نه خصوص د سبب ته، لکه څرنګه چې دا خبره ځای په ځای د احاديثو او د صول فقهې د کتابونو او د صحابه کرامو د استدلالاتو څخه واضحه شوې ده.

۲-لا مذهبان دوهم اعتراض دا کوي چې: په قرآن کريم کې الله جل جلاله حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته خطاب کوي چې: (سَلْ بَنِـي اسرائيلَ) نو آيا په دې ځای کې رسول الله صلی الله عليه وسلم د بني اسرائيلو مقلِد شو ؟

**الجواب**: سوال په دوه قسمه دی: يو د لا علمی سوال دی، چې په دې کې سايل مقلد وي او بل د اتمام الحجة او د خصم د خاموشه کولو و غيره لپاره دی د رسول الله صلی الله عليه وسلم سوال د اتمام الحجة لپاره دی، چې په دې کې تقليد نه راځي.

۳-لا مذهبان دا اعتراض هم کوي چې: د (فاسئلوا اهل الذکر) سره د (بالبينت والزّبـرِ) ذکر هم راغلی دی، چې حاصل يې دا راوځي چې: دا سوال به له دليل سره وي.

**اول جواب**: د (بالبينت والزّبُرِ) تعلق د (وما ارسلنا) سره دی، له (فاسئلوا) سره نه دی.

**دوهم جواب**: عام سړی په مسئله نه پوهيږي، نو په دليل به څه پوه شي ؟

**دريم جواب**: په سورة (حج) کې ورسره د (بالبينت والزبر) ذکر نشته.

**څلورم جواب**: که سوال له دليل سره ضروري وي، نو په مصنف ابن ابی شيبه او مصنف عبدالرزاق و غيره کې بيا ولې د صحابه کرامو او تابعينو په زرګونو داسې استفتاګانې او فتوګانې دي چې د دليل مطالبه پکې نشته ؟

۴-لا مذهبان اعتراض کوي چې دلته د (ان کنـتم لا تعلمـون) قيد دی، نو معلوميږي چې د عالِم لپاره تقليد نشته.

**جواب:** تقلید غیر مجتهد په اجتهادیاتو کې کوي او غیر مجتهد اګر که عالم وي لکن داجتهادیاتو په استنباط کې د لاتعلمون مصداق دی.

۵-لا مذهبان اعتراض کوي چې کله عوامو ته مسئله پېښه شي نو دوي خو د مساجدو د امامانو او د مدرسو له مفتیانو څخه پوښتنه کوي، نو دا خو ددغو مفتیانو او د مساجدو د امامانو تقلید شو. د امام ابوحنیفه رحمه الله تقلید خو نه شو.

**جواب:** د مدارسو مفتیان او د مساجدو امامان د احنافو د کتابونو څخه جواب رانقلوي، له خپل ځان څخه جواب نه ورکوي، له دې وجهې خبره بېرته امام صاحب رحمه الله ته ورسېدله، که د مدرسو مفتیان مجتهدین وی او په خپل اجتهاد یې فتوی ورکولې، نو یقینا چې بیا به مستفتیان د مفتیانو مقلدین وی.

۶-لا مذهبان بل اعتراض دا کوي چې امام صاحب رحمه الله خو وفات شوی دی او سوال خو له ژوندي څخه کېږي.

**جواب :** مونږ د امام صاحب رحمه الله د ذات تقلید نه کوو، بلکې د هغه مبارک د عِلم تقلید کوو. او علم یې په کتابونو کې موجود دی. امام شافعي رحمه الله فرمايي چې: المذاهب لاتموت بموت اربابها (عقدالفريد صـ ٧٤) والبرهان للامام الجويني ج ١ صـ ٧١٥) د صاحب المذهب په وفات باندې مذهب نه ختمېږي ابن القيم رحمه الله فرمايي چې: المذهب لاتبطل بموت اصحابها تعليق عقدالفريد صـ ٧٤)

## څلورم دلیل دوجوب دتقلید

هو قوله تعالى[وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَى أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ مِنْهُمْ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطَانَ إِلَّا قَلِيلًا (النساء/٨٣)

په دې آیت کریمه کې د مجتهدینو د تقلید طرف ته ترغیب بیان شوی دی، امام ابو بکر جصاص رحمه الله د دې آیت په تشریح کې فرمائي چې: د دې ایت څخه یو څو مسائل را معلومېږي.

اوله مسئله: چې په پېښېدونکو مسايلو کې بعضې مسايل داسې هم شته چې صراحةً په قرآن او په سنت کې نه وي ان في احكام الحوادث ماليس بمنصوص عليه.

دوهمه مسئله: چې ان على العلماء استنباطه په اجتهادي مسائلو کې په مجتهد باندې اجتهاد واجب دی.

دريمه مسئله: چې (أن العامي عليه تقليد العلماء في أحكام الحوادث (أحكام القرآن لجصاص) دلته لفظ د عامي را غلی دی او د عامي ذکر چې په مقابله د مجتهد کې راشي مراد ترينه غير مجتهد وي، يعنې په احکامو د حوادثو کې په غير مجتهد باندې د مجتهد تقليد کول لازم دي، امام رازي رحمه الله فرمايي چې: فثبت ان الاستنباط حجة، والقياس اما استنباط او داخل فيه فوجب ان يكون حجة، اذا ثبت هذا فنقول: الاية دالة على امور احدها ان في احكام الحوادث مالا يعرف بالنص بل بالاستنباط، وثانيها ان الاستنباط حجة، وثالثها ان العامي يجب عليه تقليد العلماء تفسير كبير سورة النساء ص(۸۳) يعنې د استنباط حجيت ثابت شو، او قياس يا د استنباط دوهم نوم دی او يا په استنباط کې داخل دی، نو لهذا دا هم حجت دی دا ايت په درو امورو دلالت کوي (۱) په راپېښو شوو مسايلو کې داسې مسايل هم شته چې صراحةً د نص څخه نه را معلومېږي بلکې د قياس او داستنباط په ذريعه را معلومېږي (۲) استنباط حجت دی (۳) په راپېښو شوو مسايلو کې په غير مجتهد باندې د مجتهد تقليد واجب دی، صاحب د احکام القرآن او صاحب د تفسير حقاني هم دا ليکلي دي چې دا آيت د تقليد پر وجوب باندې دليل دی.

(۱) اعتراض: دلامذهبو مشر (نو مسلم) غلام محی الدين چې زوړ هندو وو او نوم يې هري چند بن ديوان چند کتهري وو اوس که دا زوړ هندو وايي چې زه هم مجتهد يم نو زما هم تقليد وکړه

جواب: مخکې تېر شو چې ته به ورته ووايې چې ته د خپلو اصولو مطابق چې کتاب الله او سنت رسول دی خپل مجتهد والی ثابت کړه، په کوم ايت او يا په کوم حديث کې يې کتهري ته مجتهد ويلي دي زه د خپل امام صاحب رحمه الله اجتهاد د خپلو اصولو مطابق چې ادله اربعه دي ثابتولای شم ځکه چې امام صاحب په اجماع باندې مجتهد دی.

تحقيقي جواب: صاحب دهدايې فرمايي چې: وَفِي حَدِّ الِاجْتِهَادِ كَلَامٌ عُرِفَ فِي أُصُولِ الْفِقْهِ وَحَاصِلُهُ أَنْ يَكُونَ صَاحِبَ حَدِيثٍ لَهُ مَعْرِفَةٌ بِالْفِقْهِ لِيَعْرِفَ مَعَانِيَ الْآثَارِ أَوْ صَاحِبَ فِقْهٍ لَهُ مَعْرِفَةٌ بِالْحَدِيثِ لِئَلَّا يَشْتَغِلَ بِالْقِيَاسِ فِي الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ وَقِيلَ أَنْ يَكُونَ مَعَ ذَلِكَ صَاحِبَ قَرِيحَةٍ يَعْرِفُ بِهَا عَادَاتِ النَّاسِ لِأَنَّ مِنْ الْأَحْكَامِ مَا يَبْتَنِي عَلَيْهَا. (ج:٣ صـ١٣٣) آداب القاضي»، بيا محشي صاحب ليکي چې فالوجه ان يقال صاحب حديث وفقه ليعرف معاني الاثار ويمتنع عن القياس بخلاف النص، والحاصل ان يعلم الكتاب والسنة باقسامهما من عبارتهما، واشارتهما، ودلالتهما،واقتضائهما، وباقي الاقسام، ناسخها ومنسوخها ومناطات احكامها، وشروط القياس، والمسايل المجمع عليها، لئلايقع في القياس فى مقابلة الاجماع واقوال الصحابة، هدايه ج ٣، صـ ١٣٢ رقم ١٤). يعنې مجتهد به هم محدث وي او هم فقيه فقاهت په کې ځکه چې شرط شو چې داحاديثو په معنی مراده پوه شي او محدثوالی پکې ځکه شرط شو چې دنص په مقابل کې قياس ونکړي، خلاصه دا چې مجتهد به د کتاب او دسنت او دکتاب او دسنت داقسامو پوره عالم وي، اقسام دکتاب او دسنت عبارت النص، اشارة النص ، دلالة النص، اقتضاء النص ، ناسخ او منسوخ، مناطات الاحکام وغيره دي ، همدارنګه به دقياس شرطونه ورته معلوم وي، همدارنګه به اجماعي مسئلې ورته معلومې وي لپاره ددې چې داجماعي مسائلو په مقابله کې قياس ونکړي همدارنګه به اقوال دصحابه و ورته معلوم وي.

علامه فخر الاسلام بزدوی رحمه الله دمجتهد تعريف دارنګه کړی دی چی ( وأما شرطه فان يحوى علم الكتاب بمعانيه وعلم السنة بطرقها ومتونها ووجوه معانيها وان يعرف وجوه القياس)(كنز الاصول صفـ ٢٨٨ الملل والنحل ج١صفـ ٢٠٠) يعني دمجتهد لپاره شرط دا دی چی دی به دقرآنکريم پوره عالم وي مع المعاني او علم الحديث به ئي زده وي سره له ټولو طريقو، او سره له متونو، او وجوهو دمعانيو او وجوه دقياس به هم پيژني،

او په اعلام الموقعين للعلامة ابن القيم کې دشروط الافتاء عند العلماء دعنوان لاندی ليکي چی دمجتهد لپاره شرط دادی چې تمام علوم به ئي زده وي ، او له دې سره سره به ئي څلور لکه احاديث ياد وي دا شرط ئي له امام بخاري امام مالک او امام شافعی رحمهم الله څخه را نقل کړی دی.

نو اوس کوم لامذهبه پدې شرطونو برابر دی.

**(۲)سوال:** چې امام صاحب رحمه الله ته خو هم پدې معیار نه وو برابر؟

**جواب:** تفصیلي جواب به په بل ځای کې وکړو ان شاء الله تعالی خو عام الفهم جواب دادی چې په امام صاحب رحمه الله باندې دو لس خلافتونه تېر شوي دي، چې په دوي کې لس اموي وو، او دوه عباسي وو. دامام صاحب رحمه الله ولادت دعبد الملک بن مروان اموي په خلافت کې شوی دی، او دابو جعفر المنصور العباسی په خلافت کې وفات شوی دی، په (۱۳۰) هجري کې مروان ثاني ابن محمد اموي خلیفه وو، او دده له طرفه دکوفې والي یزید بن عمرو بن هبیره وو، ده په امام صاحب رحمه الله سخت ظلمونه وکړل په دې جرم چې امام صاحب رحمه الله دقاضي القضات عهده نه قبلوله، او په (۱۵۰) هجري کې بیا ور باندې خلیفه منصور په همدې جرم ظلمونه وکړل او شهید یې کړو.

دا خلافتونه دتابعینو او د تبع تابعینو په زمانه کې وو، نو څرنګه دې خلیفه ګانو ته ددومره شاهي أسبابو سره دامام صاحب رحمه الله څخه غټ فقیه او محدث نه پیدا کیدلو؟ او څرنګه یې یو ناپوه سړی قضاء ته مجبورولو؟ نو معلومیږي چې امام صاحب دوي ته معلوم وو چې دا دوخت لوی امام او لوی محدث دی او په دغه دور کې دده څخه بل غټ فقیه او محدث نشته ځکه خو ئې قضا ته مجبورولو.

## دتقلید دوجوب لپاره پنځم دلیل

الله تعالی جل جلاله فرمایي[وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ]لفظي معنی یئ داسې ده چې ته تابع جوړ شه دلارې دهغه چا چې زما طرف ته ئي رجوع کړې وي، او د "من اناب "اولین مصداق مجتهدین دي، ځکه چې مجتهدین اولین هغه خلک دي چې په استنباط داحکامو کې دالله او د پیغمبر طرف ته رجوع کوي، او سبیل په معنی دمذهب دی. او امر لپاره د وجوب دی، نو حاصل د معنی ئي داشو چې ته تقلید وکړه دمذهب دمجتهد، ځکه چې داتباع او د تقلید یوه معنی ده.

علامه الوسی رحمه الله ددې تفسیر کوي چې (وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ بالتوحید والاخلاص بالطاعة) او دا معلومه خبره ده چې دموحدینو او د مخلصینو فی الطاعة اولین مصداق مجتهدین دي،

نو دا آیت دلیل شو پر وجوب د تقلید، ابن تیمیة رحمه الله د دې آیت په تفسیر کې لیکي ( والأمة منيبة الى الله فيجب اتباع سبلها (معارج الأصول صفـ ۱۲).

(۱) غیر مقلدین اعتراض کوي چې په دې آیت کې خو د امام صاحب نوم نه دی راغلی

جواب: الله تعالی جل جلاله په قرآنکریم کې او نبي ﷺ په احادیثو کې د جماعت لمونځ ذکر کړی دی فرمائي: وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ یعني رکوع وکړئ له رکوع کوونکو سره او س چې ته په کوم امام پسي لمونځ کوي نو د هغه امام نوم خو په راکعین کی ندی راغلی، بیا نو ولې اقتداء ورپسې کوی؟ او که ته وائي چې زما د امام نوم اگر چې صراحةً ندی ذکر شوی لکن په راکعینو کې د خل دی نو بیا زه هم همداسې وایم چې امام صاحب په "من اناب "کي داخل دی اگر چې نوم ئي ندی راغلی.

دوهم جواب: په قرآنکریم کي الله تعالی فرمائي[فَاقْرَءُوا مَاتَيَسَّرَ مِنَ الْقُرآنِ] الله تعالی د قرآن د قرأت امر کړی دی او مونږ او تاسو ئي په قرائة د حفص او په روایت د قاري عاصم کوفي باندي لولو، حال دا چې د دې دواړو قاریانو نومونه خو په قرآن او حدیث کی صراحتاً ندي راغلي، نو ولې د دوي په راهنمايي کې قران لولئ ؟

دریم جواب: په یو آیت کریمه کې الله تعالی فرمائي[ قُل إِن كُنتُم تُحِبُّونَ اللهَ فَاتَّبِعُونِ] د لته په ایت کی مراد تابع داري د سنتو د رسول الله صلی الله علیه وسلم ده، نو په دې ایت کې خو د امام بخاري، امام مسلم وغیره محدثینو نومونه ندي راغلي نو بیا ولې د دوي په راهنمايي کې د نبي ﷺ د سنتو تابعداري کوئ؟ او که تاسو وائي چې دا صرف رهنما گان دي د دوي په نومونو باندې تصریح نه ده ضروري نو بیا مونږ وایو چې امام صاحب رحمه الله خو هم راهنما دی نو بیا د امام صاحب رحمه الله په نوم باندې تصریح ولی ضروري شوه ؟.

۲-غیر مقلدین اعتراض کوي: چې تاسو د امامانو اتباع کوئ او مونږ د محمد صلی الله علیه وسلم اتباع کوو ؟

**جواب:** تاسو هیڅکله هم د نبي ﷺ اتباع نه ده کړ، ځکه چې محمد ﷺ د مجتهد د پیروۍ امر کوي (وأولى الأمر منكم) او تاسو چې د محمد پیروي نه کوئ، نو دا خو د محمد ﷺ خبره نه منئ، د دې مثال داسې دی لکه دوه وروڼه دي دا یو وروریو ځوی لري، او خپله مړ کیږي نو وصیت ئي وکړو چې زما دا ځوی چې کله غټ شي نو دا به ځما د ورور خبره مني، نو کله چې مړ شو دا ځوي ئي او س د تره خبره نه مني، نو خلک وائي چې دا هلک چې د خپل تره خبره نه مني، نو دا خو د خپل پلار خبره نه مني، ځکه چې پلار ئي ویلي وو چې کله چې ځما ځوی غټ شي نو د خپل تره خبره به مني، همدارنګه محمد ﷺ مونږ ته امر کړی دی چې د مجتهد (أولى الامـر) خبره وومنئ، او د مجتهد پیروي وکړئ، دوي د مجتهد خبره نه مني، او پیروي ئي نه کوي، نو دا د محمد صلى الله عليه وسلم خبره نه منل دي، نو څوک چې د مجتهد پیروي کوي او د مجهتد په راهنمائي کې په دین باندې عمل کوي، هغه د محمد ﷺ خبره و منله، او څوک چې د مجتهد په راهنمائي کې په دین باندې عمل نه کوي، نو هغه د محمد ﷺ خبره نده منلې.

**دوهم جـواب:** دلامذهبو دا سوال غلط دی، حقیقت دا دی چې مونږ د پیغمبر ﷺ خبره منو خو دیو مجتهد په رهنمائي کې، او تاسو ئي د خبرو د منلو دعوی کوئ لیکن د غیر مجتهد په رهنمایئ کې، چې د دې زمانې ملایان دي، بلکې تاسو د یو هندو په راهنمایې کې په دین باندې د عمل کولو دعوه کوئ، د فقې حنفي په خلاف باندې یو هندو کتاب ولیکلو په نوم د الظفر المبين، دا کتاب د غیر مقلدینو د کتابخانو زینت دی، او ټول د همدې کتاب څخه نقل کوي، د هغه هندو نوم دی هري چند بن دیوان چند کتهري، نو زمونږ او ستاسو رهنمایان جدا دي. ستاسو رهنما غیر مجتهد هندو دی او زمونږ رهنما مجتهد اعظم دی چې امام اعظم رحمه الله دی، د دې مثال داسې دی لکه درې ړانده چې نورستان ته روان دي نو یو ړوند خپله روان دی، نه رهنما ورسره شته او نه هم له چا څخه پوښتنه کوي، نو دا ړوند به ضرور هلاکیږي، دا د غیر مقلدینو د ملایانو مثال دی چې نه د بل مجتهد څخه پوښتنه کوي او نه خپله مجتهدین دي، نو دا به هلاکیږي.

دويم ړوند روان دی لکن بل ړوند ته ئي لاس ورکړی دی، او ړوند دده رهنمائي کوي، نو دا دواړه به هم هلاکيږي ځکه چې دا هم ړوند دی او رهنمائي هم ړوند دی، دا مثال د عوامو لامذهبو دی ځکه چې دوي هم غير مجتهدين دي او رهنمايان يې هم د دې زمانې ملايان غير مجتهدين دي. دريم ړوند روان دی لکن يو خير خواه، راه بلد، راهنما ته ئي لاس ورکړی دی، نو دا ړوند به مقصد ته رسيږي او نه به تباه کيږي، دا مثال د امام صاحب رحمه الله د متبعينو او د نورو امامانو د مقلدينو دی چې مجتهد اعظم امام صاحب او يا بل مجتهد ته ئې لاس ورکړی دی، نو دا به نه تباه کيږي بلکې منزل ته به رسيږي ځکه چې د مجتهد او د خير خواه پيروي ئي وکړه.

## دتقليد دوجوب لپاره شپږم دليل

الله تعالى جل جلاله فرمائي﴿ وَقَالُوا لَو كُنَّا نَسمَعُ اَونَعقِلُ مَاكُنَّا فِي اَصحَابِ السَّعِيرِ﴾ يعني کفار به وائي کاشکې چې مونږ يا مقلدين وي او يا مجتهدين نو مونږ به په اصحاب السعير کې نه وو. دا تفسير په تفسير عزيزی کې شاه عبد العزيز رحمه الله ليکلې ده. همدارنګه په تفسير حقاني کې الشيخ محدث مولانا عبد الحق دهلوي رحمه الله ليکي چې دانسان د فلاح لپاره دوه لارې دي يو تقليد، دوهم اجتهاد، که څوک ملکه د اجتهاد لري هغه به اجتهاد کوي، او که څوک ملکه د اجتهاد نه لري هغه به تقليد کوي، نو نا پوهه سړی به په پوهه سړي پسې روان وي، او چې نه خپله پوهيږي او نه د بل پوهه پسې زي نو دا به تباه کيږي، همدارنګه مولانا اشرف علي تهانوی رحمه الله فرمائي چې مراد له نسمع څخه تقليد او د نعقل څخه اجتهاد او تحقيق دي (دعوات عبديت دوسرا وعظ) او د تقرير نوم طريق النجاة دی.

همدارنګه په صحيح البخاري کي د (باب الميت يسمع خفق النعال) لاندې يو لوي حديث دی، په هغې کي يو جمله دا سې ده چې (لادريت ولا تليت) د دې تشريح قسطلاني شارح د صحيح البخاری داسې کړې ده. چې لادريت يعنې نه مجتهد وی ولا تليت يعنې نه مقلد وی په دې دليل سره د دوي هغه سوال هم دفعه شو چې وائي ايا په قبر کی به له تا څخه د امام پوښتنه کيږي؟ نو جواب وشو چې په قبر کې خو لا څه کوی په حشر کې به يې هم پوښتنه کيږی کما مر فی الآية.

دوهم جواب: په قبر كي خو صراحتاً صرف دري پوښتني كيږي نور دلمانځه، د زكاة، او دحج پوښتي خو صراحتاً نه كيږي، نو بيا خو له دې تولو څخه منكر شه، ځكه چې پوښتنه ئي صراحتاً نه كيږي،

دريم جواب: په قبر كي خو دامام بخاري امام ترمذي وغيرهما پوښتنه هم نه كيږي نو بيا د دوي يو حديث هم مه منه، همدارنگه د حضرت ابو بكر صديق حضرت عمر وغيره رضي الله عنهم پوښتنه خو هم نه كيږي نو بيا د دوي څخه هم منكر شه، ځكه چې په قبر كې يې پوښتنه نه كيږي.

## دتقليد دوجوب لپاره اووم دليل

قال الله تعالى فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ (التوبه /۱۲۲)

يعني پس ولې ونه وتل دهرې غټې فرقې د دوي څخه يوه ډله چې پوهه حاصله كړي په دين كې، او چې وويروي خپل قوم هر كله چې بيرته ورشي د دوي په طرف، لپاره د دې چې دوي وويريږي. امام جصاص رحمه الله د دې آيت په تفسير كي ليكي ( فاوجب الحظر بانذارهم والزم المنذرين قبول قولهم) نو دا د تقليد دوجوب لپاره دليل دی، چې يوه ډله دې جهاد ته لاړه شي، او بله دې په دين كې پوهه حاصله كړي، او دا أوله ډله دی ددې دوهمې ډلې څخه دين زده كړي خو دائي نه دي ويلي چې دا دين به سره له مطالبې د دليله زده كوي چې همدې ته تقليد وايي، د دې خبرې يادول بيا ضروري دي چې تقليد ديته نه وائي چې بي دليله دچا خبره ومنې بلكه تقليد ديته وائي چې مطالبه د دليل ونه كړی دليل خو موجود وي خو ته ئي مطالبه ونه كړی.

## د تقليد دوجوب لپاره له احاديثو څخه دلائل

## اول يو څو عام الفهمه مثالونه

**اول مثال:** دحضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم او دحضرت ابو بكر او د عمر رضي الله عنهما په زمانه كی د جمعې دلمانځه لپاره يو اذان كيدلو چې هغه ته مونږ دوهم اذان وايو، بيا چې كله دحضرت عثمان رضي الله عنه زمانه راغله او خلك ډير شول نو عثمان ﷺ په خپل اجتهاد باندې اول اذان هم

شروع کړلو، نو هيڅ يو صحابي يا تابعي د حضرت عثمان د دې اجتهادي اذان مخالفت ونه کړو، او ټولو دا مسئله ومنله، همدارنګه هيڅ يو صحابي يا تابعي مطالبه د دليل ونه کړه، ديته وائي اجماع د صحابه وو او تابعينو پر تقليد باندې، او دا يو وائي د صحابه وو او تابعينو اجماع نه وه بلکې تر ۱۸۵۷ عيسوي کال پورې يو مسلمان هم مخالفت ونکړو، بيا چې کله هندوستان ته انګريزان راغلل او غير مقلدين يې راپيدا کړل، نو غير مقلدينو د دې اذان څخه انکار شروع کړو، غير مقلدين دې اذان ته بدعت عثماني وائي، بيا عجيبه لا داده چې کوم ته چې دوي بدعت عثماني وائي نو همغه اذان کوي او چې کوم سنت نبوي بولي هغه نکوي، دوي د حضرت عثمان رضي الله عنه اول اذان کوي، او کوم چې د نبي ﷺ او د ابو بکر رضي الله عنه او د عمر رضي الله عنه په زمانه کې کېدلو يعنې دوهم اذان د منبر په مخ کې نو هغه يې بند کړی دی.

**دوهم مثال:** کله چې د يمامې په جنګ کې اويا (۷۰) قاريان صحابه رضي الله عنهم شهيدان شول، نو حضرت عمر رضی الله عنه ابو بکر صديق رضی الله عنه ته وفرمايل چې که چيرې د قرآن قاريان همداسې شهيدان کيږي نو د دين ډيره حصه به ضايع شي، نو د دې لپاره ضروري ده چې د قرآنکريم تدوين وکړو، او راجمع ئي کړو، حضرت ابو بکر صديق رحمه الله ورته وفرمايل چې څنګه به هغه کار وکړو چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ندی کړی، لکن په آخر کې يې دا خبره ومنله چې تدوين د قرآن به وکړو او دا اجتهادي فيصله يې عملي کړه، ټولو صحابه وو په يو اتفاق له دوي سره موافقت وکړو، يوه صحابي هم له دې دواړو مجتهدينو څخه مطالبه د دليل ونه کړه دا بعينه اجماع ده په تقليد باندې.

**دريم مثال:** ټولو مسلمانان قرآن لولي لکن د قرآنکريم د زور، د زير، او د پيښ دلائل چا ته ندي معلوم (الا ماشاء الله) دا زبر، زير او پيښ يعنی حرکات او سکنات حجاج بن يوسف قرآنکريم ته لګولي دي، او د قرآن تلاوت بغير د مطالبې د دليل څخه په پيړۍ پيړۍ همداسې را روان دی، هيڅ چا دليل ونه غوښتو بس همدا اجماع شوه په تقليد.

## اول دليل

د حضرت عرباض بن ساريه رضی الله عنه حديث دی: فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ فَسَيَرَى اخْتِلافًا كَثِيرًا، فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ مِنْ بَعْدِي ، وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ، وَإِيَّاكُمْ

مُحْدَثَاتِ الأُمُورِ، فَإِنَّ كُلَّ بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ ".[شرح مشكل الآثار، سنن ترمذي، كتاب العلم، باب أخذ بالسنة... الخ]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي چې په تاسو کې چې څوک ژوندي پاتې شو نو سخت اختلاف به ويني او د دې اختلاف خاتمه به په څه کيږي؟ نو وې فرمائيل چې عليكم بسنتي وسنة الخلفاء آه دلته د عليكم لفظ د وجوب لپاره دی، يعني ځما په سنتو پسې ځئ او ځما د خلفاو د سنتو پسې ځئ، خو دا پکې نه ائي چې ځما د خلفاو د سنتو پسې چې ځئ نو مطالبه د دليل ترې کوئ، نو دا د خلفاو تقليد شو.

**۱-غيرمقلدين اعتراض كوي:** چې د خليفه اطاعت په سياسي امورو کې دی په دين کی نه دی.

**جواب:** د أولى الامر د تحقيق لاندې تير شو چې سياست او دين دا غربيانو جدا کړي دي په اسلام ي سياست عين دين دی.

**۲- غيرمقلدين دوهم اعتراض كوي:** چې په حديث کې خو خلفاء په صيغه د جمعی ذکر شوي دي، نو دا خو مطلق تقليد دی تقليد شخصي خو نه دی ذکر؟

**جواب:** خلفاء په صيغه د جمعې ذکر دی خو په يو وخت کې دوه خليفګان نه وي، په يو وخت کې به يو خليفه تقليد شخصي كيږي،عَنْ أَبِي سَعِيدٍ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِذَا بُويِعَ لِلْخَلِيفَتَيْنِ فَاقْتُلُوا الآخَرَ مِنْهُمَا.

ترجمه: په يو وخت کې چې دوه خليفګان راغلل هغه وروستنی يې قتل کړئ( مسلم جـ ۲صفـ ۱۲۵ والمستدرک علی الصحيحين للحاكم رقم : ۲٦٦٥ و تعليق الذهبي فی التلخيص : على شرط البخاري ومسلم).

همدارنګه عَنْ عَرْفَجَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ: مَنْ أَتَاكُمْ وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ فَاقْتُلُوهُ [رواه مسلم رقم ٤٩٠٤: والبيهقي فی السنن الكبرى رقم : ۱۷۱۳٦]

ترجمه: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي: هر څوک چې وي خو چې تاسې په يو سړي راجمع وئ او هغه په تاسو کې اختلاف جوړوي نو قتل يې کړئ.

**غیر مقلدین دریم اعتراض کوي:** چې ابو بکر ﷛ اول خلیفه وو د ده اطاعت کیدلو او بیا حضرت عمر ﷛ خلیفه شو نو بیا د ده اطاعت شروع شو، بیا حضرت عثمان ﷛ خلیفه شو نو بیا د ده اطاعت شروع شو بیا حضرت علي ﷛ خلیفه شو نو بیا د ده اطاعت شروع شو، نو د دوي اتباع یکی بعد از دیگری شوه تقلید شخصي خو نه شو؟.

جواب: د حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه خلافت دوه نیم کاله وو، په دې زمانه کې یوائې د ده تقلید شخصي کیدلو، بیا وروسته لس کاله د حضرت عمر خلافت وو په دې زمانه کې یوائې د ده تقلید شخصي کیدلو، بیا دولس کاله د حضرت عثمان ﷛ خلافت وو، په دې زمانه کې یوائې د ده تقلید شخصي کیدلو، بیا څلور کاله نهه میاشتې او څو ورځې د حضرت علي ﷛ خلافت وو په دې زمانه کې یوائې د ده تقلید شخصي کیدلو، او مخکښې تقلید ولې نه پاتې کیدلو؟ ځکه چې د مخکښې صحابي مذهب به نه وو مدون شوی.

**٤- غیرمقلدین څلورم اعتراض کوي:** چې د خلفاو راشدینو له سنتو څخه مراد هغه دي چې له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه ثابت وي د دوي ځانته سنت ندي مراد؟

**جواب:** دلته په حدیث کې واو راغلی دی او واو لپاره د عطف وي، او په معطوف او معطوف علیه کې تغایر وي، نو سنة الخلفاء عطف دی په سنتي باندې، نو د خلفاو د سنتو تابعداري جدا ضروري ده، او د رسول د سنتو تابعداري جدا ضروري ده.

**دوهم جواب:** د حضرت علي (رضی الله عنه) څخه روایت دی چې د نبی کریم صلي الله علیه وسلم او د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه په زمانه کې به د شراب خور لپاره ۴۰ دورې سزا ورکول کېدله او حضرت عمر به اتیا دورې سزا ورکوله او بیا فرمائی چې: وکلٌ سنةٌ، (مسلم ج ۲ صـ ۷۲) نو دا یو سنت نه شو بلکه ډیر سنتو نه شول، نو د خلفاؤ راشدینو د سنتو ځانله پیروي واجب ده او د پیغمبر د سنتو ځانله پیروي واجب ده.

## اعتراض: په څلورو کې کوم مذهب حق دی ؟

غیرمقلدین وایي چې کله په یوه مسئله کې د څلورو امامانو اختلاف راشي نو په دوي کې به یو په حق وي، ځکه چې حق یو وي او تاسو وایي چې څلور واړه مذهبونه حق دي.

اول الزامي جواب: یو لک څلیریشت زره کم او زیات پیغمبران حق دینو یو لک څلیرشت زره پیغمبران څرنګه حق دي حق خو یو وي؟ که ته وایې چې هلته د ناسخ او منسوخ اختلاف دی، نو مونږ وایو چې دلته د راجح او د مرجوح اختلاف دی چې د ناسخ او منسوخ په صورت کې یو لک څلیرشت زره څه کم او زیات حق کیدلی شي، نو د راجح او مرجوح په صورت کې څلور مذهبونه څرنګه نه شي حق کیدلی؟ او که ته وایې چې هلته د زمانو اختلاف دی، نو همدارنګه مونږ وایو چې دلته د علاقو اختلاف دی.

جواب: حق کله په مقابل د خطاء کې وي، او کله په مقابل د باطل کې وي، کله چې مونږ وایو چې څلور واړه مذهبونه حق دي نو هلته حق په مقابل د باطل کې دی، یعنې څلور واړه باطل نه دي، د څلور واړو عمل صحیح دی شرعاً لکه د څلورو کسانو څخه چې قبله غلطه شوې وي او هر یو په خپل غالب ګمان څلورو طرفونو ته لمونځ وکړي نو د هر یو عمل صحیح دی شرعاً اګر چې په نفس الأمر کې به یو صواب او نور درې خطا وي، نو کله چې د څلورو واړو مذهبونو پخپل مابین کې یو ته حق وایو، نو بیا دلته حق په مقابل خطا کې دی، او په معنی د صواب سره دی، په مقابل د باطل کې نه دی، دا مطلب چې یو به صواب وي او دا نور به خطأ وي، کوم چې صواب وي هغه ته به الله تعالی دوه اجره ورکوي او کوم چې خطأ وي هغه ته به الله یو اجر ورکوي، د دې مسئلې لپاره دلیل او د تقلید د وجوب لپاره بل دلیل دا لاندې حدیث مبارکه دی.

## دوهم دلیل:

عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ.وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ [رواه البخاری رقم: ۷۳۵۲ فی باب أَجْرِ الْحَاكِمِ إِذَا اجْتَهَدَ فَأَصَابَ ، أَوْ أَخْطَأَ.و مسلم ج۲ ص ۷٦ رقم : ٤٥٨٤ ، سنن أبي داود رقم: ۳٥۷٦ ، سنن الترمذي رقم: ۱۳۲٦ و قال الشيخ الألباني : صحيح].

یعنې کله چې حاکم حکم وکړي، پس اجتهاد وکړي، بیا حق ته ورسیږي، پس د ده لپاره دوه اجره دي، او چې کله حاکم حکم وکړي، پس اجتهاد وکړي، بیا خطاء شي، نو د ده لپاره یو اجر دی.

۱-اعتراض: په حديث مذكوره كې خو تذكره د حاكم راغلى ده، نو دا د ننِ سبا قاضيان خو هم حاكمان دي نو ايا اوس به دوي ته هم د خطايي په صورت كې يو اجر وي او حق ته د رسېدو په صورت كې به ورته دوه اجره وي؟

جواب: په حديث كې د دې زمانې حاكم ندى مراد، بلكه د خير القرون حاكمان مراد دي هغو به حاكمان هم وو او مجتهدين به هم وو.

۲-**اعتراض:** غير مقلدين وائي چې مونږ هم مجتهدين يو كه خطأ شولو نو يو اجر به وى او كه حق ته ورسيدلو نو دوه اجره به وي؟

**جواب:** غير مقلدين دې د خپلو اصولو مطابق چې صرف قران او حديث دى خپل مجتهد والى ثابت كړي، په كوم ايت او يا په كوم حديث كې يې كوم غير مقلد ته مجتهد ويلي دي؟ او زه خو د خپلو اصولو مطابق چې ادله اربعه دي د امام صاحب مجتهد والى ثابتولى شم چې: د امام صاحب رحمه الله مجتهد والى په اجماع سره ثابت دى.

د دې حديث په تشريح كې امام نووي رحمه الله فرمايي چې:

قَالَ الْعُلَمَاء : أَجْمَعَ الْمُسْلِمُونَ عَلَى أَنَّ هَذَا الْحَدِيث فِي حَاكِم عَالِم أَهْل لِلْحُكْمِ ، فَإِنْ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ : أَجْرٌ بِاجْتِهَادِهِ ، وَأَجْرٌ بِإِصَابَتِهِ ، وَإِنْ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ بِاجْتِهَادِهِ .وَفِي الْحَدِيث مَحْذُوف تَقْدِيره : إِذَا أَرَادَ الْحَاكِم فَاجْتَهَدَ ، قَالُوا : فَأَمَّا مَنْ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْحُكْمِ فَلَا يَحِلّ لَهُ الْحُكْم ، فَإِنْ حَكَمَ فَلَا أَجْر لَهُ بَلْ هُوَ آثِمٌ ، وَلَا يَنْفُذ حُكْمه ، سَوَاء وَافَقَ الْحَقّ أَمْ لَا ؛ لِأَنَّ إِصَابَته اِتِّفَاقِيَّة لَيْسَتْ صَادِرَة عَنْ أَصْل شَرْعِيّ فَهُوَ عَاصٍ فِي جَمِيع أَحْكَامه ، سَوَاء وَافَقَ الصَّوَاب أَمْ لَا ، وَهِيَ مَرْدُودَة كُلّهَا ، وَلَا يُعْذَر فِي شَيْء مِنْ ذَلِكَ [مسلم ج۲ صفـ ۷۶]

حضرت امام نووي رحمه الله فرمائي چې دا حديث په حق د مجتهد حاكم كې دى او د غير مجتهد لپاره حكم كول جائز نه دي، كه غير مجتهد په اجتهادي مسئله كې خطايي وكړه هم گنهگار دى او كه مصيب وو هم گنهگار دى، نو نن سبا د دې وكټوري اهل حديثو رفع اليدين او آمين بالجهر او قراءة خلف الامام گناه

ده، که حق ته رسېدلي وي هم ګناهګار دي، او که خطاء وي نو هم ګناهګار دي، په ټولو اجتهادي مسائلو کې دوي ګنهګار دي، ځکه چې دوي نه مجتهدین دي او نه د مجتهد په رهنمائي کې پرې عمل کوي، یعنې نه پوهه دي او نه د بل پوهه پسې روان دي. او مقلدین حضرات که نه پوهیږي نو د بل پوهه پسې خو روان دي. که حق ته ورسیدل هم به الله تعالی اجر ورکوي او که خطا وو هم به ورته الله اجر ورکوي ځکه چې دوي د مجتهد په رهنمائي کې پدې متعارضو احادیثو عمل کوي.

**دریم دلیل:** په صحیح البخاري شریف جا صفـ ۲۳٤ کتاب الحج باب إِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ بَعْدَ مَا أَفَاضَتْ.رقم: ١٤٦ . کې دعکرمة رضي الله عنه حدیث دی، دحدیث الفاظ داسې دي:

عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ أَهْلَ الْمَدِينَةِ سَأَلُوا ابْنَ عَبَّاسٍ ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ، عَنِ امْرَأَةٍ طَافَتْ ثُمَّ حَاضَتْ قَالَ لَهُمْ تَنْفِرُ قَالُوا لاَ نَأْخُذُ بِقَوْلِكَ وَنَدَعَ قَوْلَ زَيْدٍ قَالَ إِذَا قَدِمْتُمُ الْمَدِينَةَ فَسَلُوا فَقَدِمُوا الْمَدِينَةَ فَسَأَلُوا فَكَانَ فِيمَنْ سَأَلُوا أُمُّ سُلَيْمٍ. (رواه الجامع الصحيح للبخاري رقم : ۱۷۵۷).

د مدینې خلک حج ته تلي وو، له دوي سره خپل امام نه وو، دوي ته یوه مسئله پیښه شوه، چې حل ئې ورته معلوم وو خو بیا هم د زیاتې تسلی لپاره حضرت عبد الله بن عباس ته ورغلل او پوښتنه ئې ترېنه وکړه چې کومه ښځه چې فرض طواف یې کړی وي او حائضه شي نو د طواف وداع سره به څه کوي؟ نو عبد الله بن عباس رضی الله عنه ورته وویل چې (تنفر) یعني طواف وداع ترېنه ساقط دی، دوي ورته وویل چې (لا نأخذ بقولک) مونږ ستا قول نه اخلو چې د زید ابن ثابت قول پرېږدو، نو کومه فتوی چې عبد الله بن عباس رضی الله عنه ورکړه هغه د زید بن ثابت رضی الله عنه له فتوی څخه خلاف وه لکن د مدینې خلک د زید بن ثابت پر قول او تقلید باندې کلک ولاړ وو.

د لانأخذ بقولک په ترجمه کی عمدة القاري او فتح الباري لیکي چې فقالت الأنصار لا نتابعك يا بن عباس وأنت تخالف زيدا.

يعني مونږ ستا تقليد نه کوو په داسې حال کی چې ستا قول د زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول سره خلاف دی، نو د مدينې خلکو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته صرف دا عذر وويلو چې ستا فتوی (زمونږ دامام) زيد بن ثابت رضی الله عنه د فتوې څخه خلاف ده، له دې حديث څخه دوه مسئلې معلومې شوې:

اوله: مسئله داده چې د مدينې خلک د زيد بن ثابت ﷺ په مذهب وو او د هغه تقليد شخصي يې کولو.

دوهمه: مسئله داده چې عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د دوي تقليد ته کفر او شرک و نه ويلو، او نه ئي انکار ورباندې وکړو. بلکه ورته يي وويل چې د خپل صاحب څخه پوښتنه وکړئ چې څما فتوی صحيح ده او که نه؟ د معجم اسماعيلي د روايت څخه معلوميږي چې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې خلکو ته د خپلې فتوی په دليل کې د حضرت زيد بن ثابت ﷺ حديث هم اورولی وو، لکن بيا هم د دوي اعتماد په خپل امام باندې وو چې زمونږه دامام زيد بن ثابت رضی الله عنه سره به ضرور دليل وي، کله چې بيا دوي مدينې ته ورسيدل نو زيد بن ثابت رضی الله عنه ته يئ رجوع وکړه، زيد بن ثابت رضی الله عنه چې مکرر تحقيق وکړو نو د خپل قول څخه يې رجوع وکړه او د هغې اطلاع يئ حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته ورکړه. (فتح الباري ج ۳ صـ ۷۵۰ د تقليد شرعي حيثيت صـ (زيد بن ثابت ﷺ) د رجوع څخه وروسته چې کله د اهل مدينه وو ملاقات د ابن عباس رضی الله عنهما سره وشو، نو ورته وې فرمايل چې: وجدنا الحديث كما حدثتنا. عمدة القاري ج ٤ صـ۷۷۷.

لامذهبيان اعتراض کوي چې د تقليد او د اتباع په مينځ کې فرق دی، تقليد د هته وايي چې ديو چا خبره ومني بغير له مطالبې د دليل او دا کار حرام دی او اتباع ديته وايي چې ديو چا خبره ومنی سره له مطالبی د دليله، (د تقليد حقيقت صـ ۲۵۶) همدا رنګه ليکي چې دليل صرف قرآن او حديث دی (صـ ۱۶۶)، نو اوس مونږ د دوه د دعوې مطابق د دوه څخه پوښتنه کوو چې مونږ ته يو دليل پيش کړه صرف د قرآن يا صرف د حديث څخه په دی خبره چې د تقليد او د اتباع په مابين کې فرق دی او که دليل در سره نه وي نو بيا د علماو اقوال پيش کول د خپلې خبرې مخالفت دی، دلامذهبو سره ايت او حديث نشته بلکې د علماؤ اقوال پيش کوي کله په شوکاني زيدي شيعه باندې حواله ورکوي او کله په علامه ابن القيم

حنبلي مقلد باندې حواله ورکوي ، لکن مونږ دلايل پيش کولای شو چې د تقليد او د اتباع په مابين کې فرق نه شته.

اول: قوله تعالى إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلاَّ الظَّنَّ وَإِنْ أَنْتُمْ إِلاَّ تَخْرُصُونَ (الايه) دلته د ظن سره نه آيت شته او نه حديث شته او نه ئي مطالبه شته.

دوهم: قوله تعالى[ وَلَا تَتَّبِعِ اَهوَاءَ الَّذِينَ كَفَرُوا] دلته د اهواء سره دليل نشته او نه يې مطالبه شته

دريم: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ] په دې ټولو کې اتباع ذکر شوې ده او مطالبه د دليل ورسره نشته، د ابن قيم د قول معنى مخکې ذکر شوه . او علامه شوکاني خو شيعه دی خبره ئي معتبره نده، او د علامه آمدي عبارت تاسو قطعه کړې دی کما سيأتي، نو دوه جوابه شول يو دا چې تاسو ليکلي دي چې دليل صرف قران او حديث دی او د دې فرق لپاره نه ايت شته او نه حديث.

او دوهم دا چې: مونږ دا ثابتوو چې په قرآن او په حديث کې د تقليد او د اتباع په مابين کې فرق نشته کما مرّ.

## وهابيان يو څو اعتراضونه نور هم کوي

(۱)اعتراض: د مدينې خلکو خو د حضرت زيد ابن ثابت رضي الله عنه تقليد په ټولو مسائلو کې نه کولو.

(۲)اعتراض: د مدينې خلکو خو خپل ځانته د زيدي نسبت نه کولو لکه تاسو چې خپل ځانته د حنفي نسبت کوئ ؟

ا د اول اعتراض څخه جواب دا دی چې: دا مونږ منو چې په ټولو مسايلو کې يې تقليد نه کولو ځکه چې تقليد خو په ټولو مسائلو کې نه کيږي، مونږ هم د امام صاحب رحمه الله تقليد په غير واضحو مسائلو کې کوو.

۲- د دوهم اعتراض څخه الزامي جواب دادی چې: د مدينې منورې خلکو خو خپل ځان ته وهابي هم نه دي ويلي ، ځان ته يې اهل حديث او سلفي او اثري هم نه دي ويلي ، نو تاسې خپلو ځانونو ته وهابي، سلفي او اهل حديث ولې وايې؟

او تحقیقي جواب دادی چې: غیر نبي ته دیو ادنی مناسبت له وجې د یوې دینی طریقې نسبت کول جائز دي، مثلاً د احادیثو نسبت امام بخاری رحمه الله وغیره ته دیو ادنی مناسبت له وجې کیږي او هغه دا چې امام بخاري وغیره ددې احادیثو تدوین کړی دی، همدارنګه تمام مسائل د فقهې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم مسایل دي لکن د لږ مناسبت له وجهي څخه ئي نسبت امام صاحب ته کیږي، هغه دا چې ددې فقهې تدوین امام صاحب رحمه الله کړی دی،

همدارنګه په بخاري ج۱ صفـ ۴۳۳ کې راځي چې (عن ابي عبد الرحمن وكان عثمانيًا فقال لابن عطية وكان علوياً الخ) دلته هم د لګ مناسبت له وجهې یوې ډلې ته عثماني او بلي ته علوی ویل کیږي، لهذا مونږ ته هم د لږ مناسبت له وجهې چې د امام صاحب په رهنمائی کې په دین باندې عمل کوو حنفیان ویل کیږي او امام صاحب ته چې اجتهادي مسئلو نسبت کیږی نو هغه هم دیو ادنی مناسبت له وجې او هغه دا چې ده ئي تدوین کړی دی.

(۳)اعتراض: لامذهبيان ليكي چې په یوه مسئله کې د یو عالم یا دیو مفتي د خبرې منل جائز دي که چرته مستفتي ته د مفتي حقانیت معلوم وو او دا تقلید ندی؟ (د تقلید حقیقت صـ ۱۶۶)

جواب: تاسو وائي چې مستفتي ته د مفتي د خبرې منل جائز دي او مطالبه د دلیل مو ذکر نه کړه، حال دا چې مخکې مو ویل چې بغیر مطالبې د دلیل د چاپسې تلل حرام کار دی.

دوهم جواب: تاسو وائي چې مستفتي ته د مفتي د خبرې منل جائز دي او دا تقلید ندی، او بیا په دلیل کې د علامه آمدي، شوکاني، او ابن القیم اقوال پیش کوئ، بیا وایي چې په اتفاق باندې دا تقلید ندی، نو او ل دا چې تاسو په خپلو کتابونو لکه په التحقیق السدید صفـ ۱۶۶ کی لیکلي دي چې اقوال د علماوو حجت ندی، نو دلته بیا څنګه ددې علماوو اقوال د ځان لپاره حجت ګرځوي؟ او که وایي چې دا اقوال د تائید لپاره دي نو زه وایم چې تائید خو په هغه وخت کی کیږي چې یو ځل خو له قران یا حدیث څخه یو آیت یا یو حدیث پیش کړئ او بیا یې په دې اقوالو باندې تائید وکړی او دلته خو کوم آیت یا حدیث نشته چې تاسو د هغې تائید په دې اقوالو سره وکړئ.

دوهم جواب: لامذهبه نیاز محمد د التحقیق السدید په صفـ ۲۹۰ کی لیکلي دي چې بعض علماء وایي چې په اجماع تقلید واجب دی نو نیاز محمد وائي چې د چا اجماع ده؟ د صحابه وو که د تابعینو که

د تبع تابعينو؟ نو مونږ هم دلته وايو: چې ته چې وايې چې په اتفاق باندې دا تقليد ندى، نو ته د چا اتفاق يادوې دصحابه وو که دتابعينو او که د تبع تابعينو؟

دريم جواب: نيازمحمد په ۱۵۸ صفحه کې ليکلي دي چې داجماع لپاره به مأخذ ضروري وي، نو مونږ هم له تاسو څخه دا پوښتنه کوو چې تاسو هم د دې اتفاق لپاره مأخذ را وښايي مأخذ ئي آيت دى او که حديث؟

څلورم جواب: د علامه آمدي په قول کې هم دوي تحريف کوي پوره عبارت نه ذکر کوي لامذهبه نيازمحمد په الاحکام ج ۴ صفـ ۲۵۴ حواله ورکړي ده هلته ئي وروسته دا هم ليکلي دي:

(وان سُمّيَ ذالک تقليداً فلا مشاحة في اللفظ) همدارنګه صاحب د مسلم الثبوت فرمائي (لکن العرف على ان العامى مقلد للمجتهد قاله الامام وعليه معظم الاصوليين صفـ ۲۸۲)

**(٤) بل اعتراض کوي:** چې تاسې د مفتيانو مقلدين يئ ځکه چې يو سړى چې د مفتي خبره مني نو داخو د مفتي مقلد شو؟

**جواب** ئي مخکې هم تير شوى دى چې مفتي که د خپل اجتهاد څخه فتوى ورکوي نو حتماً به مستفتي دمفتي مقلد وي، او دلته خو مفتي له امام صاحب رحمه الله څخه ناقل د فتوى دى، نو دا مستفتي به دامام صاحب په مذهب شمارل کيږي.

(٥) بيا اعتراض کوي وائي چې دمدينې دخلکو اجتهاد دزيد بن ثابت داجتهاد په شان وو له همدې وجهې څخه يې دابن عباس فتوى پريښوده او دزيد بن ثابت فتوى يې غوره کړه، نو داخلک په خپله مجتهدين وو؟

جواب: مونږ په اولو صفحو کى ديو آيت ذکر وکړو چې فا سئلوا اهل الذکر دى، هلته نيازمحمد په جواب کې ويلي وو چې دلته خو قيد دلا تعلمون راغلى دى يعنې چې علم نه لرې نو سوال کوئ! نو مونږ داوايو چې دمدينې خلکو چې علم لرلو او مجتهدين وو نو بيا يې سوال ولې کولو؟

(٦) بيا اعتراض کوي: چې بالفرض که ومنو چې دمدينې خلکو دزيد تقليد کړى دى. نو په ټولو مسئلو کې ئي ندى کړى، نو مونږ وايو چې دا ډيره خطرناکه خبره ده، ځکه چې لامذهبيانو ليکلي دي

چې تقليد شرک او بدعت عمل دی او تقليد ګمراهي ده، حرام دی، په دين کې تحريف دی، التحقيق السديد صفه ٧٩ نو اوس چې تاسو وائي چې (که ومنو چې دوي تقليد کړی دی) نو ددې معنی خو دا شوه چې که ومنو چې دوي دا ګمراهي او شرک کړی دی نو په جواب تسليمي کې دی دخپلې عقيدې مطابق صحابه وو ته دکفر او دشرک او دبدعت نسبت وکړو.

دويم دا چې تاسو وائي چې که ومنو چې تقليد ئي کړی دی نو په ټولو مسئلو کې ئي ندی کړی نو مونږ هم دا وايو چې په ټولو مسئلو کې يې تقليد ندی کړی، ځکه چې په ټولو مسائلو کې تقليد نشته بلکه تقليد خو يواځې په غير واضحو مسائلو کې دی.

(٦) بيا اعتراض کوي چې زيد بن ثابت خطاء شوی دی؟ مونږ وايو هرڅنګه چې وي تقليد تري ثابتيږي، دمدينی خلک دخپل مجتهد تابعداري کوي او مونږ هم دا وايو که خطاء وي الله به يو اجر ورکوي او که په حق ئي نو الله به دوه أجره ورکوي.

(٧) نيازمحمد وائي چې دا خلک ستاسو په زعم په حق وو او که په باطل؟ مونږ وايو چې دا خو خير القرون دی، په دې زمانه کې خو يا صحابه دي او يا تابعين او يا هم تبع تابعين هغوي ته دباطل نسبت کول ستا غوندې ګستاخ او رافضي کولی شي بل څوک ئي ورته نه شي کولی البته خطا ورته ويلی شو، خو بيا به هم مأجور وي، نو دوي که خطا شوي وي الله تعالی به يو اجر ورکړي او که حق ته رسيدلي وي الله به دوه اجره ورکړي.

## څلورم دليل

حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي عَوْنٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ عَمْرٍو ابْنِ أَخِي الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنْ أُنَاسٍ مِنْ أَهْلِ حِمْصٍ، مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَبْعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ قَالَ: كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ؟ قَالَ: أَقْضِي بِكِتَابِ اللهِ، قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللهِ؟ قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم، قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم، وَلاَ فِي كِتَابِ اللهِ؟ قَالَ: أَجْتَهِدُ رَأْيِي، وَلاَ آلُو فَضَرَبَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم صَدْرَهُ، وَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ، رَسُولِ اللهِ لِمَا يُرْضِي رَسُولَ اللهِ [ابو داود ج ٢ صفه ١٤٩ رقم الحديث: ٣٥٩٢ فى بَابُ اجْتِهَادِ الرَّأْيِ فِي الْقَضَاءِ].

معاذ بن جبل يمن ته لاړو او هلته ئې خلكو ته فيصلې كولې او د يمن خلكو د معاذ بن جبل د كتاب الله مطابق فيصلې منلې، همدارنګه ئې د سنت رسول الله مطابق فيصلې منلې او همدارنګه يې د ده اجتهادي فيصلې منلې او هيڅ مطالبه د دليل يې نه كوله نو دا تقليد شخصي ديمن د خلكو شو، ځكه چې د حديثو او د تاريخ په يو كتاب كې به هم دا خبره ثابته نشي چې يو چا ورته ويلي وي چې زه ستا اجتهادي فيصله نه منم ماته دليل پيش كړه نو معلومه شوه چې په هغه وخت كې هيڅ غير مقلد نه وو.

كله چې دا حديث مونږ غير مقلدينو ته پيش كوو نو هيڅ جواب نه لري بس دا خبره په بې ادبۍ سره كوي چې دا حديث خو موضوعي دى حالانكه لامذهبه نياز محمد په خپل كتاب د تقليد حقيقت د زيم چاپ صف ٨۴ كي ليكي چې دا حديث صحيح دى، همدارنګه د غير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان په خپل كتاب الروضة الندية ج ۴ صف ٢۶۶ كې يې ليكلي دي چې دا حديث مشهور دى، او په اعلام الموقعين للعلامه ابن القيم كي يې دې حديث لپاره پوره فصل لګولى دى په نوم د فصلُ حديث معاذٍ او په هغې كې يې ليكلي دي چې دې حديث ته تلقي بالقبول حاصله ده، او په التدريب الراوى صف ۶٢ كي ليكي چې كوم حديث ته چې تلقي بالقبول حاصله وي هغه د متواتر په حكم كې وي.

فانقيل: چې علامه جوزجاني په خپل كتاب (الموضوعات) كې د دې حديث په سند باندې داسې اعتراض كړى دى چې: هذا الحديث باطل، رواه جماعة عن شعبه، وقد تصفحت هذا الحديث بالمسانيد الكبار والصغار، وسألت من لقيته من اهل العلم بالنقل عنه فلم اجد طريقا غير هذا، والحارث بن عمر وهذا مجهول واصحاب معاذ من اهل حمص لا يعرفون، ومثل هذا الاسناد لا يعتمد عليه.

قلنا: علامه ابن القيم رحمه الله جواب كوي چې: فَهَذَا حَدِيثٌ وَإِنْ كَانَ عَنْ غَيْرِ مُسَمَّيْنَ فَهُمْ أَصْحَابُ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنه فَلَا يَضُرُّهُ ذَلِكَ؛ لِأَنَّهُ يَدُلُّ عَلَى شُهْرَةِ الْحَدِيثِ وَأَنَّ الَّذِي حَدَّثَ بِهِ الْحَارِثُ بْنُ عَمْرٍو عَنْ جَمَاعَةٍ مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنه لَا وَاحِدٍ مِنْهُمْ، وَهَذَا أَبْلَغُ فِي الشُّهْرَةِ مِنْ أَنْ يَكُونَ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمْ لَوْ سُمِّيَ، كَيْفَ وَشُهْرَةُ أَصْحَابِ مُعَاذٍ بِالْعِلْمِ وَالدِّينِ وَالْفَضْلِ وَالصِّدْقِ بِالْمَحَلِّ الَّذِي لَا يَخْفَى؟ وَلَا يُعْرَفُ فِي أَصْحَابِهِ مُتَّهَمٌ وَلَا كَذَّابٌ وَلَا مَجْرُوحٌ، بَلْ أَصْحَابُهُ مِنْ أَفَاضِلِ الْمُسْلِمِينَ وَخِيَارِهِمْ، لَا يَشُكُّ أَهْلُ الْعِلْمِ بِالنَّقْلِ فِي ذَلِكَ، كَيْفَ وَشُعْبَةُ حَامِلُ لِوَاءِ هَذَا الْحَدِيثِ؟ وَقَدْ

قَالَ بَعْضُ أَئِمَّةِ الْحَدِيثِ: إِذَا رَأَيْتَ شُعْبَةَ فِي إِسْنَادِ حَدِيثٍ فَاشْدُدْ يَدَيْكَ بِـهِ.اعلام الموقعين: حديث معاذ رضى الله عنه حين بعثه الى اليمنـ (۱۵۵) دخطيب په حواله ليکي چې: وهـذا الاسـناد متصل ورجاله معروفون بالثقة على ان اهل العلم نقلوه واحتجوا به.

لامذهبه نيازمحمد اعتراض کوي چې معاذ ابن جبل رضي الله عنه يمن تـه چا ولېږلو ؟ مونږ ورتـه وايو چې نبي عليه الصلاة والسلام- بيا وائي چې دا د معاذ ابن جبل رضي الله عنه دخبرې منل خو دنبي عليه السلام دخبرې منل شو، مونږ جواب ورکوو چې مونږ هم دا ويو چې د مجتهد دخبرې منل خو دنبي (صلى الله عليه وسلم) دخبرې منل دي.

## پنځم دليل

عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ أَتَانَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ بِالْيَمَنِ مُعَلِّمًا وَأَمِيرًا فَسَأَلْنَاهُ عَنْ رَجُلٍ تُـوُفِّيَ وَتَـرَكَ ابْنَتَهُ وَأُخْتَهُ فَأَعْطَى الاِبْنَةَ النِّصْفَ وَالأُخْتَ النِّصْفَ. (بخارى جلد ۱ صفـ ۹۹۷ رقم : ٦۷۳٤ فى باب ميراث البنات.) په دې حديث کې د حضرت معاذ بن جبل (رضى الله عنه) د فيصلې ذکر شوى دى او مطالبه د دليل پکې نده ذکر شوې، همدې ته تقليد وايي. له مذکور حديث څه څلور خبرې معلومې شوې اوله خبره: معاذ بن جبل رضي الله عنه معلم وو يا امير، لکه څرنګه چې امير واجب الاطاعت وي دا رنګه معلم هم واجب الاطاعت وي نو د مجتهد اطاعت هم واجب شو.

دوهمه خبره: دا معلومه شوه چې که د معاذ ابن جبل رضي الله عنه فتوى ديمن خلکو ته حجت نه واى نو بيا خو دا جرح على النبي ﷺ شوه چې نعوذ بالله نبي صلى الله عليه وسلم يو مهمل فعل وکړو، نو معلومه شوه چې د معاذ رضي الله عنه فتوى ديمن خلکو ته حجت وه،

دريمه خبره: دا معلومه شوه چې په تمام يمن کي هيڅ چا د دليل مطالبه ونه کړه چې: اي معاذ ابن جبله رضي الله عنه زه ستا خبره نه منم ته يو دليل پيش کړه،

څلورمه خبره: دا معلومه شوه چې دنبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې تقليد شخصي رائج وو لکه دا مذکور تقليد د معاذ بن جبل رضي الله عنه.





## شپږم دليل

عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ الأَوْدِيِّ قَالَ قَدِمَ عَلَيْنَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ الْيَمَنَ رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِلَيْنَا - قَالَ - فَسَمِعْتُ تَكْبِيرَهُ مَعَ الْفَجْرِ رَجُلٌ أَجَشُّ الصَّوْتِ - قَالَ - فَأُلْقِيَتْ عَلَيْهِ مَحَبَّتِي فَمَا فَارَقْتُهُ حَتَّى دَفَنْتُهُ بِالشَّامِ مَيِّتًا ثُمَّ نَظَرْتُ إِلَى أَفْقَهِ النَّاسِ بَعْدَهُ فَأَتَيْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ فَلَزِمْتُهُ حَتَّى مَاتَ

(ابوداود ج۱ ص ۷٤ رقم: ٤۳۲ و احمد بن حنبل فی مسنده رقم: ۲۲۰۷۳ .قال شعيب الأرنؤوط : إسناده صحيح على شرط مسلم رجاله ثقات رجال الشيخين غير عبد الرحمن بن سابط فمن رجال مسلم).

حضرت ميمون اودي رضي الله عنه فرمائي چې مونږ ته معاذ بن جبل رضي الله عنه يمن ته راغلو دنبي كريم صلى الله عليه وسلم استاذې وو، بيا وائي چې زما ډير محبت له ده سره پيدا شو نو زه له ده سره يوځاى شولم تر هغه پورې چې دی ما په شام دفن كړلو، يعنې دهغه تر زندګۍ پورې ما د ده تقليد شخصي كولو، بيا چې كله وفات شو نو زه (دبل چا په شخصي تقليد پسې ګرزيدلم) تر دې چې ما په خلكو كې زيات افقه حضرت عبد الله ابن مسعود پيدا كړو، نو زه له ده سره شوم او د ده تقليد مې شروع كړو آن تر مرګه پورې، نو دا يو تقليد شخصي بيا بل تقليد شخصي ثابت شو.

لامذهبيان اعتراض كوي چې ميمون اودي رحمه الله د معاذ بن جبل رضي الله عنه تقليد شخصي كولو، چې هغه وفات شو نو د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه تقليد شخصي يې شروع كړو، نو تاسې هم داسې تقليد شخصي يكى بعد از ديګرى وكړئ؟

جواب: كله چې معاذ بن جبل رضي الله عنه وفات شولو نو دهغه مذهب مدون پاتي نه شو نو ځكه ئې دا ابن مسعود رضي الله عنه تقليد شروع كړو او مونږ خو دامام صاحب رحمه الله د ذات تقليد نه كوو بلكه د امام صاحب دعلم تقليد كوو او علم ئې مدون پاتې دى.

## اووم دليل

ابو موسى اشعري رضي الله عنه ته خلك راغلل او ديوې مسئلې پوښتنه يې ترېنه وكړه، نو ده فتوى وركړه لكن بيا په تردد كې شو او ورته وې وفرمايل چې: تاسو لاړ شئ د عبد الله بن مسعود (رضى

الله عنه) څخه پوښتنه وکړی، دوي چې ورغلل، هغه رضي الله عنه جواب ورکړو، خو د ابو موسی اشعری رضی الله عنه د جواب څخه مخالف وو، خلکو دا خبره ابو موسی اشعري رضی الله عنه ته وکړه ابو موسی اشعري رضي الله عنه ورته وفرمایل:

لاَ تَسْأَلُونِي مَا دَامَ هَـذَا الْحَبْرُ فِيكُمْ. [بخاری ج ۲ صفـ۹۲۹ رقم : ۶۷۳۶ فی باب مِيرَاثِ ابْنَةِ ابْنٍ مَعَ ابْنَةٍ.]

ترڅو چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنه په تاسو کې وي نو صرف د همده څخه پوښتنې کوئ مطالبه د دلیل یې ذکر نه کړه چې همدې ته تقلید شخصي وایي.

نو دلته د عبد الله بن مسعود د تقلید شخصي طرف ته ترغیب دی که چیرې تقلید حرام وی، نو ابو موسی اشعري رضی الله عنه به ضرور ورته ویلي وای چې د کتاب الله او د سنتو د رسول الله صلی الله علیه وسلم یا د الله او د رسول څخه بغیر پر بل چا فیصله ونه کړئ.

## اتم دلیل

عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنِّي لاَ أَدْرِي مَا قَدْرُ بَقَائِي فِيكُمْ، فَاقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي، وَأَشَارَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ.

(رواه الترمذی ج ۲ ص ۲۰۷ رقم : ۳۷۹۹ و قال الألباني : صحیح، امام ترمذي دی حدیث ته حسن ویلی دی او علامه ذهبي دی حدیث ته صحیح ویلی دی، تلخیص المستدرک ج ۳ صفـ ۷۵)

حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائل چې زه نه یم خبر چې زه به څو مره وخت ژوندی یم او بیائي وفرمائل چې لما څخه وروسته د ابو بکر او عمر رضي الله عنهما تقلید وکړئ او س په دې حدیث کي نبي کریم صلی الله علیه وسلم تمامو صحابه کرامو ته د دغو دواړو (حضرت عمر رضی الله عنه او ابوبکر صدیق رضی الله عنه) د تقلید حکم کړی دی، د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په دوره کي صرف د ده تقلید شخصي کیدلو، له ده څخه وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه تقلید شخصي کیدلو، نو له دې حدیث څخه تقلید صراحتاً ثابت شو.

غير مقلدين وسوسه کوي: چې په دغه حديث کې خو دامورو د خلافت په باره کې د تقليد امر دی نه دامورو د دين په باره کې؟

جواب: دا غربي مفکوره ده چې دين د سياست څخه جدا دی، داهل السنت والجماعة په نزد باندې په دين او دنيا، په سياست او په مذهب کي هيڅ فرق نشته.

دوهمه وسوسه: لامذهبه نياز محمد په اعتراض کې ليکي چې ايا دابو بکر رضي الله عنه او دعمر رضي الله عنه اقتدا په ټولو امورو کې کيږي او که د دليل والا په امورو کې؟ يعني صرف هغه خبرې چې په هغه کې دلائل وي په هغې کې به يې متابعت کيږي؟

جواب: الله پاک دی مسلمانان له داسې بې ادبۍ څخه وساتي، چې د حضرت ابو بکر او عمر رضي الله عنهما خبرې په دوه قسمه کوي، يو ته بلا دليل او بل ته مع الدليل خبرې وائي، مونږ د دوي مبارکانو ټولو خبرو ته مع الدليل خبرې وايو، چې د دوي ټولې خبرې مع الدليل دي او دا يو اځې نه بلکه د هر يو مجتهد د خبرې په باره کې مونږ دا وايو چې دا خبره ئي مع الدليل ده، لکن د مطالبې د دليل ضرورت نشته او بل دا چې ته خپله خبره مع الدليل بولي خپل ځانته بلا دليله خبره نه منسوبوي او دې عظيمو صحابه وو ته د بلا دليله خبرې نسبت کوي.

دريمه وسوسه: چې د دوي دواړو يعنې حضرت ابو بکر او عمر رضي الله عنهما خو ډيرې فتوی شته چې تاسې يې نه منی؟

جواب: علامه ابن حجر په فتح الباري کې فرمائي: چې د امام بخاري رحمه الله استاذ او د امام صاحب رحمه الله شاګرد عبد الله بن مبارک رحمه الله روايت کوي چې ( قال ابن المبارک رواية عنه اذا جاء الحديث عن رسول الله فعلى الرأس والعين واذا جاء عن الصحابة اخترنا ولم نخرج عن اقوالهم)

امام صاحب رحمه الله فرمائي چې زما اول دليل کتاب الله دی، او دوهم دليل مې حديث دی، دريم دليل مې اجماع ده، او څلورم دليل مې قياس دی، نو امام صاحب رحمه الله فرمائي چې که د رسول الله حديث وي نو ماته په سر سترګو منظور دی او که د صحابه وو اقول راغله، نو بيا که اتفاقي او اجماعي اقوال وو نو زه له هغې څخه يو طرف ته هم نه ځم، او که اختلافي اقوال وو نو زه په قرائنو او دلايلو سره يو

طرف ته ترجیح ورکوم، دواړه اقوال نه پرېږدم، (عقود الجمان صفـ ۱۷۴ الخیرات الحسان صفـ ۶۹) نو دامام صاحب یو قول به هم څوک پیدا نکړي چې دصحابه وو له اجماعی قول سره مخالف وی، او یا دصحابه وو په اختلافي اقوالو کې دټولو سره مخالف وي.

څلورمه وسوسه: چې دلته خو په حدیث کي تخصیص د دوي دواړو حضراتو شوی دی او تاسو خو دامام صاحب رحمه الله تقلید کوئ.

(۱) جواب: دلته ادوات د قصر کوم دي؟

(۲) تقلید خو ستا په نیز کفر او شرک دی، نو ایا ددوي تقلید کفر او شرک دی او که نه؟

## نهم دلیل

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : رَضِيتُ لَكُمْ مَا رَضِيَ لَكُمُ ابْنُ أُمِّ عَبْدٍ .
هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الإِسْنَادِ ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. (المستدرک ج۳ ص ۳۱۹ رقم : ۵۳۹٤ و قال الذهبي في التلخیص : صحیح)

حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي چې ابن مسعود په څه باندې راضي وي زه هم امت ته پر هغه باندې راضي یم، دلته دتقلید شخصي دابن مسعود رضي الله عنه طرف ته ترغیب دی او فقه اکثره په اقوالو دابن مسعود باندی بناء ده. شاه ولی الله (رحمه الله) فرمايي چې: و اصل مذهبه فتوای عبدالله بن مسعود (رضی الله عنه) و قضایا علی رضي الله عنه و فتاواه، و قضایا شریح وغیره من قضاة الکوفة (حجة الله البالغه جـ۱ صـ ۱۱۵)

لامذهبه نیاز محمد اعتراض کوي چې په داسې فقه به څنګه الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم راضي شي چې په هغې کې یې لیکلي دي چې امام به هغه څوک وي چې (اصغرهم عضواً) یعني چې ذکر یې وړوکی وي؟

الزامي جواب: لکه اجړاګان چې هر وخت دذکر په سوچ کې وي نو همداسې تاسو هم ټول عمر په همدې سوچ کې تیر کړو، لکه یو وګي سړي ته چې ووایې چې دوه او دوه څو کیږي هغه درته وائي چې څلور ډوډۍ، دا ځکه چې هر شی ورته سترګو کی ډوډۍ ډوډۍ کیږي، نو تاسو ته هم زمونږ هره عضوه ذکر ذکر کیږي ځکه دعضو دلفظ ترجمه په ذکر سره کوئ.

دوهم تحقيق جواب: دا ترجمه غلطه ده، له دې څخه ذکر ندی مراد، بلکه له دې څخه د اندامونو ور کوالی سره د تناسبه مراد دی، يعنی چې اندامونه ئي په تناسب سره واړه وي، شامي په باب الامامة کې مراحتاً ليکلي دي چې له دی څخه ذکر نه دی مراد، بلکه دا معنی چې د امام سر به غټ وي او اندامونه ئي د تناسب سره واړه وي او داسې امام چې سر ئي غټ وي او اندامونه ئي د تناسب سره واړه وي دده زاج جوړ وي، او څوک چې د صحيح مزاج والا وي، هغه عقلمند وي او د عقلمند امام جماعة لوی وي، چې څومره جماعت لوی وي هغومره يې ثواب زياتيږي.

دوهم اعتراض: چې آيا الله تعالى جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وسلم په داسې فقه باندې راضي دي چې په هغه کې يې ليکلي دي چې څوک په کرايه باندې يوه زنانه راولي او زنا ورسره وکړي په دی سړي باندې حد نشته؟

**جواب:** په فقه کې په دي باره کې دوه قوله دي:

اول: مفتی به قول دادی چې ( والحق وجوب الحدّ کا المستأجرة للخدمة) يعنی لکه هغه ښځه چې خدمت لپاره په پيسو را وستل شي بيا يو (وهابی) سړی زنا ورسره وکړي نو په دې سړي باندی حد واجب دی (درمختار ج۴ صفه ۲۴۲).

دوهم غير مفتیٰ به قول دی چې حد نشته بلکې تعزير دی، لقوله عليه السلام (ادرؤ الحدود ما ستطعتم) نو د همدې حديث له وجې حد نشته ځکه چې دلته شبهه را پيدا کيږي هغه دا چې دغه پيسې چې يې ورکړي دي، نو دا داسی شو لکه مهر، يعنی مشابه له مهر سره شوی، نو مشابهت بعيده را پيدا شو لهذا حد نشته تعزير شته لکن مفتی به قول اول دی.

دريم اعتراض: چې آيا الله تعالى جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وسلم په داسې فقه باندې راضي دی چې په هغې کې يې ليکلي دي چې د محرمې سره په نکاح او بيا په جماع باندې حد نشته؟

جواب: يو حد دی چې د زنا کار لپاره رجم يا سل دُرې دي او بل تعزير دی، نو په فقه کې يې ليکلي دي چې د دې سړي لپاره حد نشته، خو تعزير شته چې سر ئي غوڅ کړی شي، په فقه کې يې دا هم ليکلي

دي چې څوک چې دې نكاح ته حلال وايي هغه كافر او مرتد دی، دسر د كټ كولو حكم چې په كوم حديث كې راغلي دي هغه صاحب د مشكوة په دوهم جلد كې د باب التعزير لاندې ذكر كړی دی، معلومېږي داچې دسرغوڅول حد ندی بلكې تعزيز دی

## د لا مذهبو يو څو خبيث مسائل

## (جواب ټركي به ټركي)

اوله مسئلة: لامذهبه اهل الحديث په نزل الابرار جـ ۱ صفـ ۳ كې ليكي چې (العياذ بالله) الله تعالى جل جلاله نارينه دی، عبارت يې داسې دی چې (مرء لا كالناس)

دوهمه مسئله: په عرف الجادي جـ ۲ صفـ ۲۰ كي ليكي چې استمناء باليد يعني مشت زني جائز ده بلكه په بعضو صورتونو كې واجب ده حتى دوي وائي چې بعضو صحابه وو هم كړی ده (نعوذ بالله)

دريم: په نزل الابرار جـ ۲ صفـ ۳ كې ليكي چې متعه جائز ده

څلورم: لامذهبه نياز محمد په خپل كتاب الحق الصريح جـ ۱ صفـ ۳۱۷ كې ليكي چې زنا په درې قسمه ده، خو دا دريم قسم زنا له انبياؤ پيغمبرانو څخه كيږي (العياذ بالله) نو ايا الله تعالى جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وسلم په داسې اهل حديث توب باندې راضي دی ؟ دلامذهبو نور خطرناک مسايل په دريم او څلورم جلد كې وګورئ.

## لسم دليل

عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ، قَالَ : كَتَبَ إِلَيْنَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : إِنِّي قَدْ بَعَثْتُ إِلَيْكُمْ عَمَّارَ بْنَ يَاسِرٍ أَمِيرًا ، وَعَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ مُعَلِّمًا وَوَزِيرًا ، وَهُمَا مِنَ النُّجَبَاءِ مِنْ أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ فَاسْمَعُوا ، وَقَدْ جَعَلْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ عَلَى بَيْتِ مَالِكُمْ فَاسْمَعُوا فَتَعَلَّمُوا مِنْهُمَا ، وَاقْتَدُوا بِهِمَا ، وَقَدْ آثَرْتُكُمْ بِعَبْدِ اللهِ عَلَى نَفْسِي. (نسائي ج۲ صفـ ٥ و المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم : ٥٦٦٣ و قال صحيح على شرط الشيخين و لم يخرجاه تعليق الذهبي في التلخيص : على شرط البخاري ومسلم).

کله چې حضرت عمر رضي الله عنه عراق فتح کړلو نو د کوفې خلکو ته ئې دا دواړه صحابه (عمار بن ياسر رضي الله عنه او عبدالله بن مسعود رضي الله عنه) ورولیږل. او ورته یې ولیکل (فاقتدوا واسمعوا) یعني د دوي دواړو تقليد وکړئ او د دوي دواړو خبره واورئ او دا یې ورته ونه ویل چې مطالبه د دليل هم ترینه وکړئ. نو دا د کوفې خلکو ته د تقليد شخصي طرف ته دعوت دی.

## يوولسم دليل

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ ، عَنْ أَبِيهِ ، قَالَ أَتَتِ امْرَأَةٌ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فَأَمَرَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْهِ قَالَتْ أَرَأَيْتَ إِنْ جِئْتُ وَلَمْ أَجِدْكَ كَأَنَّهَا تَقُولُ الْمَوْتَ قَالَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ إِنْ لَمْ تَجِدِينِي فَأْتِي أَبَا بَكْرٍ. (رواه البخاری رقم : ۷۲۲۰و ۳۶۵۹ ج۱ ص ۵۱۶ مسلم ج ۲ ص ۲۷۳، مشکوة ج۲ ص ۵۵۵)

له حضرت جبير بن مطعم رضی الله عنه څخه روایت دی چې یوه زنانه راغله (له نبی کریم صلی الله عليه وسلم څخه ئې دیوي مسئلي پوښتنه وکړه) نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې بیا بل وخت راشه هغې زنانه ورته وویل چې: که ته نه وې بیا به له چا څخه پوښتنه کوم؟ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل چې (فأتي ابا بکر) یعنې بیا ابوبکر رضي الله عنه ته ورشه او له هغه څخه پوښتنه وکړه. نبي عليه السلام دغه ښځې ته دا ونه ویل چې مطالبه د دليل هم ورڅخه وکړه. نو دا هم د تقليد شخصي طرف ته دعوت دی.

## دولسم دليل

دمکې مکرمې صحابه وو او تابعینو د عبدالله بن عباس (رضی الله عنهما) تقلید شخصي کولو.

دمدینې منورې صحابه وو او تابعینو دزید بن ثابت رضي الله عنه شخصي تقليد کولو، دیمن صحابه وو او تابعینو دمعاذ رضي الله عنه تقليد شخصي کولو، دبصرې خلکو دحضرت انس رضي الله عنه تقليد شخصي کولو، دکوفې خلکو دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تقليد شخصي کولو

## بیا دتابعینو په دورکې

دمدینې خلکو دحضرت نافع رحمه الله تقليد شخصي کولو

دمکې خلکو د حضرت عطاء رحمه الله تقليد شخصي کولو

ديمن خلکو د حضرت طاوس رحمه الله تقليد شخصي کولو

ديمامې خلکو ديحيى بن کثير رحمه الله تقليد شخصي کولو

دشام خلکو د حضرت مکحول رحمه الله تلقيد شخصي کولو

دعراق خلکو د حضرت ميمون رحمه الله تقليد شخصي کولو

دخراسان خلکو د حضرت ضحاک رحمه الله تقليد شخصي کولو

دبصرې خلکو د حضرت حسن بصري رحمه الله تقليد شخصي کولو. د کوفې خلکو د ابراهيم نخعی رحمه الله تقليد شخصي کولو (١)

حضرت شاه ولی الله فرمايي: إِذَااخْتَلَفَ مَذَاهِبُ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْن فِيْ مَسْئَلَة فَالْمُخْتَارُ عِنْدَكُلِّ عَالِمٍ مَـذْهَبُ اَهْـلِ بَـلَدِه (٢) يعنې چې کله دصحابه وو رضی الله عنهم او د تابعينو رحمهم الله په مذهبونو کې اختلاف راشي نو د هرعالم په نيز مختاره د خپل ښار مذهب دی او همدېته تقليد شخصي وايي.

## ديارلسم دليل

دتابعينو په دور کې دټولې دنيا څخه خلک حج ته راتلل، خليفة الوقت به اعلان وکړچې: لاَيَفْتِي النَّاسَ الاَاَحَدُ هَذَيْنِ الإِمَامَيْنِ عَطَاءُبْنِ اَبِيْ رباح وَمُجَاهِدْ (٣)

يعنې ددې دوو امامانو حضرت عطاء رحمه الله او حضرت مجاهد رحمه الله څخه سوی به څوک فتوی نه ورکوي. په زرګونو خلکو به ددوي څخه فتوې غوښتلې دوي به ورته مسئلې بيانولې، نه به

---

[1] - حاكم فی معرفة علوم الحديث ص ١٩٨، مناقب موافق ج١ص٧ .

[2] - الانصاف ص٧

[3] - شذرات الذهب لابن العماد ص١٤٨ج١.

مستفتي مطالبه د دليل کوله او نه به مفتي ورته بيان د دليل کولو، د دوي د فتوې د حديثو په کتابونو کې شته، همدغه تقليد شخصي دی.

## څوارلسم دليل

حضرت ابوبکر صديق ﷺ به چې په کتاب الله او په سنت کې مسئله پيدا نکړه نو په خپل اجتهاد باندې به يې فيصله کوله، خلکو به پرې عمل کولو او مطالبه د دليل به يې ورځخه نه کوله. بيا به حضرت ابوبکر صديق (رضی الله عنه) فرمايل: هَذَا رَأْيِي فَإِنْ كَانَ صَوَابًا فَمِنَ اللهِ وَإِنْ يَكُنْ خَطَاءً فَمِنِّي وَأَسْتَغْفِرُ اللهَ (۱)

دا زما رائيه ده که صواب وي نو د الله تعالی له طرفه ده او که خطاء وي نو زما له طرفه به وي او زه د الله تعالی څخه بښنه غواړم، نو ابوبکر صديق ﷺ به د ضرورت په وخت کې پخپله اجتهادي رأيه باندې فيصله کوله او هيچا مطالبه د دليل نه ده کړې همدې ته تقليد وايي.

## پنځلسم دليل

حضرت عمر ﷺ قاضي شريح ته وليکل: اقضِ بما في كتاب الله فان لم تجد فبما في سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم فان لم تجد فبما قضى به الصالحون.

کومه مسئله چې درته راشي په کتاب الله يې حل کوه، که په کتاب الله کې پيدا نشوه بيا يې په سنت الرسول حل کوه، که هلته پيدا نشوه بيا يې د اجماع مطابق حل کوه، او که په اجماع کې هم پيدا نشوه نو اجتهاد کوه (۲) نو د حضرت عمر ﷺ د خلافت په زمانه کې خپله د حضرت عمر ﷺ او د قاضي شريح رحمه الله تقليد شخصي کېدلو.

---

۱- جامع بيان العلم ج۲ص۵۲، طبقات ابن سعد ج۳ص ۱۳٦.

۲- جامع بيان العلم ... [illegible] ... الاصول ص ٨٤٦ دار ابن الجوزي.

## شپاړسم دليل

امام شعبي رحمه الله چې د پنځو سوو صحابه وو رضي الله عنهم سره يې ملاقات شوى وو فرمايل به يې: چې (من سره ان يأخذ بالوثيقة فى القضايا فليأخذ بقول عمر) كه څوک په قضاء كې مظبوطه فيصله غواړي نو هغه ته پكار دي چې د حضرت عمر رضي الله عنه په اقوالو باندې عمل وكړي (۱)

داد حضرت شعبي رحمه الله دعوت دى د حضرت عمر رضي الله عنه شخصي تقليد ته.

## اولسم دليل

امام مجاهد (رحمه الله) چې جليل القدر تابعي دى فرمايي:

اِذَا اِخْتَلَفَ النَّاسُ فِيْ شَيْءٍ فَانْظُرُوْا مَا صَنَعَ عُمَرفَخُذُوْه بِه(۲)

كله چې د خلكو په يوه مسئله كې اختلاف راشي نو تاسو د حضرت عمر رضي الله عنه عمل ته گورئ.

وگوره امام مجاهد د حضرت عمر رضي الله عنه د تقليد شخصي حكم كوي: قَالَ طَاوسُ اَدْرَكْتُ سَبْعِيْنَ مِنْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اِذَا تدرا،ا فِيْ شَيْءٍ اِنْتَهُوْا اِلَى قَوْلِ ابْنِ عَبَاسٍ.(۳)

يعني ما اويا صحابه رضي الله عنهم وليدل چې د اختلاف په صورت كې به يې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قول تقليد كولو.

## اتلسم دليل

حافظ ابن عبد البر رحمه الله د تابعينو د هر شهر د اهل الرايو مجتهدينو فهرست درج كړى (۴)

---

[1] - اعلام الموقعين ج۱ ص۷.( فضل عمر بن الخطاب)

[2] - اعلام الموقعين ج۱ ص۷

[3] - اعلام الموقعين ج۱ ص۸ (فضل ابن عباس)

[4] - جامع بيان العلم ج۲ص٦۱وص٦۴

## نولسم دليل

حضرت علی ﷺ رسول الله ﷺ ته وفرمايل چې يا رسول الله! که داسې معامله رامخې ته شي چې په هغې کې نه امر وي او نه نهی نو تاسو پکې مونږ ته څه امر کوئ، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې دفقهاوو او دعابدينو سره مشوره کوه. (مجمع الزوائد ج ۱ ص ۷۸ رجاله موثوقون).

## شلم دليل

وقال ابن عبدالملك بن ابی سليمان: سمعت سعيدبن جبير يقول تستفتونی وفيكم ابراهيم النخعی رحمه الله؟ (۱) يعنې ايا تاسو دابراهيم نخعي رحمه الله په موجودګی کې زما څخه پوښتنې کوئ؟ دا په تقليد شخصي واضح دليل دی، ځکه چې ابراهيم نخعی رحمه الله اعلم دی او داعلم په خبره اعتماد ته تقليد شخصي وايي که ته ووائی چې اعلم خو صحابه دي، نو دهغوي تقليد ولې نکوئ؟ نو مونږ وايو چې دهر صحابي په هره مسئله کې قول نه شته، بلکه په بعضې مسئلو کې دبعضې صحابه وو اقوال دي او په بعضې مسئلو کې دبعضې نورو صحابه وو اقوال دي، امام صاحب رحمه الله دصحابه وو اجماعي مسئلې راجمع کړي دي او دصحابه وو داختلاف په صورت کې ئی دقراينو او د دلائلو په بناء باندې ديو صحابی قول ته ترجيح ورکړی ده، نو امام صاحب بعينه دصحابه وو مذآهب مدون کړي دي نو دامام صاحب رحمه الله تقليد بعينه دصحابه وو رضی الله عنهم تقليد دی.

## يويشتم دليل

قال شعيب بن الحجاب رحمه الله قال لی الشعبی رحمه الله عليك بذلك الاصم يعنی ابن سيرين نو امام شعبي رحمه الله به دابن سيرين رحمه الله دتقليد شخصي طرفته ترغيب ورکولو (۲).

---

۱. تذكرة الحفاظ ج ۱ / ص ۷۴ داراحياء التراث العربی

۲. تذكرة الحافظ ج ۱/ ۷۸ داراحياء التراث العربی

## دویشتم دلیل

روی احمد بن یحیی بن وزیرعن ابن وهب قال لوکان بقی لنا عمروبن الحارث ماحتجنا الی مالک
که عمروبن حارث رحمه الله وی مونږ به دامام مالک رحمه الله تقلید ته نه وو محتاج شوی (۱).

## درویشتم دلیل

قال الشعبی کان عبدالله لایقنت وقال لوقنت عمرلقنت عبدالله (۲).

## څلورویشتم دلیل

عَنِ اللَّخْمِيِّ عَنْ أَبِيهِ رَحِمَهُمَااللهُ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه خَطَبَ النَّاسَ بِالْجَابِيَةِ فَقَالَ: مَنْ أَرَادَ أَنْ يَسْأَلَ عَنِ الْفَرَائِضِ فَلْيَأْتِ زَيْدَ بْنِ ثَابِتٍ رضي الله عنه، وَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَسْأَلَ عَنْ الْفِقْهِ فَلْيَأْتِ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ رضي الله عنه، وَمَنْ أَرَادَ الْمَالَ فَلْيَأْتِنِي. (۳).

## پنځویشتم دلیل

حضرت عمر رضي الله عنه چې کله د مجوسي غلام د لاسه زخمي شو او د زخمونو د لاسه بې تابه شو، نو د خلافت په باره کې ئې وفرمایل چې (ان استخلف فان ابابکرقد استخلف وان لم استخلف فان رسول الله ﷺ لم یستخلف) (مسلم ج ۲ / ص ۱۲۰ طیالسی ص ۷ بخاری ج ۲/ ص ۱۰۷۲) یعنی که زه څوک د خلافت لپاره مقرر کړم نو بې شکه چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه زه د خلافت لپاره منتخب کړی ووم ،او که نه ئې مقرر ووم نو بې شکه چې رسول الله ﷺ (علی التعین د نوم د اخستلو سره) څوک نه وو نامزد کړی، امام نووی رحمه الله فرمائی (فان ترکه فقد اقتدی برسول الله ﷺ والافقد اقتدی بابی بکر) (نووی مسلم ج ۲/ ص ۱۲۰)

---

[1] - تذکرة الحافظ ج ۱ / ص ۱۷۴ داراحیاء التراث العربی

[2] - اعلام الموقعین فصل فضل عمربن الخطاب ج ۱ / ص ۲۷.

[3] -اعلام الموقعین: فصل الصحابة رضي الله عنهم الذین انتشرعنهم الدین، ج ۱ / ص ۳۰.

## شپږويشتم دليل

روى ابن سعدٍ باسنادٍ صحيح عن ابن عباس قال اذاحدثنا ثقة عن على لم نتجاوزها

.ترجمه : علامه ابن سعد په صحيح سند سره دحضرت ابن عباس رضى الله څخه روايت كوي چې كه كوم ثقه راوي ماته دحضرت علي رضى الله عنه فتوى بيان كړي نوزه به دهغې فتوى څخه هيڅ وړاندې او وروسته نه شم . فتح البارى ج ۷ / ص ۶۰. حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما مجتهدوو لكن بياهم دځان څخه دلوى مجتهد تقليد كوي.

## اوويشتم دليل

نواب صديق حسن خان په الجنه ص ۴۲ كښې ليكلي دي چې (قال الشافعى فى مواضع من الحجج قلته تقليداً لعطاء) امام شافعي رحمه الله په ډيرو مواضعو كښې فرمايلي دي چې ما دحضرت عطاء رحمه الله په تقليد كې داويلي دي .

## اته ويشتم دليل

علامه ذهبي رحمه الله فرمائي چې ابوبكرالهذلي رحمه الله فرمائي چې ماته محمد بن سيرين رحمه الله وفرمايل چې (الزم الشعبى فلقد رأيته يستفتى والصحابة متوافرون) . [تذكره ص ٧٦ ج١]

دشعبي رحمه الله تقليد په ځان لازم كړه ځكه ما داپداسې وقت كې هم په فتوى وركولو باندې ليدلى دى چې صحابه به بنه ډير موجوده .

## نهه ويشتم دليل او دتتبع الرخص حكم

دغيرمقلدينو اكابروهم مطلق تقليد منلى دى او دمطلق من حيث انه مطلق لپاره خو په خارج كې وجود په ضمن دافرا دو كې وي، نو خامخا دمجتهد تقليد راغلو ، نومونږ وايو چې ديو مجتهد تقليد كوه پخپلو خواهشاتو باندې عمل مه كوه، چې دخپل خواهش مطابق يو حكم دامام شافعي رحمه الله دمذهب

ځخه را اخلي او بل دا امام احمد رحمه الله د مذهب ځخه، ځکه چې دا کار ګمراهي، فسق او اتفاقاً حرام دی
.مخکې ذکر شول چې علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائي (فیکون فی وقت یقلدون من یفسده وفی وقت یقلدون من یصححه بحسب الغرض والهوی ومثل هذالأ یجوز باتفاق الایمة[1])

یعنې په داسې صورت کې به په یو وخت کې د هغه چا پسې روان وي چې دده اصلاح به کوي او په بل وخت کې به د هغه چا پسې روان وي چې دده افساد به کوي او د ټولو امامانو په اتفاق سره دا کار حرام دی.

بیالیکي (لان ذلك یفتح باب التلاعب بالدین وفتح للذریعة الی ان یکون التحلیل والتحریم بحسب الهوی ولوجاز اتباع ای مذهب شاء لافضی۔ الی ان یلتقط رخص المذاهب متبعاً هواه ویتخیربین التحلیل والتحریم والواجب والجواز وذلك یؤدی الی انحلال ربقة التکلیف بخلاف العصرالاول فانه لم تکن المذاهب الوافیة باحکام الحوادث مهذبة فعلی هذایلزمه ان یجتهد فی اختیار مذهب یقلده علی التعین)(۲)

په یوه مسئله کې د یو امام پسې او په بله مسئله کې د بل امام پسې روانېدل په دین باندې لوبې دي، او ددې له پاره ذریعه ده چې هر سړی تحلیل او تحریم د خپل خواهش تابع کړي. او که چېرته دا جایز شي چې د هر سړی چې د هر مذهب کومه مسئله خوښه وي په هغې دې عمل کوي نو بیا به یو سړی په یوه مسئله کې د یو مذهب د رخصت او په بله مسئله کې به د بل مذهب په رخصت پسې ګرځي او د حلالو او د حرامو، د جایزو او د ناجایزو په منځ کې به په خپل خواهش یو طرف خوښوي. او داسې کار کول د مکلفیت ځخه خارجېدلو ته مفضي کېږي. په خلاف د عصرِ اول ځخه چې هلته به غیر مجتهد په یوه مسئله کې د یو مجتهد او په بله مسئله کې به د بل مجتهد پسې تللو، ځکه چې هلته مذهبونه مُدَوَّن نه وو او په هر مذهب کې به د ټولو حوادثو حل نه پیدا کېده، نو له دې امله په هر سړي لازمه ده چې د یو مُعَیَّن مذهب په غوره کولو کې کوښښ وکړي.

---

[1] - مجموعة الفتاوی ج ۳۲/ ص ٦٦ مکتبة العبیکان

[2] -شرح المذهب فصل فی اداب المستفتی ج ۱ / ص ۸۸ دارالفکر بیروت

قَالَ الْعَلَّامَةُ الشَّاطِبِي رَحِمَهُ اللهُ وَمَتٰى خَيَّرْنَا الْمُقَلِّدِينَ فِي مَذَاهِبِ الْأَئِمَّةِ؛ لِيَنْتَقُوا مِنْهَا أَطْيَبَهَا عِنْدَهُمْ لَمْ يبقَ لَهُمْ مَرْجِعٌ إِلَّا اتِّبَاعَ الشَّهَوَاتِ فِي الْاِخْتِيَارِ، وَهٰذَا مُنَاقِضٌ لِمَقْصِدِ وَضْعِ الشَّرِيعَةِ، الموافقات ج ٤ ص ٨٢ المسالة الثالثة فى بيان ان الشريعة كلها ترجع الى اقوال واحدة فى الفروع(مكتبه محمدعلى صبيح ازهر).

هر كله چې مونږ مقلدينو ته اختيار وركړو چې د هر مذهب څخه د خپلې خوښې مطابق مسئلې راټولې كړي، نو بيا به د مسلمانانو له پاره بله مرجع پاتې نه شي، ماسوا د اتباع د خواهش څخه او دا كار د مقصد د وضع د شريعت سره نقيض دى.

قال العلامه المناوى رحمه الله ان مثل هذه الالتزامات لكف الناس عن تتبع الرخص، فتح القدير ج۱ ص ۴۰۳ مكتبه نزارمصطفى الباز.

يعنې په خاصو خاصو مذهبونو باندې د پابندى لازمول د دې له پاره دي چې خلك د رخصتونو له لټولو څخه بند كړو.

قال العلامة الشاطبى رحمه الله وقدحكى ابن حزم الاجماع على ان ذالك (اى تتبع الرخص فى المذاهب) فسق لا يحل (الموافقات ج ٤ ص ٨٤ المسالة الثالثة (مكتبه محمد على صبيح ازهر)

ترجمه: علامه شاطبي رحمه الله فرمايي چې ابن حزم پدې اجماع نقل كړى ده چې په هرمذهب كې درخصتونولټول گمراهي ده او په هيڅ صورت كې نده جايزه.

په افغانستان، پاكستان او هندوستان، بلكې په غالب عالم اسلام كې صرف د امام ابوحنيفه دمذهب علماء قاضيان او مفتيان دي، علامه شكيب ارسلان فرمايي: د مسلمانانو اكثريت د امام ابوحنيفه پيروان او مقلدين دي.

دترک او بلقان ټول مسلمانان، دروس او افغانستان مسلمانان، دچين مسلمانان، دهندوستان مسلمانان، دعربو اکثر مسلمانان، دشام او دعراق اکثر مسلمانان حنفيان دي(۱).

نو چې په دې علاقو کې صرف دديو مذهب علماء او مفتيان دي،نو تکويناً صرف دهمدې مذهب تقليد واجب دی، لکه په يوه علاقه کښې چې صرف يوه اکټروي نو تکويناً صرف دهمدې يو شخه علاج واجب دی او په يوه علاقه کې چې صرف يو قاري وي نو تکويناً صرف دهمدې يو شخه دقرآن لوستل واجب دي.

## اجماع الأمة

دتقليد د وجوب لپاره ډير اجماعي اقوال دي يو څو يې دا دي:

۱- مشهور مؤرخ علاّمه عبدالرحمن بن محمد المغربی رحمه الله ( المتوفی ۸۰۸ هـ) ليکي چې:( وقف التقليد فی الامصار عند هؤلاء الاربعة و درس المقلدون لمن سواهم و سد الناس باب الخلاف و طُرقهُ ...... الخ ) يعني په ټولو ښارونو کې په دې څلورو امامانو باندې تقليد بند شو. يعني د ټولو ښارونو خلک ددې څلورو مذهبونو په تقليد باندې پابند شو او خلکو د اختلاف دروازه بنده کړه، ځکه چې د علومو اصطلاحات ډيرېدونکي دي او د اجتهاد د رُتبې پورې د خلکو رسېدل سخت دي او همدارنګه ددې خبرې وېره هم وه چې اجتهاد به د نا أهلو خلکو په قبضه کې ولوېږي. او داسې خلک به پکې مصروف شي ؛ د کومو په رايه او په دين باندې به چې د خلکو اعتماد نه وي، له دې امله علماوو د مطلق اجتهاد څخه د عاجز کېدو اعلان وکړو او خلک يې ددغو څلورو امامانو تقليد کولو ته متوجه کړل او له دې څخه يې خلک منع کړل چې کله د يو امام او کله د بل امام تقليد وکړي، ځکه چې دا کار په دين باندې لوبې کول دي. ( الی ان قال :و لم يبق الاّ نقلُ مذاهبهم ) [ مقدمه ابن خلدون / ص ۴۴۸].

مخکې ليکي چې: ( و مدعی الاجتهاد لهذ العهد مردود علی عقبه مهجور تقليده و قد صار اهل الاسلام اليوم علی تقليدهؤلاء الائمة الاربعة ) [ مقدمة ابن خلدون رحمه الله / ص ۴۴۸ ].

په دې زمانه کې د اجتهاد دعوه کوونکي په پوندو باندې شاته غور ځول شوي دي او تقليد يې
پرېښودل شوی دی او نن سبا خلک يوائحې د دغو څلورو مذهبونو پابند دي.

۲- حضرت شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله فرمايي چې: ( انّ هذه المذاهب الاربعة المدوّنة
المحررّة قد اجتمعت الامّة او من يعتد به علی جواز تقليدها الی يومنا هذا، و فی ذلک من المصالح ما
لا يخفی، لا سيماً فی هذه الايّام التی قصرت فيها الهمم جدّاً، و اشربت النفوس الهوی و اعجب كل
ذی رأي برأيه ) [ حجة الله البالغة / ج ۱/ ص ۱۵٤ ].

ترجمه: د دغو څلورو مذاهبو له ظهور څخه تر ننه پورې د ټول امت او يا په ټول امّت کې د معتمدو
خلکو د دغو څلورو مدوّنو مذهبونو په تقليد باندې اجماع وه او په دې کې چې کوم مصلحتونه دي هغه
پټ نه دي، خصوصاً په دې زمانه کې چې د خلکو همتونه کمزوري شوي دي او د خلکو په نفسونو کې
خواهشاتو سرايت کړی دی او هر د رايې او فکر څښتن په خپله رايه باندې نازيږي.

همدارنګه په بل ځای کې ليکي چې: ( وبالجمله فالتمذهب للمجتهدين سِرٌّ الهمهُ الله العلماء
جمعهم عليه من حيث يشعرون او لا يشعرون ) [ انصاف فی بيان سبب الاختلاف / ص ٦۳ ].

لنډه دا چې د مجتهدينو په مذهبونو باندې پابندي يو راز دی چې الله تعالی جل جلاله د علماوو په
زړونو کې په شعوري او يا په غير شعوري ډول باندې اچولی دی.

د لا مذهبانو د ګروپ سرلښکر نواب صديق حسن خان د حضرت شاه ولی الله رحمه الله څخه نقالي
کوي او ليکي چې: ( و بالجملة تمذهب برای مجتهدين هم سِرِ ملهَمْ الهي است که مردم را بروی
جمع ساختن من حيث يشعرون او لا يشعرون ) [ هداية السايل الی ادلة المسايل / ص ۲۷۹ ].

۳- د محمد بن عبد الوهاب النجدی ( المتوفی ۱۲۰۶ هـ ) په هکله علماء کرام مختلف نظرونه لري:
علامه الوسي او حضرت ګنګوهي رحمهما الله دده د خاميو او د کوتاهيو سره سره دده په باره کې ښه
نظر لري. او علامه شامي او حسين احمد مدني او حضرت محمد انور شاه کشميري رحمهم الله بيا دده

په باره کې ښه نظر نه لري. نو دده شخصیت متنازع فِیه دی. ددې تنازع له امله د شافیصل بن عبد العزیز په حُکم د مکې مکرمې څخه یو کتاب شایع شو. د مصنف نوم یې (الشیخ احمد بن حجر بن محمد ال بوطامی قاضي محکمه شرعیه قطر دی) او بیا ددغه کتاب تصحیح (الشیخ عبد العزیز بن عبد الله البازی) د مدینې منورې د پوهنتون صدر کړې ده. د کتاب نوم (الشیخ محمد بن عبد الوهّاب، عقیدته السّلفیّة و دعوته الاصلاحیّة و ثناء العلماء علیه دی).

ددغه کتاب په (۵۶ مخ) کې یې د عبدالله بن محمد بن عبد الوهاب له رسالې څخه د اسې عبارت را نقل کړی دی چې:

( و نحنُ ایضاً فی الفروع علی مذهبِ الامام احمد بن حنبـل رحمـه الله و لا ننکـر علی مـن قلّد الایمة الاربعة دون غیرهم، لعدم ضبط مذاهب الغیر کالرافضـة، والزیدیـة والامامیـة و نحوهم، لا نقرهُم علی شئٍ من مذاهبهم الفاسدة بل نجبرهم علی تقلید احد الایمة الاربعة . ولا نستحق مرتبة الاجتهاد. ولا احد مِنّا یدعیه الاّ انا فی بعض المسایل اذا صح لنا نصّ جليّ مـن کتـاب او سنّةٍ غیر منسوخٍ ولا مخصص ولامعارض باقوی منه و قال به أحد الایمة الاربعة اخذنا به و ترکنا المذهب.) [ الکتاب المذکور/ ص ٥٦ ].

یعنې مونږ هم په فروعو کې حنبلیان یو، او د څلورو واړو مذهبونو مقلدینو ته مونږ هیڅ بد نه وایو. البته کوم مذهبونه چې منضبط نه دي، لکه رافضیه، زیدیه او امامیه. نو هغوي به مونږ خپلو مذهبونو ته نه پرېږدو ، بلکې مجبور به یې کړو چې په دغو څلورو مذاهبو کې په یو کې داخل شي. او په مونږ کې یو شخص هم د اجتهاد مرتبې ته نه رسیدلی، او نه یې هم دعوه کوو، مګر دومره ده چې که د حنبلي مذهب یوه مسئله د ښکاره غیر منسوخ او غیر مخصوص او غیر معارض نص څخه مخالفه وي او په نورو ایمه وو کې چا د نص مطابق حکم کړی وي، نو بیا مونږ په همغه نص عمل کوو او خپل مذهب په دې مسئله کې پرېږدو.

۴-حضرت شاه ولی الله رحمه الله په (عقد الجید / ص ۱۶) کې لیکي چې: (انّ الامّـةَ اجتمعت على ان يعتمدوا على السّلفِ فى معرفة الشّريعَةِ) د ټول امت په دې اجماع ده چې د شریعت په فهم کې په سلافو اعتماد کوي.

۵-په بل ځای کې فرمایي چې: (ولمّا اندرست المذاهب الاربعة الاّ هذه الاربعـة كان اتباعها تباعاً للسّواد الاعظم والخروج عنها خروجاً عن السّوادِ الاعظمِ) [عقـد الجيـد / ص ۱۹]. کله چې دغو څلورو مذهبونو څخه پرته نور مذهبونه ختم شول نو اوس د دې څلورو مذهبونو څخه وتل د سلمانانو د غټ ټولي څخه وتل دي.

۶-ملا جیون رحمه الله فرمایي چې: (و قد وقع الاجماع على ان الاتباع انّما يجوز لاربعة و كذا لا يجوز الاتباع لمن حدث مجتهداً مخالفاً لهم) [تفسيرات احمديه / ص ٣٤٦].

یعني په دې اجماع ده چې یوازې او یوازې د دغو څلورو مذهبونو تقلید جایز دی.

۷-علاّمه ابن القیم رحمه الله فرمایي چې: (و من خالف الايمة الاربعة فهو مخالفٌ للاجماع) [الاشباه والنظاير/ ص ۱۳]. یعني د دغو څلورو امامانو څخه مخالف له اجماع څخه مخالف دی.

۸-قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمایي چې: (قد انعقد الاجماع المركب على بطـلان قـولِ مَن يُخالفهم كلهم) [تفسير مظهرى/ ج ۲ / ص ٦٤ / سورة ال عمران].

۹-علامه امدي فرمائی انه لم تزل العامة فى زمن الصحابة والتابعين قبـل حـدوث المخـالفين يستفتون المجتهدين ويتبعونهم فى احكام الشريعة (۱).

۱۰- وفى خلاصة التحقيق،وقال فى الاشباه والنظائر لابن نجيم الحنفى انه صرح فى التحرير لابن الهمام ان الاجماع انعقد على عدم العمل بمذهب يخـالف الاربعـة لانضـباط مـذاهبهم واشـتهارها

---

۱- الاحكام فى اصول الاحكام ج ۴ / ص ۱۹۸ مؤسسة الحلبى القاهره

وکثرة اتباعها آه خلاصة التحقیق فی بیان حکم التقلید والتلفیق ص(٤) للشیخ عبدالغنی النابلسی رحمه الله استنبول ترکیا)

۱۱- قال الحافظ بن حجر رحمه الله فی کتابه(فتح المبین فی شرح الاربعین) فی شرح الحدیث الثامن العشرون -أما فی زماننا فقال أئمتنا لایجوز تقلید غیر الائمة الاربعة الشافعی ومالک وابی حنیفة واحمد رضوان الله علیهم اجمعین (تاریخ تقلیداور مسلک امام اعظم رحمه الله) لمولانا بشیر احمد قادری نعمانی صـ ۳۳، ط امام اعظم ابو حنیفه اکیدمی ضلع بهاولنک.

۱۲- وفی مجموعة الفتاوی وحالا ما مردم را درین جز وزمان بغیر از تقلید مجتهد چاره نیست واجماع منعقد شده است برینکه عمل بر مذهب مخالف اربعة نکرده شود

فی الاشباه وما خالف الائمة الاربعة مخالف للاجماع وان کان فیه خلاف لغیرهم فقد صرح فی التحریر ان الأجماع انعقد علی عدم العمل بمذهب مخالف للاربعة لانضباط مذاهبهم وانتشارها وکثرة اتباعهم آه مجموعة الفتاوی للعلامه محمد عبدالحی رحمه الله صـ ۷ ج ٤،ائمة اربعة ط عمر فاروق اکیدمی لاهور.

۱۳- وفی عقود الجمان اعلم رحمک الله ان الامة المحمدیة فی جمیع بلاد الاسلام من اثناء القرن الثامن الی زماننان هذا وهو سنة ثمان وثلاثین وتسع مأة لایخرج احد منها اذا کان غیر مجتهد عن ان یکون مقلدا لأحد من الائمة المجتهدین فی الفقةلانهم کلهم علی هدی من الله تعالی خلافا لمن حمله التعصب والجهل علی القدح فی بعضهم ومناقبهم مأثورة وفضائلهم مشهورة من طالع التواریخ المعتمدة تیقن ذلک ویکفی فیه انتشار علمهم وتقرر عدالتهم علی مدی الازمان آه (عقود الجمان فی مناقب الامام الاعظم ابی حنیفة النعمان صـ ١٤، المقدمة الفصل الاول، ط، کتب خانه نعمانیه پشاور).

د دې په رد کې لامذهبه نیازمحمد لیکي چې تاسې وایئ چې پر تقلید باندې اجماع راغلې ده دا اجماع دصحابه وو ده که د تابعینو اوکه دتبع تابعینو؟ دچا اجماع ده؟

مونږ جواب ورکوو: د دې ټولو اجماع راغلې ده، ځکه شاولي الله دټولو تذکره کړې ده، د صحابه وو له زمانې څخه بیا تر انګریزانو پورې ټول مسلمانان یا مجتهدین او یا دمجتهدینو مقلدین تیرشوي دي.

## د لا مذهبیت یو څو خطرناک نتایج

۱-مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله (المتوفی ۱۳۰۴هـ) د نیچري فرقې په تردید کې لیکي چې: (ولعمری افساد هؤلاء الملاحدة و افساد اخوانهم الاصاغِر المشهورین بغیر المقلدین الذین سمّوا انفسهم باهل الحدیث و شتان مابینهم و بین اهل الحدیث قد شاع فی جمیع بلاد الهند و بعض بلاد غیرِ الهند فخربت به البلاد و وقع النّزاع والعناد فالی المشتکی ) [الاثار المرفوعة / ص ۲۴۸ / مجموعه رسایل اللکهنوی / ج ۵ / ص ۱۰ ].

زما دې د خپل عُمر په خالق باندې قسم وي چې: د مشرانو ملحدینو (نیچریانو) او د کشرانو ملحدینو (وکټوري اهلحدیثو) فساد خوروړل په ټول هندوستان او په ځینو نورو مُلکونو کې عام شوي دی، ددوي په وجه باندې په ښارونو کې ورانــي اوعنادونــه واقــع شــوي دي، د دوي اود اهلحدیثو (بالمعنی الحقیقي یعنې د محدثینو) ترمنځ هیڅ تعلق نشته.

۲-مشهور غیر مقلد محمد حسین بټالوی (المتوفی ۱۳۳۸هـ) لیکي چې: د پنځویشت کلنی تجربې څخه ماته دا خبره معلومه شوه چې څوک چې له بې علمی سره سره مطلق تقلید پرېږدي هغه به په آخر کې اسلام ته د متارکې سلام کوي، د کفر او د مرتدوالي نور هم دېر آسباب دي، خو غټ سبب یې د تقلید پرېښودل دي. [رساله اشاعة السنة / دهم جلد / ۱۱ / مطبوعه ۱۸۸۸ع / خیر التنقید / ص ۶] صاحب البیت ادری بما فیه.

۳-غیر مقلد نیاز فتح پوري اول غیر مقلد او اهلحدیث و او بیا مرتد شو. دا په یوځای کې لیکي چې: که د مولویانو د له مسلمانه وي نو زه یقیني کافریم، او که زه مسلمان یم نو دا مولویان به ټول کافران وي، ځکه چې د دوي په نیز اسلام یوائې ړوند تقلید ته وایي او هغه هم د رسول او د رسول د احکامو تقلید نه دی، بلکې د بخاري، مسلم، مالک او نورو تقلید دی.

بیا مخکې لیکي چې: لنډه دا چې زه احادیثو د اسلام څخه بېزاره کړم. (معاذالله). [من ویزدان/ حصه اول / ص ۵۴۷ / الکلام المفید / ص ۱۸۴ اوردو لمولانا سرفراز خان صفدر رحمه الله/ باب نهم].

په یو ځای کې لیکي چې: ما مخکې هم بار بار لیکلي دي او اوس هم لیکم چې: تر څو پورې چې د مذهب نوم باقي وي نو د دنیا امن په خطره کې دی. [من و یزدان / حصه اول / ص ۴۹۴].

۴- ډاکټر احمد دین اول اهلحدیث او بیا مرتد شو (معاذالله).

په یو ځای کې لیکي چې: مونږ د الهي وحدت له پاره اهلحدیث شو، مګر وروسته را ته معلومه شوه چې دلته د الهي وحدت په ځای هغه شِرک دی چې ډېر په غور او سوچ سره را معلومیږي. [پیغام توحید/ ص ۱۶ / الکلام المفید / ص ۱۸۵ / باب نهم].

او بیا لیکي چې: صحاح سته یقیناً چې د قرآن کریم څخه مخالف دي. [پیغام توحید / ص ۱۵].

په [اتحاد بالقرآن / ص ۴] کې لیکي چې: د صحاح سته وو مؤلفینو د روایاتو طوفان د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یو نیم سل کاله وروسته تیار کړو او همدوی د مسلمانانو په منځ کې تفرقه ایجاد کړه. دې خلکو ځانونو ته د محمد (صلی الله علیه وسلم) په شان امامان ویلې، دوی د خپل بابیل دروغژن روایتونه او خپل شخصي دروغ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نوم باندې خپرول.

مخکې لیکي چې: د صحاح سته وو دغو منافقو محدثینو ترقي وکړه، د رسول الله صلی الله علیه وسلم له وفات څخه یې ډېر وروسته دا کتابونه ولیکل او د خپل مذهب د بابیل خپرول یې شروع کړل. [پیغام اتحاد بالقرآن / ص ۱۲ / الکلام المفید / ص ۱۸۵].

۵- د حدیثو د منکرینو د چکړالوي فرقې باني عبدالله چکړالوي اول غیر مقلد اهلحدیث وو او بیا مرتد او کافر شو. (معاذالله).

محقق مؤرخ شیخ محمد اکرم د دې فرقې په ذکر کې لیکي چې: د دې ډلې یو مرکز په پنجاب کې دی، هلته ورته خلک چکړالیان وایي او دوي ځانونو ته اهلِ قرآن وایي. د دې فرقې باني عبدالله

چکړالوي اول غیر مقلد اهلحدیث وو[ موج کوثر / ص ۵۲ / ترکِ تقلید کی بھیانک نتایج / ص ۴۵ / الکلام المفید / ص ۱۸۶ / نهم باب ].

۶- مرزا غلام احمد قادیاني هم اول غیر مقلد وو، غیر مقلدین او قادیانیان دواړه قرائت خلف الإمام ته فرض وایي. [ فتاوی احمدیه/ ج ۱ / ص ۳۳ / خطبه الهامیه / ص ۱۳۱ / سیرة المهدی / ص ۴۹ / ملفوظات ج ۱ / ص ۲۰۱ ]. غیر مقلدین او قادیانیان دواړه په لمانځه کې په سینه باندې لاسونه تړي. [ مجدد اعظم / ج ۲ / ص ۳۳۳ ].

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه اته اته رکعته تراویح کوي. [ سیرة المهدی / حصه دوم/ ص ۱۳ ].

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه په نریو جرابو باندې مسح کوي. [سیرة المهدی / حصه دوم/ ص ۲۶ ].

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه بلا ضرورته د جمع بین الصلوتین قایل دي. [ نهج المصلی / ج ۱ / ص ۱۶۵ / سیرة المهدی / ص ۸۸ / ذکر حبیب / ص ۱۱ / ملفوظات احمدیه / ج ۱ / ص ۲۰۰ ].

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه د سمسیرې خوړل جایز ګڼي . [ سیرة المهدی / حصه دوم / ص ۱۳۲ ].

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه په مانځه کې د بسم الله بالجهر قایل دي. [ ذکر حبیب / ص ۲۳ ].

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه دوه، درې ګوسُو ته سفر وایي. یعنې په عرف کې چې کوم شي ته سفر وایي هغه ته دوي شرعي سفر وایي. [ ملفوظات احمدیه / ج ۱ / ص ۱۹۹ ]

غیر مقلدین او قادیانیان دواړه دعاء بعدِ الصلوة ته بدعت وایي. [ ذکر حبیب/ ص ۲۰۲ ].

۷- د مرزا غلام احمد قادیانی اولنی خلیفه حکیم نورالدین اول غیر مقلد اهلحدیث وو، او بیا مرتد، قادیاني، کافر شو. د تاریخ احمدیت مصنف لیکي چې: حرمین سے واپسے پر نورالدین نے وہابیت اختیار کے اور ترک تقلید پر وعظ کی اور عدمِ جواز تقلید پر کتابیں تصنیف کیں. بھیرہ میں ہیجان عظیم بپا ہوگا. [ تاریخ احمدیت / ج ۴ / ص ۶۹ ].

٨-د پاکستان پخوانی وزیر خارجه سرظفرالله خان قادياني د خپل قادياني نيکه په باره کې لي
چې: میری دادا چودہری سکندر خان مرحوم اپنی علاقی کی بڑی بارسوخ زمیندار تہی' جہان تک معلوم ہوسکاہے وہ اہلحد
فرقی سی تعلق رکہتے تے. [تحدیث بالنعمت / ص ٣ / ترکِ تقلید کی بہیانک نتائج / ص ٥٠ ].

٩-يو لا مذهبه دی؛ مولوي ثناءالله امرتسري چې زمونږ د زمانې لامذهبان د وضع اليدين ع
الصدر و غيره مسايلو کې ترېنه ډېر عبارات رانقلوي او د ابو الوفاء په کُنيتونو باندې يې يادوي؛ د
تفسير د ( تفسير القرآن بكلام الرحمن ) په نامه وليکه، کله يې چې دا تفسير چاپ کړو، نو نور خلک
لا څه کوې چې خپله غير مقلدينو پرې د كفر فتوى ولګوله. مشهور غير مقلد عالم عبدالاحد خانپور
ليکي چې: ثناءالله ملحد، زنديق ( جهمي ) او د جهم څخه په زرګونو چنده بد تر دی. بلکې دده کفر
ځمکې د مخ له ټولو کافرانو څخه بدتر دی. [اظهار كفر ثناءالله / ص ٤٢ تا ص ١٣٩] پورې يې دده د ک
وجوهات بيان کړل.

غير مقلد عبدالحق غزنوی دده تفسير په رد کې يوه رساله وليکله په نامه د (الاربعين) او ليکل
يې دي چې : ثناءالله د الفاظو او معانيو په غلطۍ کې او په غلطو استدلالاتو او تحريفاتو کې د يهود
ريکارډ هم مات کړی دی. [الاربعين / ص ٣ ].

اتياوو علماوو دده په ګمراهۍ دستخطونه وکړل. غير مقلد مولوي محمد ابراهيم سيالکوټي
مولوی عبدالجبار غزنوي غير مقلدين ورته ورغلل او دا تفسير يې د اهلحديثو له پاره يوه فتنه وګڼله او
ورته ويې ويل چې: د مرزائيت له فتنې څخه دا فتنه ډېره وېرونکې ده. [ فيصله مکه / ص ١].

١٠-زمونږ د زمانې د لامذهبو شيخ الكل نياز محمد عرف امين الله البشاوری د مشكوة شرحه
ليکلې ده په نامه د ( الحق الصريح ) د دغې شرحې په لومړی جلد ( باب الايمان بالقدر / اتم نمبر حديث)
په تشريح کې يې زِنا په درې قسمه کړې ده او دريم قِسم زنا يې ټولو انبياوو ته ثابته کړې ده، ماسوی د
يحيى عليه السلام څخه. بيا نوجوانان احناف دده دغه غليظ عبارات د لا مذهبو مناظرِ اعظم طالب
الرحمن ته واستول، خو داسې يې ورته ونه ليکل چې: دا د لا مذهبه امين الله عبارات دي، بلکې يوا څ

دا استفتاءیې ورڅخه کړې وه چې: ددې عباراتو د لیکونکي حُکم څه دی؟ هغه ورته په ځواب کې لیکلي دي چې دا کافر دی.

۱۱-مشهور غیر مقلد قاضی عبدالاحد خانپوري لیکي چې: ددې زماني دروغژن اهلحدیث، بدعتیان، د سلفو صالحینو دشمنان، په حقیقت کې د ماجاء به الرسول څخه جاهلان دي. دا اهلحدیث په صفاتو کې د شیعه ګانو اود روافضو وارثان دي.

لکه مخکې چې روافض د کفر او دنفاق له پاره دروازې وي، همدارنګه د نن زماني بدعتي اهلحدیث د کفر اود منافقت دروازې دي. [الی ان قال] چې قادیانیان ددې زماني د اهلحدیثو د دروازې څخه کافران او مرتد شول. همدارنګه چکړالویان د همدې دروازې څخه کفر ته ننوتل. همداسې خاتمة الملحدین مولوي ثناءالله د همدې جاهلو اهلحدیثو له دروازې څخه کفر ته داخل شو. [کتاب التوحید والسنة فی رد اهل الالحاد والبدعة الملقب به (اظهار کفر ثناءالله بجمیع اصول امنتُ بالله / ص ۲۶۲تا ۲۶۳].

۱۲-شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: زما پنځوس کلنه تجربه داده چې څوک د امام ابو حنیفه رحمه الله ګستاخي کوي هغه د کفر په حالت کې مړ کیږي (البدور البازغه)

۱۳-غیر مقلد نذیر حسین دهلوي رحمه الله لیکي چې د امام ابو حنیفه رحمه الله ګستاخي کونکی نیم رافضي دی، (تاریخ اهلحدیث صـ۹۸)

۱۴-غیر مقلد ابراهیم سیالکوټي لیکي چې: ما په کتابونه په امام ابو حنیفه رحمه الله (دروغژن) جرحې او اعتراضات راجمع کول نو الله تعالی ړوند کړم بیا مې توبه او استغفار وکړو الله تعالی واپس بنا کړم (تاریخ اهلحدیث صـ۹۸)

## عوامي دلیل لافهام الناس

داسلام په تاریخ کې دمسلمانانو دلویو علماوو طبقات شته مثلاً طبقات شافعیه، طبقات حنبلیه طبقات مالکیه، طبقات حنفیه، اوددنیا د کتابخانو په هیڅ کتاب کې طبقه دغیر مقلدینو نشته، که چیرې د اسلام په تاریخ کې صرف یو غیر مقلد عالم تیر شوی وای نو په دې طبقاتو کې به ئې ضرور نوم

راغلی وو، په نوم د طبقه غیر مقلدین، نو کله چی یو هم ندی تیر شوی نو معلومه شوه چې د غیر مقلدینو شروع د انګریزانو له وخت څخه شوی ده.

## د لا مذهبو ویکټوري اهل حدیثو د اعتراضونو څخه جوابونه

### (۱) اعتراض: په قرآن کې خو د مشرانو د پیروۍ مذمت راغلی دی؟

نو تاسي حنفیان ولې د امام صاحب اتباع او پیروي کوئ؟

الله تعالی فرمایي: وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ (۱۷۰) (همدارنګه) وَقَالُوا رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا (الاحزاب/٦۷) مونږ جواب ورکوو چی تقلید او پیروي پر دوه قسمه ده ۱ تقلید ممدوح ۲ تقلید مذموم.

تقلید ممدوح: دیته وائي چې په اجتهادي مسائلو کې غیر مجتهد د مجتهد په راهنمائي کې په دین عمل وکړي.

تقلید مذموم: دادی چې په عقائدو باطله وو کې د چا پیروي وشي یا د غیر مجتهد په رهنمائي کې په دین باندې عمل وشي او یا د نص په مقابل کې تقلید وشي، زمونږ تقلید تقلید ممدوح دی، ځکه چې مونږ د امام صاحب رحمه الله چې مجتهد اعظم دی د هغه په رهنمائي کې په دین باندې عمل کوو، او تاسو د دې زمانې د ملایانو په رهنمائي کي چې غیر مجتهدین دي په دین باندې د عمل کولو دعوه کوئ نو دلا مذهبو تقلید تقلید مذموم دی، او له دې څخه په آیت کریمه کی منع راغلې ده. ځکه چې د تقلید مذموم له وجې مطلق تقلید ته حرام وایي پکار ده چې هغه د سپي د شو د وله وجې مطلقو شودو ته حرام ووایي.

**(۲) اعتراض: ایا په قران کښ د تقليد لفظ شته؟**

غير مقلدين وائي چې په قرآن او په خديث كښ د تقليد لفظ ندی راغلی، نو كه تقليد واجب وی نو په قرآن كښ به د تقليد لفظ راغلی وو.

مونږ جواب كوو: ۱ چې په قرآنكريم كښ اګر چې دتقليد لفظ نشته البته دتقليد معنی موجود ده، لكه په قران كښ چې د توحيد لفظ نشته ليكن د تو حيد معنی شته، نو اوس كه ته له دې وجې د تقليد څخه منكريږې چې دا لفظ په قران كښ نشته نو بيا خو د توحيد لفظ هم په قران كښ نشته نو ايا د توحيد څخه هم منكريږې؟

دوهم جواب: په قرآن پاک كښ هغه حيواناتو ته چه صرف د كعبې شريفې د نياز لپاره وي قلائد وايي، او د دې مالكانو حاجيانو ته مقلدين ويلی شي، په قرآن كريم كښ د هغه خلكو لپاره سخت وعيد راغلي دي چې دغې قلائدو او مقلدينو ته تكليف رسوي، البته خنزير ياسپي ته د (قلايد) جوړولو اجازه نشته، په صحيح البخاري كښ د بي بي عائشې رضي الله عنها هار ته قلاده ويل شويده (۱).

دريم جواب: په قران كريم كښ د اتباع لفظ راغلی دی، او د اتباع او دتقليد په مابين كښ مساوات دی او ثبوت احد المتساويين مستلزم لثبوت الأخر، لكه څرنګه چې په قرآن كريم كښ د جنازې لفظ نه شته لكن د (وصل عليهم) جمله موجوده ده، نو اوس كه يو څوک ووايي چې ما ته په قرآن كښ د جنازې لفظ وښايه! نو دده دا خبره به غلطه وي، ځكه چې صلوة الميت او جنازه يو شی دی، صرف په تعبير كښ فرق دی نو همدارنګه تقليد او اتباع يو شی دی صرف په تعبير كښ فرق دی.

څلورم جواب: دادی چې په اصول حديث كي محدثين الفاظ استعمالوي مثلاً وائي هذا حديث حسن، هذا مرسل و مدلس وغيرها من الألفاظ، دا الفاظ، لا مذهبه وكتوري اهل حديث هم استعمالوي او زمونږ محدثين حضرات ئي هم استعمالوی، حال دادی چې دا الفاظ د اصطلاحي معناګانو په اعتبار سره نه په قرآنكريم كي شته او نه په حديث كی ذكر دي، نو دا الفاظ ولې استعمالوئ؟

---

۱- ج۱ص ۴۸ او ۵۳۲.

پنځم جواب: دا دی چې سائل په سوال کي يو اځې قرآنکريم او حديث ذکر کړی دی او اجماع او قياس يې نه دي ذکر کړي، نو معلوميږي چې دا سائل دا جماع څخه منکر دی او د اجماع څخه منکر دوزخي وي. کما في قوله تعالی:

وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا (١١٥)]

په دی آيت کريمه کي الله تعالی جل جلاله د اجماع څخه د منکر لپاره وعيد فرمايلی دی چې:

[وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا دی له همدي وجې امام شافعي (رحمه الله) فرمايلي دي چې: فَإِذَا أَجْمَعَ الْمُسْلِمُونَ عَلَى حُكْمٍ فِي قَضِيَّةٍ فَمَنْ خَالَفَهُمْ فَقَدْ شَاقَّهُمْ وَاتَّبَعَ غَيْرَ سَبِيلِهِمْ وَتَعَرَّضَ لِلْوَعِيدِ الْمَذْكُورِ فِي سِيَاقِ الْخِطَابِ .( حاشيه عطار جز ٤ ص ٤٣٢)

وفي الحديث[ مَا كَانَ اللَّهُ لِيَجْمَعَ هَذِهِ الْأُمَّةَ عَلَى الضَّلَالَةِ أَبَدًا وَيَدُ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ هَكَذَا فَعَلَيْكُمْ بِسَوَادِ الْأَعْظَمِ فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شَذَّ فِي النَّارِ] (رواه المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم: ٣٩١ جز اول ص ١٩٩) همدارنګه سائل قياس هم ذکر نه کړو نو معلوميږي چې سائل د قياس څخه هم منکر دی او اول منکر د قياس څخه نظام معتزلي وو .(حاشيه بخاري ص١٠٨٨)

## (٣) اعتراض: ايا په قبر کې به د تقليد پوښتنه کيږي؟

جواب: د تقليد پوښتنه به په قبر او په حشر دواړو کې کيږي، الله جل جلاله فرمائي وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ (الملک/ ١٠)]په تفسير حقاني او په تفسير عزيزی کې يې د دې ايت لاندې ليکلي دي چې د نسمع څخه تقليد او د نعقل څخه تحقيق او اجتهاد مراد دی. دا سوال په ميدان د حشر کې شو، همدارنګه په صحيح البخاری ج١ صفه ١٨٧ کې راځي چې کله بعضې بنده په قبر کي کيښودل شي او سوال ورڅخه وشي نو دی به (لا ادري لا ادري) وائي نو ملائکې به ورته وائي چې (لا دريت ولا تليت) قسطلاني د بخاري شارح د دې ترجمه کوي چې (لا دريت) نه مجتهد وی او (لا تليت) نه مقلد وی،

فانقيل: پدې حديث کې خو په تقليد رد دی، ځکه چې په قبر کې به منافق وايي چې: كنت اقول ما يقول الناس الخ او دا تقليد دی؟

قلنا: ملايکې به ورته وايي چې کذبت نو دې سړي صرف په خوله داسې خبرې کولې، کومې چې نور خلک کوي، که د زړه څخه يې هغه خبرې کړې وي، کومې چې نور خلک کوي (يعنې د زړه څخه يې تقليد کړی وي) نو الله تعالى به نجات ورکړی وو.

دوهم جواب: دا دی چې دا اعتراض په اصل کي پرويزيانو کړی وو، پرويزيان صرف قرآنکريم مني دحديثو څخه منکر دی، او دحديثو څخه د انکار لپاره دليل وايي چې ايا په قبر کې به د بخاري ترمذي وغيره پوښتنه کيږي؟ نو غير مقلدينو دا سوال راپټ کړی دی، لږ تغير ئي پکې کړی دی او دمذهب په باره کي پوښتنه کوي. نو مونږ غيرمقلدينو ته وايو چې کوم جواب چې تاسې پروزيانو ته ورکوئ هم هغه ځواب مونږ تاسو ته درکوو.

دريم: جواب دا دی چې تاسو مونږ ته داسې يو ايت او يا يو حديث را وښايي چې په هغې کې راغلي وي چې د داسې مجتهد په رهنمائي کې پر دين عمل وکړئ چی د هغه په باره کې په قبر کې سوال کيږي، داشرط چې د مجتهد تپوس به په قبر کې در څخه کيږي په کوم آيت أو حديث کې راغلی دی؟ همدارنګه مونږ وايو چې په قبر کې خو صراحتاً درې پوښتني کيږي دلمونځ، دزکاة، وغيره پوښتنه صراحتاً نه کيږي نو أيا ته اوس له دې ټولو څخه منکريږئ؟.

## (۴) اعتراض: غير مقلدين اعتراض کوي چې ته حنفي يې او که محمدي؟

الجواب: زه د محمد صلى الله عليه وسلم په دين يم او د امام صاحب په مذهب يم، دين د منصوصاتو نوم دی او مذهب د اجتهادياتو نوم دی، نو زه محمدي يم ديناً، او حنفي يم مذهباً او اهل سنت والجماعت يم عقائداً.

تفصيل: څه د کفارو په مقابله کې مسلمان يم، او د يهوديانو او د عيسويانو په مقابله کې محمدي يم، او د دوه آويا مبتدعه ډلو په مقابله کې اهل السنة والجماعت يم او د دريو مذهبونو په مقابله کې حنفي يم، لکه زه چی د بهر ملکونو په مقابله کې افغاني يم، دنورو ولايتونو په مقابل کې ننګرهاری يم،

او دنورو ولسواليو په مقابله کې آګامی یم، نو لکه څرنګه چې دآګامي والي، ننګرهاري والي او افغاني والي، په منځ کی منافات نشته نو همدارنګه د محمدي او د حنفي په منځ کې هم منافات نشته.

دوهم: جواب دا ورکړه چې تا لفظ د (أو) غلط استعمال کړو (أو) په مینځ ددوو مساوي مقابلو جنسونو کی مستعملیږي، مثلاً داسې ویلی شئ چې ته افغانی یې او که روسی؟ ځکه چې دا دوه مساوي مقابل جنسونه دي، همدارنګه داسې ویلی شئ چې ته ننګرهاری یې او که کابلی؟ ځکه چې دا دواړه دوه مساوي مقابل جنسونه دي، همدارنګه داسې ویلی شئ چې ته آګامی یې او که چپرهاری؟ ځکه چې دا دواړه دوه مساوي مقابل جنسونه دي، لکن داسې نشي ویلی چې ته ننګرهاری ئې او که افغانی؟ ځکه چې دا دواړه دوه مساوي مقابل جنسونه نه دي، بلکې ننګرهار په افغانتسان کې داخل دی، همدارنګه داسې هم نشي ویلی چه ته آګامی یې او که ننګرهاری؟ ځکه چې اګام په ننګرهار کې داخل او د ننګرهار ولسوالی ده، نو یو ملک دبل ملک سره مساوي مقابل جنس دی، او یو ولایت دبل ولایت سره مساوي مقابل جنس دی، او یوه ولسوالی دبلې ولسوالی سره مساوي مقابل جنس دی، نو ددوو ملکونو، ددوو ولایتونو او دوو ولسوالیو په مینځ کې د (او) کلمه رواړی شي، لکن د ولایت او دملک په منځ کې یئ نه شئ راوړلی، همدارنګه یئ ددوو ولایتونو په منځ کې راوړی شي لکن دولایت او د ولسوالی په منځ کې یئ نه شئ راوړلی، همدارنګه دا سوال صحیح دی چې ته محمدي ئې او که عیسوي؟ ځکه چې دا دواړه دوه مساوي مقابل جنسونه دي، لکن دا سوال غلط دی چه ته حنفي ئې او که محمدي؟ ځکه چې دا دواړه دوه مساوي مقابل جنسونه نه دي، څه به همداسې سوال له تاسو څخه وکړم چه ته اهل حدیث ئې او که انسان؟ او همدارنګه به مونږ دیو حدیث په باره کې ووایو چې دا حدیث دبخاري دی او که دنبي صلی الله علیه وسلم؟

**(۵) اعتراض: ته د امام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ په مذهب یې او که د محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

غیر مقلدین له یو کمزوري سړي څخه پوښتنه کوي چه ته د محمد صلی الله علیه وسلم په مذهب ئي او که د امام صاحب رحمه الله؟

جواب: زه د محمد صلی الله علیه وسلم په دین یم او د امام صاحب په مذهب یم، زما دین محمدي دی او زما مذهب حنفي دی دین د منزل نوم دی او مذهب لاره ده، لا مذهبه وایيان وايي چې مونږ د نبي صلی الله علیه وسلم په مذهب یو، نو مونږ تر ینه پوښتنه کوو چې نبي صلی الله علیه وسلم مو مذهب شو نو منزل مو څه شی دی؟ د دوي څخه منزل ورک دی، الله تعالی د منکرینو د اجماع په باره کې فرمايي چې: (نوله ماتولی) یعنې د دوي څخه به توفیق د هدایت واخلم، خپل منزل به ورته نه وي معلوم.

دوهم جواب: سائل د مذهب او د دین په مینځ کې فرق نه دی کړی، حالانکه د دوي دواړو په مابین کې ډېر فرقونه دي(۱) د قرآني او نبوي اصولو (کتاب الله، سنت، اجماع، قیاس) څخه ثابت شده مسایل دین دي، او د دې مسایلو توضیح او تشریح مذهبونه دي مثلا الله تعالی فرمايي چې: (يَتَرَبَّصۡنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَٰثَةَ قُرُوٓءٖ) مطلقه ښځه به درې قروء انتظار کوي نو دا د دین مسئله شوه، اوس د قروء توضیح څه ده؟ نو امام ابو حنیفه رحمه الله فرمايي چې حیضونه دي او امام شافعي رحمه الله فرمايي چې طهرونه دي، نو دا دوه توضیحات دوه مذهبونه شول، کله په یوه مسئله کې توضیحات نور هم ډېر شي نو مذهبونه نور هم ډېر شي، په مختصر تعبیر سره داسې ووایه چې دین منصوصاتو ته وايي او مذهب اجتهادیاتو ته وايي (۲) دوهم فرق دا دی چې د دین څخه انکار کفر دی او د یو خاص مذهب څخه انکار کفر نه دی، لکه د ثلاثة قروءٍ څخه انکار کفر دی، او د حیض څخه انکار او طهر مراد ول همدارنګه د طهر څخه انکار او حیض مراد ول کفر نه دی، قادیانیانو د دین څخه انکار کړی دی او مقلدین یوه لاره پرېږدي او په بله لاره دین ته ځان رسوي (۳) چې کله د قرآني او نبوي اصولو څخه ثابت شده مسایل دین شو او د دې مسایلو توضیحات مذهبونه شول، یا داسې ووایه چې کله چې منصوصات دین شو او اجتهادیات مذهبونه شو، نو دا توضیحات هر مجتهد د خپل اجتهاد مطابق کوي نو توضیحات اجتهادي رأیې شوې او د نبي صلی الله علیه وسلم د حدیث مسلم ج ۲ ص (۷۶) مطابق په اجتهاد کې د خطائي او د صواب دواړو احتمال شته، نو په مذهب کې د خطاء او د صواب دواړو احتمال دی او په دین کې د خطاء احتمال نه شته، له دې وجې شاه عبد العزیز رحمه الله په تحفه اثنا عشریه ص (۷۲) کید هشتاد پنجم کې لیکي چې څوک چې

وايي زه د الله تعالى يا د جبرايل عليه السلام يا د محمد عليه السلام په مذهب يم دا ډېر احمق دی ځکه چې دې الله تعالى يا جبريل عليه السلام او يا محمد عليه السلام ته د خطائي نسبت کوي په مختصر تعبير سره داسې ووايه چې دين منصوصاتو ته وايي او په منصوصاتو کې د خطائي احتمال نشته او په اجتهادياتو کې د خطائي احتمال دی. (۴) کله چې مذهبونه دد دې توضيحاتو څخه عبارت شول نو هر مجتهد د خپل اجتهاد مطابق توضيح کوي نو کله ديوې مسئلې توضيحات ډېر شي لدې وجې په مذهبونو کې کثرت او تعدد راشي، نو حاصل د فرق دا شو چې دين يو دی او په مذهبونو کې کثرت او تعدد راتللی شي، لکه يو مسجد ته چې ځلور لارې وي، همدارنګه کله ديوې مسئلې لپاره ځلور توضيحات راشي نو د ځلورو وارو امامانو دين يو دی او دا ځلور مذهبونه ورته ځلور لارې دي، د مذهبونو تعدد د احاديثو په کتابونو کې ډېر راغلی دی لکه په مسلم ج ۲ ص ۳۳ کې يو صحابي ته ديو مذهب او بل صحابي ته د بل مذهب نسبت شوی دی همدارنګه په مقدمه د مسلم ص ۵ و ص ۳۰ کې هم دی، نور تفصيل د ۳۸ پوښتنې لاندې وګورئ.

## (٦) اعتراض : ته ولې دحنفي په ځاى ځان ته مسلمان نه وايئ؟

غير مقلدين اعتراض کوي چې الله تعالى په قرآنکريم کې فرمائي چې ﴿هُوَسَمّٰكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ يعنى په آيت کې الله تعالى درته مسلمان ويلي دي او تاسو ځانونو ته حنفيان وائي د حنفي ذکر خو په قرآن کې نشته؟

جواب: څه ځانته مسلمان هم وايم او ځان ته حنفي هم وايم او داکيدلى شي چې يو څوک دی مسلمان هم وي او حنفي دی هم وي، اهل السنة والجماعة دی هم وي او محمدي دې هم وي، نو زه محمدي يم په مقابله د عيسويانو او يهويانو کې او مسلمان يم په مقابله د کفارو کې او اهل سنة والجماعة يم په مقابله د ۷۲ مبتدعو ډلو کې، او په اجتهادي مسايلو کې په مقابله د باقي مذاهبو ثلاثه ؤ کې حنفي يم.

(۲) او بل دا وایو چې زمونږ نوم په قرآنکریم کی اشارةً راغلی دی الله تعالی فرمایي چې [يَوۡمَ تَبۡيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسۡوَدُّ وُجُوه] په دېرو مرفوعو اوموقوفو احادیثو کې راغلي دي چې ددې څخه مراد اهل السنة والجماعة دي (تفسیر در منثور)

(۳) الزامی جواب: ته ولې ځان ته اهل حدیث اوسلفي او وهابي او لشکر طیبه او جماعة الدعوة وغیره وایي دانومونه نه په قرآن کې راغلي دي او نه په حدیث کې.

## (۷) اعتراض: ایا د دې څلورو واړو امامانو نومونه په قران او په احادیثو کې شته؟

غیر مقلدین وائي چې په قرآن او په حدیث کي خو دڅلورو امامانو نومونه ندي راغلي بیا تاسو ولې د دوي تقلید کوئ؟

اول جواب: داسوال په اصل کې شیعه ګانو کړی وو، حافظ ابن تیمیه په منهاج السنة کې اوشاه عبدالعزیز محدث دهلوی په تحفه اثنا عشریه کې لیکي چې: اهل سنت والجماعة په شیعه ګانو اعتراض وکړو، چې تاسو خپلو دولسو امامانوته منصوص من الله وایي نو دقرآن یا د حدیث څخه نص پېش کړئ؟

شیعه ګان چې لاجوابه شول، په اهل سنتو یې اعتراض وکړو چې تاسو چې ددې څلورو امامانو تقلید کوئ نو تاسو دقرآن یا دحدیث څخه نص پېش کړئ؟ اهل سنتو جواب ورکړو چې مونږ خو دې څلورو امامانوته منصوصي نه وایو، نو زمونږ څخه دنص مطالبه غلطه ده، تاسو ورته منصوص من الله وایي ځکه ضروري ده چې تاسو نص پېش کړئ.

دسوال صحیح طریقه داسې ده: چې په دلائلو اربعه وو شرعیه وو کې په کوم دلیل دائمه وو اربعه وو تقلید واجب دی؟

**فائده:** دفقهې حنفي په مذمت کې د ټولو څخه اولنی کتاب په نامه د (استقصاء الافهام) ولیکلی شو، ددې کتاب مصنف یو متعصب شیعه حامد حسین کستوري وو، ددې څخه وروسته چې غیرمقلدینو دفقهې حنفي په خلاف څومره کتابونه لیکلي دي، داټول ددې شیعه دکتاب څخه نقالي ده او ددې شیعه

گانو قی خوري ده ، غیرمقلد محمد حسین بټالوي وکیل اهلحدیث هند په دې اقرار کوي، چې ددې ټولو اعتراضونو مأخذ دحامد حسین شیعي کتاب دی(السیف الصارم) لمحمد حسین بټالوي.

دویم کتاب یو هندو (هري چندبن دیوان چند کهتري) ولیکلو په نامه د (الظفـر المبین) دی نو مسلم بیائځانته مولوی محی الدین ویلو.

**دویم جواب:** الله تعالی دقرآن دلوستلو امرکړی دی او په هندوستان، پاکستان او افغانستان بلکې په اکثر عالم اسلام کې خلک دقاري عاصم کوفي په روایت او د قاري حفص کوفي په قرائت باندې قرآن لولي.

ددې دواړو قاریانو نومونه په قرآن یاحدیث کې نشته، بلکې ددوي قراءتونه او ددوي نومونه په اجماع ثابت دي.

نو دقراءت امر الله ﷻ کړیدی، او دادواړه په اجماع دامت قاریان دي، دارنگه په قرآن او په حدیث کې دعمل بالحدیث امرشویدی، اومسلمانان دصحاح سته وو وغیره و په احادیثو باندې عمل کوي، دصحاح سته وو دمؤلفینو نومونه ... په قرآن او په حدیث کې نشته بلکې ددوي محدث والی په اجماع ثابت دی، نوهمدارنگه په قران او په حدیث کې غیرمجتهد ته دتقلید امرشوی دی او مسلمانان ددې څلورو امامانو تقلید ځکه کوي چې ددې څلورو امامانو اجتهاد په اجماع او تواتر ثابت دی. نو په قرآن او په حدیث کې دبخاری او دمسلم نوم نشته لکن دوي دنبی صلی الله علیه وسلم اقوال او افعال رانقل کړي دي اوددې څلورو امامانو نومونه هم نشته لکن دوي دنبي صلی الله علیه وسلم داقوالو اودافعالو معناگانې رانقل کړي دي.

دریم الزامي جواب: تاسي دامین الله، غلام الله، او دهري چند ابن دیوان چند کتهري هندو وغیره اتباع ولې کوئ؟ د دوي نومونه خو نه په قرآن کي راغلي دي او نه په حدیث کې. که تاسو جواب کوئ چې کتهري صاحب خو وائي چې زه له ځان څخه څه نه وایم بلکه قال الله او قال الرسول وایم نو مونږ وایو چې امام صاحب مونږ ته په سوونو کاله مخکي ویلي دي چې ځه له ځان څخه څه نه وایم بلکه دالله جل جلاله او دهغه درسول خبري کوم، نو امام صاحب په خیر القرون کي تیر شوی دی او ستا کتهري هندو په شر القرون څوارلسمه صدی کې دی، نو ته قضاوت وکړه چې خیر القرون والا به رشتیا وائي او که دشر القرون والا ؟

## (۸) اعتراض: د امام صاحب رحمه الله څخه مخکې خلک د چا په مذهب وو؟

د څلورو امامانو څخه چې کوم خلک مخکې تېرشوي دي يا د امام ابوحنيفه رحمه الله څخه مخکې خلک د چا په مذهب وو؟ يعنې صحابه رضی الله عنهم د چا په مذهب وو؟

جواب: دا سوال هم په اصل کې شيعه ګانو او منکرينو د حديثونو کړی وو.

منکرين د حديثو وائي چې د صحابه وو او د تابعينو په زمانه کې خو بخاري، مسلم، ترمذي وغيره نه وو نو هغوئ په څه شي عمل کولو؟

(۲) جواب: د صحابه وو تعداد له سلو زرو (۱۰۰۰۰۰) څخه زيات وو، شاولي الله رحمه الله فرمايي: چې دا ټول صحابه دوه ډلې وو، يوه ډله د مجتهدينو وه بله ډله د مقلدينو (۱)

د ابن القيم رحمه الله په قول مجتهدين اصحاب پکې يوسل او نه څلوېښت (۱۴۹) وو باقي ټول مقلدين وو.

بيا دا مجتهدين درې ډلې وو:

مکثرين: يعنې هغه صحابه رضي الله عنهم چې ډېرې فتوې به يې ورکولې د دوي تعداد شپږ (۶) دی: حضرت علی، حضرت عبد الله بن مسعود، حضرت عمر، حضرت زيد بن ثابت، حضرت ابو الدرداء، حضرت ابی بن کعب رضی الله عنهم اجمعين (۲)

متوسطين: يعنې هغه صحابه رضي الله عنهم چې درميانه فتوې به يې ورکولې، د دې صحابه وو تعداد شل (۲۰) وو.

مقلّين: يعنې هغه صحابه رضي الله عنهم چې لږې فتوې به يې ورکولې د دې صحابه وو تعداد يوسل او درويشت (۱۲۳) وو.

د دې صحابه وو په زرګونو فتوې په مصنف عبد الرزاق، تهذيب الاثار، او معانی الاثار وغيره کتابونو کې ذکر دي، په مصنف عبد الرزاق کې په زرګونو فتوی دي، مقلدينو صحابه وو رضي الله عنهم به پوښتنه

---

۱. قرة العينين ص ۲۵۱.
۲. طبقات ابن سعد ج ۲ ص ۵۲

کوله او مجتهدينو صحابه وو رضي الله عنهم به جواب ورکولو، نه به مستفتي مطالبه د دليل کوله او نه به مفتي ورته د مسئلې سره دليل ذکر کولو صرف په دې اعتماد به منل کېده چې پدې مسئله د مفتي سره دليل شته چې همدې ته تقليد وايي، نو يو اځې په مصنف عبد الرزاق کې د تقليد په زرګونو دلائل دي.

د دغه مجهتدينو صحابه وو په باره کې شاه ولي الله رحمه الله فرمائي: ثُمَّ اِنَّهُمْ تَفَرَّقُوْافِي الْبِلَادِ وَصَارَ كُلُّ وَاحِدٍ مُقْتَدٰي نَاحِيَةٍ مِنَ النَّوَاحِيْ (۱).

يعنې بيا دغه مجتهدين صحابه رضی الله عنهم په مختلفو وطنونو کې خپاره شول او دهرې علاقې خلکو ديو يو صحابي تقليد شروع کړو.

۱. دمکې مکرمې صحابه کرامو او تابعينو به دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما تقليد شخصي کولو، دده معمول داوو چې اول به يې په قرآن فيصله کوله، که هلته به يې مسئله پيدا نکړه نو بيا به يې په سنت فيصله کوله، که په سنت کې به هم پيدا نه شوه نو بيا به يې د حضرت ابوبکر او عمر رضی الله عنهما په فيصلو باندې فيصله کوله او که دهغوئ فيصله به هم پيدا نشوه نو په اخر کې به ئې په خپله رائه او اجتهاد باندې فيصله کوله (۲).

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما ډيرى فتوې په مصنف عبد الرزاق او په مصنف ابن ابی شيبه کې ذکر دي مطالبه د دليل ورسره نده ذکر چې همدې ته تقليد وايي.

۲. دمدينې منورې صحابه کرامو او تابعينو به د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه تقليد شخصي کولو حتی چې اهل مدينه وو به عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ته فرمايل: لَانَاْخُذُ بِقَوْلِكَ وَنَدَعُ قَوْلَ زَيْدٍ (۳)

يعنې ستا د قول په مقابل کې مونږ د زيد رضي الله عنه قول نه پرېږدو، دوي مکمل د زيد بن ثابت رضي الله عنه تقليد شخصي کولو، شارحين ددې په ترجمه کې ليکي چې: لَانُتَابِعُكَ يَابْنَ عَبَّاسٍ وَاَنْتَ تُخَالِفُ زَيْداً

---

۱ - الانصاف ص۳

۲ - دارمي ج۱ ص ۵۹ ،مستدرك وقال الحاكم صحيح ج۱ ص ۳۴۰ دارمي ج۱ ص ۵۹، سنن بيهقي ج۱ص۲۲۵، جامع بيان العلم ص۵۷، ۵۸ ج ۲.

۳ - بخاري ج۱ ص۲۳۷

(۱) او چې کله به يې فتوی ورکوله نو د قرآن او د حديث څخه به چې ثبوت پيدا نشو نو فرمايل به يې: اِنَّمَا اَقُوْلُ بِرَائِيْ (۱)

۳. د يمن صحابهٔ او تابعينو به د معاذ رضي الله عنه تقليد شخصي کولو.

۴. د بصرې صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو به د انس رضي الله عنه تقليد شخصي کولو.

۵. د کوفې خلکو به د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تقليد شخصي کولو، د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مشهور داوو: فَمَنْ عَرَضَ لَه مِنْكُمْ قَضَاءً فَلْيَقْضِ بِمَا فِيْ كِتَابِ اللهِ فِاِنْ جَاءَ اَمْرٌ لَيْسِ فِيْ كِتَابِ اللهِ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضى بِه نَبِيُّهُ فَاِنْ جَاءَ اَمْرٌ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَلاَقَضى بِه نَبِيُّهُ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضى بِه الصَّالِحُوْنَ، فِاِنْ جَاءَ اَمْرٌلَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَلاَقَضى بِه نَبِيُّهُ ﷺ وَلاقَضى بِهِ الصَّالِحُوْنَ فَلْيَجْتَهِدْ بِرَاْئِهِ (۳) (والحديث جيد)

د دارمي الفاظ داسې دي:

٦. فَاِنْ لَمْ يَكُنْ فِيْمَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ فَاجْتَهِدْ بِرَأْيِكَ (ج۱ ص٦۱)

وَعَنْ ابْنِ مَسْعُوْد رضي الله عنه اِنَّهُ قَالَ فِيْ غَيْرِ مَا مسئلة اَقُوْلُ فِيْه بِرَأْيِ (٤)

يعنې اول فيصله په کتاب الله ده، بيا په سنت الرسول ده، بيا په اجماع د صحابه وو ده، که په دې کې پيدا نشو بيا حکم او فيصله په خپل اجتهاد ده. نو د رسول الله ﷺ څخه وروسته د دغو صحابه وو تقليد کېدلو د صحابه وو رضی الله عنهم څخه وروسته د تابعينو زمانه شوه. شاه ولی الله رحمه الله فرمايي: فَعِنْدَ ذٰلِكَ صَارَ لِكُلِّ عَالِمٍ مِنَ التَّابِعِيْنَ مَذْهَبٌ عَلى حِيَالِه فَانْتَصَبَ فِيْ كُلِّ بَلَدٍ اِمَامٌ (٥)

---

۱. عمدة القاري ج۴ ص ۴۷۷ فتح الباري ج۳ ص ۴٦۳.

۲. جامع بيان العلم ج۲ ص ۵۸. بيهقي ج۱ ص ۱۵۵.

۳. نسائی ص ۲٦۴ باب الحكم باتفاق اهل العلم.

۴. جامع بيان العلم ج۲ ص۵۷

۵. الانصاف ص٦

يعنې هرتابعي عالم ځانته مذهب جوړ کړو او په هر ښار کې يو يو تابعي عالم امام جوړ شو. صدرالائمه مکي فرمايي: چې يوه ورځ حضرت عطاء رحمه الله د خليفه هشام بن عبدالملک په خدمت کې حاضر شو خليفه ترېنه پوښتنه وکړه، چې ته د اسلامي ښارونو امامان پېژنې ؟ حضرت عطاء رحمه الله وويل هو!

۱. دمدينې منورې دخلکو امام حضرت نافع رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۲. دمکې مکرمې دخلکو امام حضرت عطاء رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۳. ديمن دخلکو امام حضرت طاوس رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۴. ديمامې دخلکو امام يحيى ابن کثير رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۵. دشام دخلکو امام حضرت مکحول رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
٦. دعراق دخلکو امام حضرت ميمون بن مهران رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۷. دخراسان دخلکو امام حضرت ضحاک بن مزاحم رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۸. دبصرې دخلکو امام حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ دی.
۹. دکوفې دخلکو امام حضرت ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ دی.(۱).

نو هيڅ دور په تاريخ د اسلام کې داسې ندې تېر شوې چې صرف يو کس دې په کې غير مقلد وي.

**امام غزالي** رَحِمَهُ اللَّهُ **فرمايي:** په تقليد باندې دټولو صحابه وو اجماع ده، او د صحابه وو په دور کې دا په تواتر ثابت وو (۲)

شاه ولي الله رَحِمَهُ اللَّهُ دشيخ عزالدين بن عبدالسلام رَحِمَهُ اللَّهُ څخه نقل کوي:

اَنَّ النَّاسَ لَمْ يَزَالُوْ عَنْ زَمَنِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اِلَى اَنْ ظَهَرَتِ الْمَذَاهِبُ الاَرْبَعَـة يُقَـلِّدُوْنَ مَنْ اِتَّفَقَ مِنَ الْعُلَمَاءِ مِنْ غَيْرِ نَكِيْرٍ مِنْ اَحَدٍ يِعْتَبِرُ اِنْكَارُهُ وَلَوْكَانَ ذَلِكَ بَاطِلاً لاَنْكَرُوْهُ (۳).

---

[۱] - مناقب موفق ص۷ج ۱ دا واقعه حاکم هم ذکر کړېده په معرفة علوم الحديث کې صفحه ۱۹۸.

[۲] - المستصفى ج۲ ص۳۸۵.

[۳] - عقد الجيد ص ۳٦

بیا فرمایي: فَهٰذَا كَيْفَ يُنْكِرُهُ مَعَ اَنَّ الاِسْتِفْتَاءَ لَمْ يَزَلْ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ عَهْدِالنَّبِيِّ ﷺ وَلَافَرْقَ بَيْنَ اَنْ يَّسْتَفْتِيَ هَذَا دَائِمًا وَيَسْتَفْتِيَ هَذَا حِيْناً بَعْدَ اَنْ يَّكُوْنَ مُجْمَعٌ عَلَى مَاذَكَرْنَا(۱)

یعنې تقلید دصحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د دور څخه شروع دی، (اودهغه وخت څخه ترشاه ولی الله رحمه الله پورې هیڅ غیر مقلد نه وو) بیا دې څلورو امامانو دصحابه ؓ وو او د تابعینو رحمهم الله فتوې راجمع او مدونې یې کړې. اوترتیب یې ورکړو او په بعضو ځایونو کې یې خپل اجتهاد وکړو. لەدې وجهې ټول خلک په دې څلورو مذهبونو کې داخل شول.

لکه احادیث چې دصحابه وو او دتابعینو په دور کې وو لېکن بخاري اومسلم وغیره کتابونه نه وو. بیا وروسته امام بخاری، مسلم، وغیره دا احادیث مرتب کړه لدې وجهې ورته دبخاري، مسلم، ترمذي وغیره حدیث وایي حالانکه دصحابه کرامو ؓ اودتابعینو په وخت کې نه بخاري وه نه مسلم اونه نور، نو همدا شان دڅلورو مذهبونو مسائل وو لېکن مرتب نه وو. بیا امام صاحب وغیره مجتهدینو مرتب کړل لدې وجې دې امامانو ته منسوبیږي.

## یوغټ دروغ

لامذهبان لیکي چې تقلید په څلورمه صدۍ کې پیدا شوی دی. لکه شاولی الله دهلوي رَحِمَهُ اللهُ چې فرمائی (اعلم ان الناس قبل الماة الرابعة غير مجمعين على التقليد الخاص لمذهب واحد) التحقيق السديد ص ۱۲۴ د زیمه چهپائی.

جواب (لعنة الله على الكذبين) ( لادين لمن لايادنة له) ( الفاجرخب لئيم )تاسې مخکې واوریدل چې تقلید دصحابو د زمانې څخه راروان دی. د زیات تایید لپاره به زه دډېر اختصار سره دکتبو داسماء الرجالو څخه دیوڅو مقلدینو شیوخونو مونه ولیکم چې څلورمې صدۍ څخه مخکې تیرشوي دي.

۱. قاضي اسماعيل ابن النسفي الكندي الحنفي رحمه الله المتوفى بعد (۱۶۴ ه) په (۱۶۴ ه) کې دمصر قاضی وو (الجواهر المضيه ج ۱ ص ۱۶).

---

۱ عقد الجيد ص ۳۹

۲. امام لیث بن سعد الحنفي رَحِمَهُ ٱللَّهُ دیرلوی محدث وو (تهذیب التهذیب ج ۸/ص ۴۶۱) غیرمقلد نواب صدیق حسن خان لیکي چې (وی حنفي مذهب بود وقضائی مصرداشت) اتحاف ص ۲۳۷).

۳. امام عبدالله بن المبارک رحمه الله المتوفی (۱۸۱ه) چې امام، حافظ، اوشیخ الاسلام وو، تذکرة الحافظ ج ۱/ص ۳۵۳) دافرمائی چې ماسره دامام ابوحنیفه رحمه الله فقه ده (تاریخ بغداد ج ۱۳/ص ۳۵۵ مناقب موفق ج ۱/ص ۲۲۶ و ص ۱۳۳شرح الموطاج ۷/ص ۳۰۰).

۴. الامام وکیع بن الجراح رحمه الله المتوفی (۱۹۷ه) حنفی المذهب وو (جامع بیان العلم ج ۲/ ص ۱۴۹ تذکرة ج ۱/ص ۲۷۲ تهذیب التهذیب ج ۱۱/ص ۱۲۷).

۵. امام یحی بن سعید القطان رحمه الله المتوفی (۱۹۸هـ) حنفی المذهب وو (تذکره ج ۱/ص ۲۸۲ تهذیب ج ۱۰/ص ۴۵۰ الجواهر المضیه ج ۲/ص ۲۰۹ تاریخ بغداد ج ۱۳/ص ۴۵۴)

۶. امام یحی بن زکریا بن ابی زایده رحمه الله المتوفی (۱۸۲ ه) حنفی المذهب وو (تذکره ج ۱ /ص ۲۴۶ مفتاح السعادة ج ۲/ص ۱۱۹).

۷. امام یحیی بن معین رحمه الله المتوفی (۲۳۳ ه) حنفی المذهب وو (فیض الباری ج ۱/ص ۱۶۹ مقدمة نصب الرایه ص ۴۲ تاریخ بغداد ج ۱۳/ص ۳۴۷).

۸. خلیفه جعفر بن معتصم رحمه الله الملقب بالمتوکل علی الله المتوفی (۲۴۶ ه) اولنی خلیفه ووچې دامام شافعی رحمه الله په مذهب وو، تاریخ الخلفاء سیوطی (ص ۳۵۹).

۹. امام عبدالغفار بن داود الحرانی رحمه الله المتوفی (۲۰۴هـ) حنفی المذهب وو (تهذیب التهذیب ج ۶/ص ۳۶۶).

۱۰. امام عبدالملک بن حبیب رَحِمَهُ ٱللَّهُ المتوفی (۲۳۹ ه) مالکی المذهب وو تذکره ج ۲/ص ۱۰۷.

۱۱. امام اسماعیل القاضی رحمه الله المتوفی (۲۸۲ه) شیخ المالکیة بالعراق تذکرة (ج۲/ص ۱۸۰).

۱۲. امام احمد بن محمد بن الاثرم رحمه الله المتوفی (۲۶۰هـ) حنبلی المذهب وو، تذکرة (ج۲/ص ۱۳۵).

۱۳. الامام المیمونی ابوالحسن احمد بن عبدالحمید رحمه الله المتوفی (۲۷۴هـ) من کبار اصحاب محمد تذکرة (ج۲/ص ۱۶۲).

۱۴. امام حرب بن اسماعيل الكرماني رحمه الله المتوفى (۲۸۰هـ) حنبلي المذهب وو تذكرة (ج۲/ص ۱۷۰).

۱۵. امام ابوبكر احمد بن محمد المروزي رحمه الله المتوفى (۲۷۵هـ) حنبلي المذهب وو (تذكرة ج ۲/ص ۱۸۵).

۱۶. امام بخاری رحمه الله المتوفى (۲۷۷هـ) شافعي المذهب وو، طبقات شافعيه (ج۲/ ص ۲ تا ۱۹) غیرمقلد نواب صدیق حسن خان هم ورته شافعي ویلي دي، ابجد العلوم (ص ۸۱۰).

۱۷. امام محمد بن نضر رحمه الله المتوفى (۲۹۱هـ) دده ټول خاندان حنفي المذهب وو (تذكرة ج ۲/ص ۲۲۰).

۱۸. امام محمد بن شعيب النسائی رحمه الله المتوفى (۳۰۳هـ) شافعی المذهب وو (اکمال ص ۲۲۷).

۱۹. امام محدث ابو عوانه رحمه الله المتوفى (۳۱۶هـ) شافعی المذهب وو (تذكرة ج ۳/ ص ۳).

۲۰. امام طحاوی رحمه الله المتوفى (۳۲۱هـ) حنفی المذهب وو (تذكرة ج ۳/ص ۷) که د ځلورمی صدی ځخه د مخکنیو مقلدینو شیوخو نومونه څوک لیکل غواړي نوپوره کتابخانه به ترینه جوړه شي.

۲۱. په (۲۲۸هـ) کې خلیفه واثق بالله الغباس د سد سکندر د حال د معلومولو لپاره یو هیئت ولیګلو هغوی چې هلته ورسیدل نو د سد سکندر خوا او شا ټول خلک د امام ابو حنیفه رحمه الله په مذهب وو، دغیرمقلدینو سرګروه نواب صدیق حسن خان غیرمقلد د مسالک الممالک په حواله لیکلي دي چې (محافظان سد که درآن جا بودند همه دین اسلام داشتند ومذهب حنفي وزبان عربی وفارسي میګفتند اما ازسلطنت عباسیه بی خبربودند (ریاض المرتاض ص ۳۱۶ خیر التنقید ص ۲۳).

۲۲. دغیرمقلدینو سرګروه نواب صدیق حسن خان لیکلي دي چې نشأ ابن شريح فاسس قواعد التقليد (الی ان قال) ولذلك يعدمن المجددين على راس الماتين (الجنه ص ۳۹) امام ابن شریح همت وکړو او د تقلید د قواعدو بنیادئی کیښودلو، لدې وجهې هغه د دوهمې صدی په مجددینو کې شمارل کیږي که د ځلورمې صدی ځخه مخکې تقلید نه وي نو امام ابن شریح رحمه الله د کوم ضرورت په بنیاد د تقلید لپاره قواعد وضعه کول؟

## دشاولی الله رَحِمَهُ اللهُ دقول مطلب

داخبره پوره واضحه شوه چې دڅلورمې صدی څخه مخکې تقلید وو، خپله شاولی الله رحمه الله په بل ځای کې فرمائی چې (وبعد المائتين ظهر فيهم التمذهب للمجتهدين باعيانهم وقل من كان لايعتمدعلى مذهب مجتهدبعينه وكان هذا هوالواجب فى ذلك الزمان(انصاف مع ترجمه اردوكشاف ص ۵۹) ددوهمې صدی څخه وروسته په خلکو کې دیو معین مجتهد دمذهب اختیارول ظاهرشو، او په هغه وخت کې داسې خلک ډیرلږ وو چې دیو معین مجتهد په مذهب به ئی اعتماد نه کولو، او په هغه وخت کې دیو معین مذهب پابندي واجبه وه، نوشاولی الله نه یوائې داچه دڅلورمې صدی څخه مخکې تقلیدته رایج وائی، بلکه واجب ورته وائی نودشاولی الله رحمه الله دخبرې څخه دامطلب اخستل چې: دڅلورمې صدی څخه مخکې تقلید نه وو بالکل غلط دي او دیولوی محدث په قول کې تعارض راویستل دي، نودشاولی الله رحمه الله دقول معنی خپله دده داقوالو څخه داراظاهریږی چې دڅلورمې صدی څخه مخکې دکوم خاص مذهب په تقلید باندې اجتماع نه وه، یعنی تقلیدو ولکن متفرق اومتعدد وو، چابه دیو مجتهداو چابه دبل مجتهد تقلید کولو، او په بعضو کې به چې داجتهاد اهلیت وو هغوي به خپله اجتهاد کولو، اووروسته چې علمي کمزوری پیداشوی نوبیا خلک دیو خاص خاص مذهب پابند شو، لکه شاولي الله رحمه الله چې په بل ځای کې فرمائی (وَاعْلَمْ أَنَّ النَّاسَ كَانُوْا فِي الْمأة الأُوْلٰى والثَّانِيَةِ غَيْرُمُجْتَمِعِيْنَ عَلَى التَّقْلِيْدِ لِمَذْهَبٍ وَّاحِدٍ بِعَيْنِهِ) (انصاف ص ۵۷) پوه شه چې په اوله اودوهمه صدی کې په یوخاص معین مذهب باندې دخلکو اجتماع نه وه، نومخکې دډیرو مجتهدینو تقلید کیدلو لکن دهغوي مذاهب مدون نه شول، لدې وجهې اوس ددې څلورو مدونو مذاهبو تقلید کیږی.

(۲۳) لامذهب نیازمحمد دتقلید پرخلاف باندې یو کرنګ لیکلی دی په نوم د التحقیق السدید، د دې کرنګ په ۲۴ صفحه کې یې لیکلي دي چې ایوب سختیاني رحمه الله په تقلید رد کړی دی، حالانکه ایوب سختیاني په ۱۳۱ هجری کی تیر شوی دی، نو چې تقلید نه وو څرنګه ئي په تقلید رد وکړو؟ آیا علم غیب ورسره وو چې وروسته به تقلید پیدا کېږي؟

همدارنګه په الحق الصریح کی دیو صحابي واقعه رانقلوي. چې یو صحابي ته نورو صحابه وو فتوی ورکړه چې ته اګر چې زخمي ئي لکن تاته له جنابت څخه د تیمم اجازت نشته نو ته غسل وکړه، هغه صحابي چې کله غسل وکړو نو وفات شولو، نو نیازمحمد لیکي چې دغه صحابي د دې نورو صحابه وو تقلید وکړو نو څکه خو مړ شو (ج۲ صفه ۶۵۵)

نو چې د صحابه وو په زمانه کي تقلید نه وو نو دی صحابي بیا څنګه تقلید وکړو؟ همدارنګه تاسو تقلید ته شرک وائې نو د دې صحابي په باره کي څه فتوی ورکوئ؟ مونږ وایو چې دې وفات شوي صحابي (رضی الله عنه) د غیر مجتهدینو څخه فتوی غوښتې وه، نو رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په دې باندې خفه شو، او وی فرمایل چې دوي نه پوهېدل نو ولې یې پوښتنه نه کوله، او مونږ د مجتهدینو پیروی ته واجب وایو.

## (۹) اعتراض : دین مکمل دی نو فقهې ته څه ضرورت دی؟

لامذهبه وکتهوري اهلحدیث وائي چې الله تعالي فرمائي چې [اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ (الایه) نو چې دین مکمل شو نو بیا امام صاحب ته څه ضرورت دی؟

(۱) جواب: دلته دوه لفظه دي : اول: الیوم. دوهم: اکملت، نو مونږ په لامذهبو اعتراض کوو چې د الیوم حقیقي معنی ده (نن ورځ) نو چې په همدې ورځ دین مکمل شو، نو بیا هغه ایتونه چې د دې ایت څخه وروسته نازل شوي دي، لکه: (وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ) دین دی او که نه؟ او همدارنګه هغه احادیث چې د دې ایت څخه وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، دین دی او که نه؟ همدارنګه د خلفاء راشدینو سنت دین دی او که نه؟ حالانکې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: (علیکم بسنتی وسنت الخفاء الراشدین) که وابیان جواب کوي چې د الیوم څخه حقیقي معنی نده مراد، بلکې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم تر وفاته پورې زمانه ترینه مراده، نو مونږ هم همدا جواب کوو چې د اکملت څخه حقیقي معنی نده مراد، بلکې عرفي معنی ترینه مراد ده چې تکمیل د اصولو دی، او تر قیامته پورې لا محدود جزئیات د دې اصولو لاندې داخل دي.

دوهم: دین د منصوصاتو نوم دی او فقه د اجتهادیاتو نوم دی په فقه کې د دین توضیح ده لکه خزانه مکمله وي خو د دې خزانې څخه جواهرات وخت په وخت را ایستلی شي.

## (۱۰) اعتراض: صاحبین ولې د امام صاحب سره اختلاف کوي؟

غیر مقلدین وائي چې په فقه کې له امام صاحب سره صاحبین (امام ابو یوسف او امام محمد) اختلاف ولې کوي؟ او بعضې لیکي چې فقه خو ټوله صاحبینو ورانه کړې ده؟

(۱) جواب: صاحبین هم مجتهدین فی المذهب وو او یو مجتهد ته له بل مجتهد سره اختلاف کول جائز دي، که دا اختلاف د مجتهدینو د دین ورانول وي نو بیا د سلیمان او داود علیهما السلام په مابین کې یوه اختلافي مسئله راغله الله تعالی چې فرمائي [فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ] نو ایا بیا دلته هم سلیمان علیه السلام د داود علیه السلام دین وران کړو؟ نو په اصولو او کلیاتو کې د دوي په مابین کې اختلاف نه شته بیا د یو اصل لاندې مختلف جزئیات وي یو مجتهد یو ته راجح ویلی وي او بل مجتهد بل ته راجح ویلی وي، نو مونږ په اصولو او کلیاتو کې د حنفیت څخه نه وزو بیا په جزئیاتو کې کله یو مفتي به وي او کله بل، د دې مسئلې تفصیل د پوښتنو په اخر کې د تقلید په درجاتو کې را روان دی.

(۲) جواب: د صاحبینو ټول اقوال په حقیقت کې د امام صاحب اقوال دي، علامه شامي درد محتار په مقدمه کې لیکي چې که په یوه مسئله کې یو قول د امام صاحب یعني د استاد راغلو، او بل قول د د شاګرد راغلو نو د غه د شاګرد قول په اصل کې د استاد قول دی، شاګرد ته ئي نسبت صرف د موافقت د رأې له وجې کیږي بیا په فتاوی ولوالجیه باندې حواله ورکوي او فرمایي چې:

په فتاوی ولوالجیه کتاب الجنایات کې لیکي چې (قال ابو یوسف رحمه الله ماقلت قولاً خالفتُ فِيْهِ أَبَا حَنِيْفَةَ رحمه الله الا قَوْلاً قَدْ كَانَ قَالَهُ) یعني امام أبو یوسف فرمائی چې ما هیڅکله له امام صاحب سره مخالفت په یو قول کی هم نه دی کړی مګر مخکی دا قول د امام صاحب وو (زما صرف د رأی موافقت ورسره راغلی دی) (رد محتار ج۱ صفحه ۱۵۹) مطلب (صح عن الامام انه قال اذا صح الحدیث فهو مذهبی.

## (۱۱) اعتراض: غير مقلدين داامامانو يو څو اقوال ليکي او وائي چې امامانو خپله له تقليد کولو څخه منع کړي ده؟

جواب: ابن تيميه رحمه الله ليکي چې ( منع الأئمة عن التقليد انما هو فى حق القادر على اخذ الاحكام عن الادلة) يعنى امامانو چې کوم منعه دتقليد څخه کړي ده هغه دمجتهدينو په باره کي ده، چې مجتهدين دې دبل چا تقليد نه کوي بلکه خپل اجتهاد دې کوي( فتاوى ابن تيميه جـ ۲ صفـ ۲۰۳) علامه سمهودي رحمه الله فرمايي چې: وقال الصيدلاني وانما نهى الشافعي رحمه الله عن التقليد لمن بلغ رتبة الاجتهاد فاما من قصرعنها فليس له الا التقليد، العقدالفريد صـ(۵۷) امام شافعي رحمه الله هغه خلک دتقليد څخه منع کړي دي چې مرتبې د اجتهاد ته رسيدلي وي او غير مجتهد ته دتقليد څخه خلاصى نشته او دعقدالفريد په تعليق کې ليکي چې: قال الحافظ ابن عبدالبر فى الجامع (۲ – ۹۸۹) بعد ذکر الاقوال الدالة على منع التقليد وهذا کله لغير العامة فان العامة لابد لها من تقليد علماء ها عند النازلة تنزل بها لانها لاتتبين موقع الحجة ، ولاتصل ، لعدم الفهم الى علم ذلک، لان للعلم درجات لاسبيل منها الى اعلاها الا بنيل اسفلها وهذا هو الحايل بين العامة وبين طلب الحجة ، والله اعلم ، ولم يختلف العلماء ان العامة عليها تقليد علماءها وانهم المرادون بقول الله تعالى فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لاتعلمون واجمعوا على ان الاعمى لابد له من تقليد غيره ، عقدالفريد صـ ۵۵)

فى مقدمة اعلاء السنن، واما قوله ان الشافعى نهى عن تقليده وعن تقليد غيره فمحمله هو المجتهد الذى يعرف الصحيح من السقيم کما يدل عليه قوله لينظر فيه لدينه ويحتاط لنفسه لان من لايقدر على الاجتهاد کيف ينظر لدينه ويحتاط لنفسه وانما هو کحاطب ليل يظن الافعى حطبا فيأخذ فيلدغه، ولوکان التقليد منهيا عنه ما افتى المفتون بل قالوا للمستفتى اجتهد کما نجتهد واعلم الحکم من الأدلة الشرعية ولاتسألنا ومعلوم أنه لم يکن کذلک فى قرن من القرون بل کان ناس يستفتون وناس يفتون فعلم منه ان مسلک التقليد متوارث من السلف ومسلک الاجتهاد لغير المجتهد محدث ابتدعها الجهال الذين کحاطب ليل بظنهم غير الحجة حجة والا فهى حطبا والعجب انهم ... فى ترک التقليد آه(مقدة اعلاء السنن

قواعد فی علوم الفقه صـ ۲۲، ج ۲ الاحتجاج علی بطلان التقلید باقوال الائمة ثم الجـواب عنـه ،ط ادارة القرآن کراچی)

## (۱۲) اعتراض: چې امام صاحب ښپله فرمائي( اذا صح الحدیث فهو مذهبی)

یعنی چې کله حدیث صحیح وي نو دا زما مذهب دی، همدارنګه نور امامان هم وائي، چې که زمونږ مسئله د حدیث څخه خلاف وه نو پر دیوال ئي ووله، نو پر حدیث باندې عمل کول پکار دي نه د امام صاحب په مسئله باندې؟

جواب: دا خطاب مجتهد ته دی: ۱-د دې مثال دارنګه دی چې یو سپیشلسټ ډاکټر تاته دوایي در کړي، او درته ووائي چې که څما دوائي غلطه وه نو په دیوال ئي ووله، اوس په کوڅه کې تاته یو چولې فروش ووائی چې لما سره د طب کتابونه شته دا دوائي خو ئي غلطه در کړي ده، نو ته یې بیرته هغه ډاکټر ته ویسې او ورته ووایې چې دا دوائي خو هغه چولي فروش وائي چې غلطه ده نو ډاکټر به درته ووائي چې احمقه ! بل ډاکټر ته یې وروړه چولې فروش په څه پوهېږي؟

۲-همدارنګه دا خطاب څکه مجتهد ته دی چې اذاصح الحدیث فهو مذهبی مطلق ندی بلکې دامام صاحب د فقهې د تتبع څخه وروسته پکې یو څو قیده رامعلومیږي ، (۱)اذاصح الحدیث فهو مذهبی اذالـم یکـن منسوخا.

مثلا د الوضوء ومامست النار په باره کې صحیح حدیث شته لکن بیاهم وضوء ممامست النـار دامام صاحب مذهب ندی، څکه چې د وضوء ممامست النار احادیث منسوخ دي.

(۳)اذاصح الحدیث فهومذهبی اذالـم یکـن فی مقابلـه حـدیث صـحیح اخـر مثلاپه صحیح البخاري کې صحیح حدیث دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د أحد دشهیدانو جنازه ونکړه بیاهم دادامام صاحب مذهب ندی، څکه چې د دې حدیث په مقابل کې نور صحیح احادیث دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د أحد دشهیدانو جنازه کړیده.

(۴)اذاصح الحدیث فهومذهبی اذالم یکن مخصوصآ بفرد .

مثلاً په صحيح حديث کې دابو برده بن نيار رضى الله عنه لپاره ديو کلني چيلي (اوزې) ځخه په کمې د قربانۍ اجازت ورکړل شوى دى، خو بيا هم دا دامام صاحب مذهب ندى، ځکه چې دا ددې صحابي خصوصيت وو نبى کريم صلى الله عليه وسلم ورته فرمايلى ووچې:لا تجزء جزعة عن احدٍ بعدک.

همدارنګه نور قيودات هم شته او پدى مجتهد پوهيږي، لهذا محمدعوامه رح فرمايي چې د اذاصح الحديث معنى داده چې:اذاصلح الحديث للعمل به فهو مدهبى - اثرالحديث الشريف وشرح رسم المفتى ص ٤٢ المطبوعه فى ضمن مجموعه رسايل، تهذيب الاسماء واللغات ج١ ص٥١

او کوم حديث صالح للعمل دى؟ نو پدې مجتهد پوهيږي.

٥-وفى رسائل ابن عابدين فقد صح عن ابى حنيفة انه قال اذا صح الحديث فهو مذهبى وقدحكى ذلک الامام ابن عبدالبر عن ابى حنيفة وغيره من الائمة ، انتهى ونقله ايضا الامام الشعرانى عن الاربعة قلت ولا يخفى ان ذلک لمن كان اهلا للنظر فى النصوص ومعرفة محكمها من منسوخها ، (مجموعة رسائل ابن عابدين ج ١صـ ٢٤)

مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله فرمايي : مجتہدین کے اس قول کے مخاطب وہ لوگ نہیں جن کو قوت اجتہاد حاصل نہو ورنہ آن کا یہ قول والااحادیث مجوزہ تقلید کے معارض ہوگا جو مقصد اول میں گزر چکی ہیں (الاقتصاد ص—٦٠، جواب شبہ منع مجتہدین از تقلید)

امام نووي رحمه الله فرمايي: عن الشافعى انه قال اذا وجدتم فى كتابى خلاف سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم فقولوا بسنة رسول الله صلى الله عليه وسلم و دعوا قولي الخ قال النووي وهذا الذى قاله الشافعى ليس معناه أن كل أحد رأى حديثا صحيحا قال هذا مذهب الشافعى وعمل بظاهره وانما هذا فيمن له رتبة الاجتهاد فى المذهب (مقدمة اعلاء السنن ، قواعد فى علوم الفقه صـ ٢٩٠، ج٢٠، الفائدة الحادية عشر فى مسائل شتى تحقيق فى قول الايمة اذا صح الحديث فهو مذهبي.

## (١٣) اعتراض:غير مقلدين وائي چې امام صاحب چرته ويلي دي چې زما تقليد وکړي؟

جواب: په کفايه شرح الهدايه کتاب الصوم کې يئ د امام صاحب رحمه الله قول رانقل کړی دی چې(واذا كان المفتى على هذه الصفة فعلى العامي تقليده وان كان المفتي اخطأ فى ذالک هكذا روي الحسن عن ابي حنيفة رحمه الله) اوپه هداية الصلوة ج ١ باب ما يوجب القضاء والكفارة صف٢٢٦ کې فرمايي: على العامي الاقتداء بالفقهاء لعدم الاهتداء في حقه الى معرفة الأحاديث ، مولانا عبدالحی رحمه الله د شمس الأيمه الحلواني رحمه الله په ترجمه کې د امام صاحب دا قول رانقل کړی دی چې: (وقد رُوِىَ عن الامام الاعظم جواز تقليد المجتهد بمن هو اعلم منه) التعليقات الثنية ص (٩٦).

د دې مذکور سوال مثال داسې دی لکه يو ډاکټر چې هسپتال جوړ کړي مشينان راوړي، او تيسټ خانې جوړې کړي، او اعلی مرتبه ډاکټران راولي : اوس يو احمق وائي چې زه خو ناجوړه يم خو هسپتال ته نه ورځم ځکه چې ډاکټر ماته ندي ويلي اعلان ئې ندی کړی چې زما هسپتال ته راشئ، نو دا مريض ډير احمق دی ځکه چې ډاکټر هسپتال د همدې دپاره جوړ کړی چې د مريضانو علاج پکې وکړي، نو امام صاحب چې د خپل تقليد څخه منع کوله نو بيا يې اجتهاد ولې کولو؟ او اجتهاديات يې ولې مدون کول؟

## (١٤) اعتراض: په دې څلورو مذهبو کې کوم مذهب حق دی ؟ اودحق څه معنی ده؟

غير مقلدين وايي چې کله په يوه مسئله کي د څلورو امامانو اختلاف راشي نو په دوي کي به يو پر حق وي ځکه چې حق يو وي او تاسو وايي چې څلور واړه مذهبونه حق دي.

قلنا: يو لک او څليرشت زره کم او زيات پيغمبران څرنګه حق دي حق خو يو وي؟ که ته وايئ چې هلته د ناسخ او د منسوخ اختلاف دی نو زه وايم چې دلته د راجح او د مرجوح اختلاف دی نو چې د ناسخ او د منسوخ د اختلاف په صورت کې يو لک او څليرشت زره په حقه کيدی شي نو د راجح او د مرجوح د اختلاف په صورت څلور څرنګه نه شي په حقه کيدلی؟ که غير مقلد ووايي چې هلته خو د زمانو اختلاف دی نو زه وايم چې دلته د علاقو اختلاف دی که غير مقلد ووايي چې يو کيلاس دی د څلور کسانو پکې اختلاف راشي يو

ورته ګیلاس وایي، بل ورته کتاب وایي بل ورته قلم وایي بل ورته کوزه وایي نو دلته خو څلور واړه نه شي په حقه کیدلی، بلکې څوک چې ورته ګیلاس وایي دا په حقه دی او نور درې واړه په باطله دي؟

قلنا: یو محسوسات دي دوهم منصوصات دي دریم عقاید دي او څلورم اجتهادیات دي په محسوساتو کې د اختلاف په صورت کې یو حق او نور باطل وي، لکه په اعتراض کې په ذکر شوي مثال کې چې چا ورته ګیلاس ویلو هغه حق وو او نور درې واړه باطل وو محسوسات بدیهات دي او په منصوصاتو کې هم یو په حق وي او نور باطل وي د چا سره چې نص وي هغه حق دی او نور باطل دی، په عقائدو کې د اختلاف په صورت کې هم یو حق او نور باطل وي لدې وجې اهل سنت والجماعت حق دي او نور (۷۲) ډلې باطلې دي او په اجتهادیاتو کې څلور واړه حق کیدلی شي اجتهادیات نظریات وي دلته د حق معنی داده چې د هر یو عمل صحیح دی شرعاً لکه د څلورو کسانو څخه چې قبله ورکه وي او څلور واړه په خپلو اجتهادونو څلور طرف ته لمونځ وکړي، یو مشرق ته بل مغرب ته بل شمال ته بل جنوب ته نو څلور واړه حق دي، یعنې د هر یو عمل صحیح دی شرعاً د هر یو لمونځ وشو اګر چې په نفس الامر کې یو صواب او نور درې واړه خطاء دي، نو د څلورو امامانو چې په یوه اجتهادي مسئله کې اختلاف راشي او د څلورو امامانو څلور اجتهادونه شي نو د هر یو عمل په شریعت کې صحیح دی الله تعالی ورباندې اجر ورکوي اګر چې په نفس الامر کې به یو ثواب او نور درې خطاء وي خلاصه دا چې حق کله په مقابل د باطل کې راځي، او کله په مقابل د خطا کې راځي، نو کله چې مونږ وایو چې څلور واړه مذهبونه حق دي نو دلته حق په مقابل د باطل کې دی، یعنې د ټولو عمل صحیح دی شرعا څلور واړه مذهبونه باطل نه دي بلکې ټول ثواب یافته دي، او کله چې د څلورو مذهبونو په خپل منځ کې یو ته حق وایو نو هلته بیا حق په مقابل د باطل کی ندی بلکه حق په معنی د صواب سره په مقابل د خطأ کې دی، دا مطلب چې یو به صواب او دا نور به خطأ وی کوم چی صواب وي هغوي ته به الله تعالی دوه اجره ورکوي، او کوم چی خطأ وي هغوي ته به الله تعالی یو اجر ورکوي، نو څلور واړه په حقه دي یعنې عمل یې صحیح دی شرعا او ثواب یافته دی او بیا پخپل مابین کې یو صواب او نور خطا وي.

عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ.وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ [رواه البخاري رقم : ٧٣٥٢ في باب أَجْرِ الْحَاكِمِ إِذَا اجْتَهَدَ فَأَصَابَ ، أَوْ أَخْطَأَ.و مسلم ج٢ ص ٧٦ رقم : ٤٥٨٤ ، سنن أبي داود رقم: ٣٥٧٦ ، سنن الترمذي رقم: ١٣٢٦ و قال الشيخ الألباني : صحيح]

يعني كله چې حاكم حكم وكړي پس اجتهاد وكړي بيا حق ته ورسيږي پس د ده لپاره دوه اجره دي او چې كله حاكم حكم وكړي پس اجتهاد وكړي بيا خطاء شي نو د ده لپاره يو اجر دى، وګوره دلته يو ته صواب او بل ته خطا ويلي شوي دي.

## (۱۵) اعتراض: غير مقلدين وايي چې مونږ اهل الحديث يو او په قرآن او په حديث باندې عمل كوو ولې په قران او په حديث باندې عمل كول څه بد كار دى؟

۱-په مكمل قرآن او مكمل سنت باندې عمل كول ښه كار دى او په نيم قران عمل كول او په نيم قرآن عمل نه كوي همدارنګه په نيم سنت عمل كول او په نيم سنت عمل نه كول بد كار دى او ويكټوري اهلحديث نيم قران او سنت مني او نيم نه مني، ځكه چې په قران او سنت كې دوه قسمه مسايل دي اول منصوصات دوهم اجتهاديات، ويكټوري اهلحديث اجتهاديات نه مني، نو دمقلدينو او ويكټوري اهلحديثو په مابين كې فرق دادى چې مقلدين ټول قرآن او سنت مني او ويكټوري اهلحديث يې نيم مني او نيم نه مني.

دوهم جواب: تا وويل چې مونږ اهل حديث په قران او په حديث باندې عمل كوو او دا څه بد كار دى؟ زه درته وايم چې دا اوس چې مى درته شپږ (۶) آيتونه او بې شميره احاديث د تقليد دوجوب لپاره پيش كړل، نو ته په دې باندې ولې عمل نه كوئ؟ كه خو ستا په قران او په حديث باندې عمل نه كول دي. ددې داسې مثال دى لكه يو سړى چې وائي چې زه قرآن منم او په قران كې چې كومه اجماع او قياس راغلى دى هغه نه منم، نو دا خو د قران او د حديث نه منل شو، نو تاسو دروغ وائي چې مونږ په قران او په حديث باندى عمل كوو.

دريم جواب: كه كوم ويكټوري اهلحديث وايي چې زه اجتهديات هم منم او عمل پرې كوو، نو بيا جواب دادى چې مكمل قران او سنت منل او عمل ورباندې كول ښه كار دى لكن دفقهاوو د تشريح مطابق او ويكټوري اهلحديث په قران او سنت د عمل كولو دعوه كوي لكن دسفهاوو دتشريح مطابق نو د مقلدينو او دويكټوري اهلحديثو په مابين كې فرق دفقهاوو او دسفهاوو دى، دفقهاوو تشريح مطابق په قران او سنت عمل كول ښه كار دى او د سفهاوو د تشريح مطابق بد كار دى، لكه دطب كتابونه دي او درې بيماران ترې نه علاج كوى يو بيمارئي په خپل سر كوي بغير له رهنمائي د ډاكټر

شخه او خپله هم د اکټر نه دی نو دا بد کار دی ،او بل بيمار د ډاکټر په رهنمائي کی علاج کوي دا ښه کار دی: او بل ئی ديو مداري په رهنمائي کې کوي نو دا هم بد کار دی اګرچې درې واړو خپل علاج د طب له کتابونو شخه وکړو، همدارنګه په غيرو واضحو او اجتهادي مسائلو کې په قرآن او په حديث باندې عمل کول که دمجتهد په رهنمائي کې وي نو دا ښه کار دی او که دمجتهد په رهنمائي کې نه وي او يا دغير مجتهد په رهنمائی کې وي مثلاً دلامذهبه اهل حديث بلکې دلامذهبانو مشر کتهري هندو په رهنمائي کې نو دا بد او خطرناک کار دی، نو دمجتهد له رهنمائي شخه بغير عمل کول داسې دی لکه چې يو سړي اودس مات کړو او بيائي وتر لمونځ شروع کړو، يو چا پوښتنه ورشخه وکړه چې تا خو اوس اودس مات کړو وتر شنګه کوي ؟نو هغه وويل چې ولې په حديث کي نه دی راغلي چې (من استجمر فليوتر)نو دابې وقوفي ده، همدارنګه په صحاح سته وواو په قرانکريم باندی په غير واضحو مسائلو کې عمل کول بغير دمجتهد د راهنمايې شخه ګناه ده وان اصاب.(نووي شرح مسلم ج۲ ص۷٦)

**اعتراض:** غير مقلدين وايي چې په قرآنکريم کې الله تعالى فرمائي {وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَاتَفَرَّقُوا} نو دين خو يو دی او شلورو امامانو پکې شلور حصې شلور ټوټې جوړې کړې؟

جواب: په دين او مذهب کې فرق دی دين دمنصوصاتو نوم دی او منزل دی او مذهب د اجتهادياتو نوم دی، شاه عبد العزيز رحمه الله په تحفه اثناعشريه کيد هشتاد پنجم کې ليکي چې روافض په دين او مذهب کې فرق نه کوي او أهل سنت والجماعة پکې فرق کوي، نو په منصوصاتو او دين کې افتراق وي يو فرقه حقه او نورې باطلې وي او په مذهبونو او اجتهادياتو کې اختلاف وي، همدارنګه په اختلاف او په افتراق کي فرق دی : اختلاف دېته وايي چې مقصد يو وي او لارې بدلې وي ، افتراق دېته وايي چې لارې هم بدلې وي او مقصد هم بدل وي نو ددې شلورو امامانو منزل او مقصد يو دی صرف لارې ئي جدا دي نو دا افتراق نه دی بلکې اختلاف دی په همدې جواب سره د دوي يو بل اعتراض هم دفع شو چې وائي په محمد صلى الله عليه وسلم باندې خو يو دين نازل شوی وو شلور دينونه خو نه وو ؟نو جواب ئی وشو چې دين يو دی صرف لارې يې جدا دي.

دوهم الزامي جواب: لامذهبيان چې د افتراق په بهانه باندې مذهبونه پريدي نو بيا پخپله ولې مختلفې فرقې جوړوي؟ په لامذهبه وکتوري اهل حديثو کې ډيرې فرقې دي چې هريوه پکې بلې ته کافره وايي چې د (۲۵) اعتراض لاندې به يې تفصيل راشي ان شاء الله تعالى.

## (۱٦) اعتراض : غير مقلدين وائي چې ته ديو امام پسې ځې او زه په څلورو امامانو پسې ځم؟

الزامي جواب: ته خو تقليد ته شرک وايي نو زه چې په يو امام پسې ځم ماستا په فتوه يو شرک وکړو او ته چې په څلورو پسې ځي نو تا خو بيا څلور شرکه وکړل.

دوهم جواب: مونږ وايو (تتبع الرخص او تلفيق) اجماعاً حرام دی، چې په يوه مسئله کې په يو مجتهد پسې ځې او په بله مسئله کې د بل مجتهد په رأيه عمل کوې. علامه ابن تيميه فرمايي: ( فيكون فى وقت يقلدون من يفسده و فى وقت يقلدون من يصححه بحسب الغرض والهوى و مثل هذا لا يجوز باتفاق الائمة) [ مجموعة الفتاوى /۳۲ / ص ٦٦ / مكتبة العبيكان].

يعنې په داسې صورت کې به په يو وخت کې د هغه چا پسې روان وي چې دده اصلاح به کوي او په بل وخت کې به د هغه چا پسې روان وي چې دده افساد به کوي او د ټولو امامانو په اتفاق سره دا کار حرام دی.

همدارنګه ليکي چې: لان ذلک يفتح باب التلاعب بالدين و فتح للذريعة الى ان يكون التحليل والتحريم بحسب الهوى، و لو جاز هواه، و يتخير بين التحليل والتحريم والواجب والجواز، و ذلک يؤدى الى انحلال ربقة التكليف، بخلاف العصر الاول فانه لم تكن المذاهب وافيه باحكام الحوادث مهذبة فعلى هذا يلزمه ان يجتهد فى اختيار مذهب يقلده على التعين [شرح المهذب / فصل فى اداب المستفتى / ج ۱ / ص ۸۸ / دار الفكر بيروت].

په يوه مسئله کې د يو امام پسې او په بله مسئله کې د بل امام پسې روانېدل په دين باندې لوبې دي، او دا دې لپاره ذريعه ده چې هر سړی تحليل او تحريم د خپل خواهش تابع کړي. او که چېرته دا جايز

شي چې د هر سړي چې د هر مذهب کومه مسئله خوښه وي په هغې دی عمل کوي نو بيا به يو سړی په يوه مسئله کې د يو مذهب د رخصت او په بله مسئله کې به د بل مذهب په رخصت پسې ګرځي او د حلالو او د حرامو، د جايزو او د ناجايزو په منځ کې به په خپل خواهش يو طرف خوښوي. او داسې کار کول د مکلفيت څخه خارجېدلو ته مفضي کېږي. په خلاف د عصرِ اول څخه، چې هلته به غير مجتهد په يوه مسئله کې د يو مجتهد او په بله مسئله کې به د بل مجتهد پسې تللو، ځکه چې هلته مذهبونه مُدَوّن نه وو او په هر مذهب کې به د ټولو حوادثو حل نه پيدا کېده، نو له دې امله په هر سړي لازمه ده چې د يو مُعيّن مذهب په غوره کولو کې کوښښ وکړي.

همدارنګه علامه شاطبي رحمه الله فرمايي: (ومتى خيرنا المقلدين فى مذاهب الائمة لينتقوا منها اطيبها عندهم لم يبق مرجعاً الا اتباع الشهوات فى الاختيار و هذا مناقض لمقصد وضع الشريعة.) [الموافقات / ج ٤ / ص ٨٢ / المسئلة الثالثة فى بيان ان الشريعة كلها ترجع الى اقوال، واحدة فى الفروع / مكتبة محمد على صبيح ازهر].

هر کله چې مونږ مقلدينو ته اختيار ورکړو چې د هر مذهب څخه د خپلې خوښې مطابق مسئلې راټولې کړي، نو بيا به د مسلمانانو له پاره بله مرجع پاتې نه شي، ماسوا د اتباع د خواهش څخه او دا کار د مقصد د وضع د شريعت سره نقيض دی.

همدارنګه علامه شاطبي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: (وقد حكى ابن حزم الاجماع على ان ذلك (اى تتبع الرخص فى المذاهب) فسقٌ لا يحل [ الموافقات / ج ٤ / ص ٨٤ / المسئلة الثالثة ]. يعنې ابن حزم رَحِمَهُ اللَّهُ په دې باندې اجماع رانقل کړې ده چې په مذهبونو کې آسانه آسانه مسئلې راټولول فسق او حرام دی.

علامه مناوي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : (ان مثل هذه الالتزامات لكف الناس عن تتبع الرخص). [فتح القدير/ ج ١/ ص ٤٠٣ / مكتبة نزار مصطفى باز ]. يعنې په خاصو خاصو مذهبونو باندې د پابندۍ لازمول د دې له پاره دي چې خلک د رخصتونو له لټولو څخه رابند کړو.

دريم جواب: دا دروغ دی چې ته وائې چې زه د څلورو واړو امامانو پسې ځم: که نه نو ته د هدايې يا د يو بل کتاب د يوې صفحې يا د دوه صفحو په لسو يا شلو مسئلو کې څلور واړه مذاهب بيان کړه او بيا چې په کوم پسې ځې د هغه وجه د ترجيح را ته وښايه(ديده بايد).

## (۱۷) پوښتنه : دچا تقليد واجب دی؟

جواب: په اجتهادياتو يعنې غير واضحو مسايلو کې د مجتهد تقليد واجب دی.(۱)

مقلدين چې د مجتهد په بيان شوي مسئله عمل وکړي نو داسې دې نه وايي چې داد فلان امام خپله ذاتي رايه ده بلکې داسې دې وايي چې فلانی امام ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول الله ﷺ مراد داسې ښکاره شوی دی. كَمَا يُقَالُ اَلْقِيَاسُ مُظْهِرٌ لاَمُثْبِتُ (۲)

يعنې په قياس باندې مسائل نه جوړيږي، بلکې په قرآن او په سنت کې چې کوم مسائل پټ دي، نو مجتهد يئ د اصولو شرعيه وو په مدد سره را ظاهروي، لکه کوهي ويستونکی چې او به نه راپيدا کوي، بلکه الله جَلَّ جَلَالُهُ چې کومې او به د زمکې لاندې پټې کړي دي هغه راښکاره کوي.

او س مجتهدينو ته شريعت ساز ويل داسې جهالت دی، لکه د کوهي وېستونکي ته چې خالق الماء ويل جهالت دی، لکه څرنګه چې د حساب د قواعدو څخه کوم جواب راوزي د ېته د حساب جواب وايي، د حساب دان ذاتي رايه ورته نشي ويل کيدای. نو همدارنګه د فقهې په کتابونو باندې عمل کول د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول الله ﷺ د حکم منل دي، ځکه ټول مجتهدين اعلان کوي چې مونږ اول فيصله په کتاب الله کوو که هلته پيدا نه شوه بيا يې په سنت د رسول الله ﷺ کوو، که هلته پيدا نشوه بيا يې د صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ په اجماع کوو، که هلته پيدا نه شوه بيا پکې اجتهاد کوو، کما قاله الامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ(۲).

---

۲ - نورالانوار ص۲۲۸.

۳ - عقود الجمان ص۷۲ و ص۷٦ تاريخ بغداد ج۳ ص۳۳۹.

## (۱۸) پوښتنه: تقليد په چا واجب دی يعنې مقلد به څوک وي؟

جواب: علامه امدی رحمه الله فرمائی: (والعامي ومن ليس له اهلية الاجتهاد وان كان محصلاً لبعض العلوم المعتبرة في الاجتهاد يلزمه اتباع قول المجتهدين والأخذ فتواه عند المحققين من الاصوليين ومنع من ذلک بعض معتزلة البغدادين .(۱).

ترجمه: يعنی دعلومو دينيه وسره نابلده او هغه څوک چې علوم دينيه ئی حاصل کړي وي لکن داجتهاد اهليت پکې نوي په هغه باندې دمجتهد تقليد واجب دی، مفتی صدرالدين چې دنواب صديق حسن خان استاذ دی ليکي چې (وشخصی عامی بلکه عالم رانيز که بمرتبه اجتهاد نه رسيده باشد تقليديکی ازمجتهدان واجب است). تنبيه الضالين صـ (۴۵)

۴۵. علامه نورالدين على بن عبدالله بن احمد السمهودي الحسيني الشافعي رحمه الله ليکي چې: يجب التقليد على من لم يبلغ رتبة الاجتهاد المطلق، عاميا محضا او غيره، ولو بلغ رتبة الاجتهاد فى بعض مسايل الفقه او بعض ابوابه كالفرايض قلد فيما لايقدر على الاجتهاد فيه، بناء على القول بتجزء الاجتهاد هو الراجح، وقلد مطلقا بناءً على المرجوح وهو أنه لايتجزأ. عقد الفريد في احكام التقليد (۴۵) څوک چې داجتهاد مطلق مرتبې ته نه وي رسيدلی په هغه باندې تقليد واجب دی بيا برابره خبره ده چې خالص عامي وي او که اصطلاحي علوم يئ حاصل کړي وي او که يو سړی په بعضې مسايلو فقهيه وو کې مجتهد وي او په بعضو کې نه وي، نو بيا په دې کې اختلاف دې مرجوح قول دادی چې په اجتهاد کې تجزيه نه رائحي لهذا دا به هم په ټولو مسايلو کې تقليد کوي او راجح قول دادی چې په اجتهاد کې تجزيه رائحي لهذا داسې سړی به په هغو مسايلو کې تقليد کوي په کومو کې چې مرتبې داجتهاد ته نه وي رسيدلی، او دعقدالفريد په تعليق کې ليکي چې: قال الحافظ الذهبي رحمه الله في سير اعلام النبلاء (۱۸- ۱۹۱) عند ذكر ترجمة ابن حزم بعد نقل قوله (انا اتبع الحق، واجتهد، ولا اتقيد بمذهب) من بلغ رتبة الأجتهاد، وشهد له بذلک عدة من الأيمة لايسع له ان يقلد كما ان الفقيه المبتدئ، والعامي الذي يحفظ القرآن او أكثر منه لايسوغ له الاجتهاد ابداً، فكيف يجتهد؟ وما الذي يقول؟ وعلام يبني؟ وكيف يطير ولما يريش؟ عقدالفريد صـ ۵۵)

خلاصه: دا چې ابن حزم رحمه الله فرمايلي دي چې زه دحق تابعداري کوم او اجتهاد کوم او د يو مذهب پابندي نه کوم، نو علامه ذهبي په ده باندې اعتراض کوي چې: څوک چې مجتهد وي او دده په

---

۱- الاحکام فی اصول الاحکام ج ۴ ص ۱۹۷ وکذلك فی اتحاف ذوی البصاير ص ۶۳۰.

مجتهد والي باندې امامان شاهدي ووايي نو دده لپاره د تقليد ګنجايش نشته لکه د مبتدي فقيه لپاره او دهغه عامي لپاره چې ټول قرآن يې يادوي او يا اکثر قرآن يې يادوي هيڅکله اجتهاد کول نه دي جايز او داسې سړی به څرنګه اجتهاد کوي؟ څه به وايي؟ په څه شي باندې به بنا کوي؟ او چې ترا وسه پورې وزرې نه لري نو څرنګه به اوليزي؟ صـ ۵۵)

وفى شرح جمع الجوامع رحمه الله والاصح أنه يجب على العامى وغيره ممن لم يبلغ رتبة الاجتهاد التزام مذهب معين من مذاهب المجتهدين الخ (خلاصة التحقيق فى بيان حكم التقليد والتلفيق صـ ٦، ط استنبول تركيا) وفى الملل والنحل واما العامى فيجب عليه تقليد المجتهد الخ (كتاب الملل والنحل للعلامه ابو الفتح محمد بن عبدالكريم الشهرستانى صـ ١٨٦ ج ١، حكم الاجتهاد والتقليد الخ ط مكتبة الانجلو المصريه)

**خلك په درې قسمه دي:**

اول: مجتهدين، چې په دين کې ترېنه په اولوالالباب، فقهاء، اهل استنباط، او اولو الابصار سره تعبير کېږي. دوي ته الله تعالى حکم کوي: فَاعْتَبِرُوْا يٰاُولِي الْاَبْصَارِ. اى د بصيرت خاوندانو قياس وکړئ د دې حکم مطابق په مجتهد باندې اجتهاد واجب دی.

دويم: هغه خلک دي چې د اجتهاد اهل نه دي، هغوی ته الله ﷻ حکم کوي: فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ. يعنې که تاسو نه پوهېږئ نو د اهل ذکر (مجتهدينو) څخه پوښتنه وکړئ.

صاحب د توضيح فرمايي: الاستفتاء طلب الحكم الشرعي هكذا في كنزاللغات فيكون مرادفاً للتقليد في علم الاصول. نو تقليد په هغه چا واجب دی چې څوک خپله قياس او اجتهاد نه شي کولی.

دريم قسم: هغه خلک دي چې نه پکې خپله د اجتهاد اهليت شته او نه د مجتهدينو تقليد کوي د دوئ په باره کې الله ﷻ فرمائي: اُولٰئِكَ كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ دا خلک د چارپايانو څخه هم بد تر دي،

خلک به په قبر کې د قیامته پورې ملائکې په ګرزونو باندې وهي او ورته وايي به: (لَادَرَیْتَ وَلَاتَلَیْتَ) (۱).

نه خپله صاحب د درایت او پوهې وې او نه دې د کوم صاحب درایت او پوهې تقلید کړی دی، یعنې مجتهد وې او نه مقلد وې او چې کله د قبرونو څخه را اوچت شي الله جَلّ جلاله به یې سیده د جهنم په لور روان کړي، او دوي به چیغې وهي: لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِيْ أَصْحٰبِ السَّعِيْرِ.

که مونږ (دعقل والا وو مجتهدینو خبره) اورېدی (تقلید مو کولای) یا خپله صاحب دعقل (مجتهد) وی نو نن به په دوزخ کې نه سوزېدو ځکه دنجات دوه لارې دي، یو دا چې انسان خپله مجتهد وي، دوهم دا چې دبل مجتهد مقلد وي. (تفسیر عزیزي او تفسیر حقاني) علامه سمهودي رحمه الله وايي چې: وقال قوم من القدرية: يلزم العوام النظر في الدليل او اتباع الامام المعصوم وهو باطل باجماع الصحابة فانهم كانوا يفتون العوام، ولا يأمرونهم بنيل درجة الاجتهاد، كما هو معلوم بالضرورة والتواتر عنهم، (العقد الفريد صـ (٥٦) يعنې قدريه (چې نبي صلی الله علیه وسلم ورته ددې امت مجوس ویلي دي هغوي) وايي چې په عوامو یعنې غیر مجتهدینو باندې لازمه ده چې یا دې په مسئله باندې وروسته د نظر فی الدلیل څخه عمل کوي او یا دې د معصوم امام پیروي کوي او د قدریه وو خبره په اجماع د صحابه وو باندې باطله ده، ځکه چې صحابه وو رضی الله عنهم به عوامو ته فتوی ورکولې او ددې امر به یې ورته نه کولو چې ځانونه مرتبې د اجتهاد ته ورسوئ لکه څرنګه چې دا خبره په اجماع او په تواتر سره ثابته ده.

## (۱۹) پوښتنه: د مجتهد او د مفتي شرائط کوم دي؟ او ایا مجتهد دبل چا تقلید کولی شي؟ او ایا مقلد فتوی ورکولی شي؟

جواب: مخکې د تقلید د وجوب لپاره په قرآني دلایلو کې د دریم دلیل لاندې یو څه تفصیل شوی دی، یو څه بیان به دلته هم وکړو، د اجتهاد پنځه شرائط دي ۱- بقدر الضرورة معرفة اللغة العربية ۲-

---

۱

معرفة تفسير القران خصوصا ما يتعلق بالاحكام ٣- معرفة الاحاذيث بمتونها واسانيدها واحوال الرواة ٤- معرفة مواقع اجماع الصحابة والتابعين وتبع التابعين، ٥- معرفة مواضع الاقيسة ووجوه القياس ، قال الامام فخر الاسلام على بن محمد البزدوى الحنفى رحمه الله اما شرطه اى الاجتهاد فان يحوى علم الكتاب بمعانيه وعلم السنة بطرقها ومتونها ووجوه معانيها وان يعرف وجوه القياس آه (كنز الوصول الى معرفة الاصول المسمى به اصول البزدوى صـ ٢٧٨، باب معرفة احوال المجتهدين، ط، مير محمد كتب خانه كراچى)

وفى الملل والنحل وشرائط الاجتهاد خمسة ١- معرفة قدر صالح من اللغة بحيث يمكنه فهم لغات العرب والتميز بين الالفاظ الوضعية والاستعارية والنص والظاهر والعام والخاص والمطلق والمقيد والمجمل والمفصل وفحوى الخطاب ومفهوم الكلام وما يدل على مفهومه بالمطابقة وما يدل بالتضمن الخ ٢- ثم معرفة تفسير القران خصوصا ما يتعلق بالاحكام الخ ٣- ثم معرفة الاخبار بمتونها واسانيدها والاحاطة باحوال النقلة والرواة الخ ٤- ثم معرفة مواقع اجماع الصحابة والتابعين وتبع التابعين من السلف الصالحين حتى لايقع اجتهاده فى مخالفة الاجماع ٥- ثم التهدى الى مواضع الاقيسة وكيفية النظر والتردد فيها الخ (الملل والنحل للعلامه عبدالكريم الشهرستانى صـ ١٨٠ ج ١، الباب السابع بيان شرائط الاجتهاد ، ط مكتبة الانجلو المصرية)

وفى الانصاف: وَاعْلَم أَن الْمُجْتَهد الْمُطلق من جمع خَمْسَة من الْعُلُوم قَالَ النَّوَوِيّ فِي الْمِنْهَاج وَشرط الْقَاضِي مُسلم مُكَلّف حر عدل سميع بَصِير نَاطِق كَاف مُجْتَهد وَهُوَ أَن يعرف من الْقُرْآن والسنه مَا يتَعَلَّق بِالْأَحْكَامِ وخاصه وعامه ومجمله ومبينه وناسخه ومنسوخه ومتواتر السّنة وَغَيره والمتصل والمرسل وَحَال الروَاة قُوَّة وضعفا ولسان الْعَرَب لُغَة ونحوا وأقوال الْعلمَاء من الصَّحَابَة فَمن بعدهمْ اجتماعا واختلافا وَالْقِيَاس بأنواعه( الانصاف فى بيان سبب الاختلاف لشاه ولى الله الدهلوى رحمه الله:ص: ٥١، باب حكاية حال الناس قبل المائة الرابعة. الخ، ط: هيئة الاوقاف لاهور).

**دامام بخاري رحمه الله د استاد امام احمد رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چې د مفتي شرائط کوم دي؟**

هغه ورته وفرمایل(۱) اول د قرآن کریم پوره علم (۲) دوهم کم از کم د څلورو لاکهو احادیثو صحیحه
وو علم (۳) دریم د صحابه وو او د تابعینو په فتوو باندې پوره بصیرت، په چا کې چې دا درې واړه
صفات وي هغه په خپل اجتهاد باندې فتوی ورکولی شي والافلا (۱).

نو په چا کې چې دا صفات نه وي هغوي دې د بل چا څخه فتوی غواړي او د بل مجتهد تقلید دې کوي.

۲-امام ابو حفص رحمه الله فرمایي چې کله زه په جامعه منصور کې مفتي مقرر شوم نو محدث
ابو اسحاق راته وویل: چې آیا تاته د څلورو لاکهو احادیثو شرط معلوم دی، ما ورته وویل چې هو
هغه راته وویل چې څلور لاکه احادیث دې یاد دي؟

ما ورته وویل: چې نه، هغه راته وویل چې کله تاته څلور لاکه احادیث نه دي یاد نو بیا څرنګه فتوی
ورکوې؟ امام ابو حفص رحمه الله ورته وفرمایل چې زه په خپل قول فتوی نه ورکوم بلکې زه د داسې
مجتهد په قول فتوی ورکوم چې د څلورو لاکهو څخه یې هم زیات احادیث یاد وو، یعنې د امام
ابو حنیفه رحمه الله په قول فتوی ورکوم(۲).

۳-د امام بخاري رحمه الله استاذ الاستاذ او د امام احمد رحمه الله استاذ امام شافعي رحمه الله فرمایي:
هیچا ته نه دي روا چې د الله جل جلاله په دین کې فتوی ورکړي مګر دا چې د قرآن عالم وي، د ناسخ
او د منسوخ د محکم او د متشابه پوره علم ورسره وي، د مکي او د مدني سورتونو څخه پوره خبر وي:

او د احادیثو په باره کې هم د دې ټولو خبرو علم ورسره وي، د دې سره سره په علم لغت او شعر کې هم
بصیرت تامه ولري، د علماؤ اختلاف او دلائل د اختلاف ورته پوره معلوم وي، د چا سره چې دا علم نوي
هیڅ کله ورته فتوی ورکول نه دي روا (۲)

---

۱- اعلام الموقعین بحواله قواعد فی علوم الفقه ص۵

۲- اعلام الموقعین ج۱ / ص ۴۵ فصل فی کلام الأیمة فی ادوات الفتیا.

۳- اعلام الموقعین ج۱ص. شروط الافتاء عند العلماء (الفقیه والمتفقه للخطیب صـ ۱۰۶۸ والعقد الفرید للامام السمهودي

۴- دامام بخاري رحمه الله مشر استاذ امام مالک رحمه الله فرمايي: ماترهغې پورې فتوی نه وركولې ترڅو چې اويا شيوخو راته وويل چې ته دفتوو اهل يې (١)

ددې اقوالو څخه معلومېږي چې هرسړی مفتي او مجتهد نه شي كيدای ، فخرالاسلام بزدوي رحمه الله فرمايي: اما شرطه فان يحوي علم الكتاب بمعانيه وعلم السنة بطرقها ومتونها ووجوه معانيها وان يعرف وجوه القياس (٢)

په نن زمانه كې خو دلامذهبه جاهلانو څلورحديثه هم ندي ياد ، او دعوه يې دومره غټه وي چې اجتهاد خو په ځای پرېږده دمجتهدينو څخه هم ځان لوړ حسابوي اوپه مجتهدينو تهمتونه لګوي (نعوذ بالله من الجهل المركب) دداسې سړي لپاره په خپل قول فتوی وركول حرام دي، امام نووي رحمه الله فرمائي (قالوا فاما من ليس باهل للحكم فلايحل له فان حكم فلا اجر له بل هو اثم ولا ينفذ حكمه سواء وافق الحق ام لا لان اصابته اتفاقية ). مسلم ج ٢/ ص ٧٦.

او ددوهم سوال جواب دادی چې: مجتهد مطلق چې په يوه مسئله كې اجتهاد وكړي نو پدې مسئله كې ورته دبل چا تقليد حرام دی ، علامه سمهودي رحمه الله فرمايي چې: واما من بلغ رتبة الاجتهاد المطلق، فان كان قد اجتهد فى الحكم وظنه حرم عليه ان يقلد فيه غيره اتفاقا (العقدالفريد صـ ۵۸) او كه اجتهاد يې پكې نه وي كړي نو پدې كې اختلاف دی، بعضې ورته په دې صورت كې هم حرام وايي او بعضې ورته جايز وايي او بعضې وايي چې صرف قاضي ته جايز دي، او بعضې وايي چې دأعلَم تقليد ورته جايز دی او بعضې وايي چې دوخت دكمبود په وخت كې ورته جايز دی او بعضې وايي چې دخپل عمل لپاره ورته جايز دی لكن بل چاته دفتوی وركولو لپاره ورته ندی جايز علامه سمهودي رحمه الله فرمايي چې: تحريم التقليد عليه ايضا لتمكنه من الاجتهاد فيه الذي هو اصل التقليد ولا يجوز العدول عن الاصل الممكن الى بدله كما فى الوضوء والتيمم ، والثاني الجواز لعدم علمه

---

١ - اعلام الموقعين ج١ ص شروط الافتاء عندالعلماء

٢ - كنزالاصول الي معرفة الاصول ٧٨٢.

بذلك الحكم حينئذٍ وحكى عن سفيان واحمد، واسحق القوله به والثالث الجواز القاضي، لحاجته الى نصل الخصومة المطلوب انجازه، بخلاف غيره والرابع يجوز تقليده لا علم منه لرجحانه عليه بخلاف المساوي والادنى وعبر بعضهم بقوله : لايقلد المجتهد الاصحابيًا ويتعين الارجح منهم فان استووا تخير، والخامس يجوز عند ضيق وقت مايسأل عنه كالصلوة الموقتة بخلاف ما اذا لم يضيق والسادس يجوز له فى خاصة نفسه دون مايفتى به غيره.

او د دريم سوال جواب دادى چې: امام سمهودي رحمه الله په دې کې هم اختلاف رانقل کړی دی يو قول يې دا ليکلی دی چې: يجوزللمقلد الافتاء وان لم يكن قادراً على التفريع والترجيح لانه قلنالما يفتى به عن امامه وان لم يصرح بنقله عنه، قال شيخنا محقق العصر الجلال المحلي عقب حكايته (وهذا هو الواقع فى الاعصار المتأخرة) انتهى، البدر الطالع ج ٤صـ ١٦٣) العقد الفريد صـ ٧٩) او چا چې منع کړې ده نو دهغوي دقول لپاره يې داسې توجيه ليکلې ده چې: قلت وسيأتي أخر كلام (شرح المهذب) الذي نقله عن ابن الصلاح ان معنى القول بمنعه ان لايذكره على صورة من يقوله من عند نفسه بل يضيفه الى امامه الذي قلده،( العقد الفريد صـ ٧٩)

## (۲۰) پوښتنه: غير مقلدين خو وايي چې مونږ عالمان يو او تقليد دجاهلانو لپاره دى؟

۱-جواب: تقليد به غير مجتهد کوي او نن سبا ټول غير مجتهدين دى، که يو څوک ځان ته مجتهد وايي نو په پخپل مجتهد والي به دليل شرعي پيش کوي چې قران، سنت، اجماع او قياس دى دا ما ابو حنيفه رحمه الله مجتهد والي خو په اجماع دمجتهدينو ثابت دى.

۲-جواب: دوي جاهلان مرکبان دي، يعنې مجتهدين ندي او په دې هم خبر نه دي چې مونږ مجتهدين نه يو.

آنکس که نداند ونداند که نداند     درجهل مرکب ابدالدهر بماند

دغير مقلدينو دشيخ الکل، دغير مقلديت دباني، نذير حسين دهلوي دعلم دا حال وو چې د(معيارالحق) په نوم کتاب يې ليکلی دی او يو څو لاندې خبرې يې ولولئ!

۱. شاه ولی الله رحمه الله ته يې ديو کتاب نسبت کړی (القول السديد) چې دا هيڅ کله د شاه ولي الله رحمه الله کتاب ندی (معيار الحق ص ۵۳).

۲. دلمام ابن خلکان ابن حجر عسقلاني ،او د امام نووي، په عبارا تو کې يې دومره قطع او برید کړی دی، چې ورته حیران به شې، مطلب يې صرف دا دی چې امام صاحب رحمه الله د تابعيت څخه و باسي، حالانکه دا ټول د امام صاحب رحمه الله د تابعيت قائل دي.

۳. د معيار الحق په (۲۶) صفحه کې ليکي چې (قتادة سائل ته وويل چې امام بخاري امام احمد پوه کړو) حالانکه امام بخاري د قتادة د وفات څخه (۴۲) کاله وروسته پيدا شوی دی.

۴. په (ص ۲۱۹) کې يې دا الفاظ نقل کړي( سَارَمِيلَيْنِ اَوْ ثَلاثَـةً) او د دې په ترجمه کې يې ليکلي دي چې (دو تين کوس مسافت چليں) يعنې دوه درې کوسه مزل يې وکړو، حالانکه يو کوس درې ميله دی.

۵. يو راوي دی سليمان بن مهران الاعمش نومېږي، د صحاح سته وو اجماعي شيخ دی، د دې لپاره چې دا ضعيف ثابت کړي سليمان بن ارقم يې ترېنه جوړ کړی دی (معيار الحق ص ۲۲۵)

۶. د خالد بن حارث څخه يې خالد بن مخلد جوړ کړيدی.

۷. ديو حديث څخه د انکار لپاره يې د اسامه بن زيد الليثي څخه اسامه بن زيد العدوي جوړ کړی دی.

افسوس په دې کم استعداد هم ځانته مجتهد وايي، د دوي د شيخ الکل دا حال دی.

غير مقلدينو چې څومره کتابونه ليکلي دي په ټولو کې خيانت ،تحريف او د دروغو حوالې دي، صحيح ته ضعيف او ضعيف ته صحيح وايي.

که د دې څخه خالي کتاب د دوي چا را وښودلو زما له طرفه ورته لس زره ديناره انعام دی ،دا ګزاو دا ميدان،زمونږ په زمانه کې دغير مقلدينو شيخ الکل نياز محمد مشهور په امين الله پشاوري د فرج او پوندی فرق نشي کولی.

ده يو کتاب ليکلی دی په نامه د (التحقيق السديد فی مسئلة التقليد) يعنې د تقليد حقيقت، په دې کتاب کې يې په حنفي فقه (۱۳۳) اعتراضونه کړيدي،چې د هر اعتراض مطالعه يې د جهل او حماقت

مظاهره ده ، یوه ډېره خندونکې نمونه یې داده چې ماتن دهدایې فرمایي چې: فان صلت وربع ساقها مکشوف تعیدالصلوة الخ ج۱ص۸۸. وفي بعض النسخ ص(۹۲).

یعنې که په مانځه کې دښځې څلورمه حصه دپونډۍ ښکاره شوه دامام صاحب په نیزیې مونځ نه کېږي،او دامام ابو یوسف په نیز که دپونډۍ اکثره حصه پټه وه مونځ یې کېږي، هدایه: ج(۱) ص(۸۸) اوورسته په شرحه کې لیکي چې (والعورة الغلیظة علی هذاالاختلاف) یعنې په عورة غلیظة کې هم همدغه اختلاف دی چې دامام صاحب په مذهب که ربعه ښکاره شي مونځ ئې نه کېږي اود امام ابو یوسف صاحب په مذهب که اکثرپټ وو مونځ ئې کېږي او نیازمحمد لامذهبه لیکلي دي چې: په فقه کې راځي لکه هدایه ج(۱) ص(۹۳) چې دزنانه څلورمه حصه فرج او دامام ابو یوسف په نزد چې نیم فرج ښکاره شي مونځ یې کېږي. (التحقیق السدید ۱۲۳مسئله ص۲۴۲دریم چاپ و۱۴۱پنځم چاپ) نو امام صاحب پونډۍ اوعورة غلیظه کې تعیدالصلوة ویلی دی اودی لامذهبه فرج ذکرکړی دی اوکېږئې ورسره ویلي دي.

(۲) دمشکوٰة یوه شرحه یې لیکلې ده په نامه دالحق الصریح په هغې کې یې دباب الایمان بالقدر داتم نمبرحدیث په تشریح کې ددوهم جواب لاندې لیکلي دي چې(انبیاء هَمْ کوي اوهَمْ زناده) نوپیغمبران زناکوي (معاذالله).

په شرح الوقایه کښې عبارة داسې دی چې،الوضوء لیس بعبادة مقصودة ج ۱/ ص ۶۵. نونفی قید ته متوجه ده یعنې اودس عبادة دی خوغیرمقصود دی اودې لامذهبه اعتراض کړی دی چې په شرح وقایه کې راځي چې اودس عبادت ندی.التحقیق السدید ،ص ۲۰۷ دریم نمبر اعتراض نوداجاهل پدې هم نه پوهیږي چې نفی قید ته متوجه کېږي.

## (۲۱) پوښتنه : دتقليد څه حکم دی فرض دی که واجب دی که سنت دی اوکه مباح دی اوکه حرام دی او که مکروه دی؟

**جواب:** مطلق تقليد واجب بالذات دی او شخصي تقليد واجب بالغير دئ، په سنه (۱۳۲۵) کې دحرمينو علماؤو د ديوبند دعلماوو څخه يو څو سوالونه وکړل، په هغې کې اتم نمبر اونهم نمبر سوال اوجواب دا وو:

**السوال:** په تمامو اصولو او فرعوکي ديو امام تقليد دائمه اربعه وو څخه صحيح دی اوکنه؟ که صحيح وي نو مستحب دی که واجب؟ اوتاسو دکوم امام مقلدين يي؟

**الجواب:** پدې زمانه کې نهايت ضروري ده چې په څلورو امامانو کې ديو تقليد وشي بلکه واجبه ده، ځکه مونږ تجربه کړيده چې دائمه وو تقليد چا پريښيدی او دخپل نفس او هوا تابع ګرزيدلی دی، انجام يې الحاد او زنديقيت شويدی (نعوذبالله منها).

له دې وجهې مونږ اوزمونږ مشائخ په تمامو اصولو او فروعو کې دامام المسلمين ابوحنيفه رحمه الله مقلدين يو، الله تعالی دې په همدې مذهب مونږ ته مرګ هم په نصيب کړي، او دهمدې مذهب په پيروانو کې دې زمونږ حشر وکړي، امين (۱)

پدې باندې ددیو بند دڅلرويشتو متقدمينو علماوو او وه دېرشو (۳۷) متاخرينو علماؤ دستخطونه دي.

ددې څخه وروسته پرې دحرمينو، دمصر، اودشام دعلماوو تصديقات دي. دغير مقلدينو پنځ تن پاک هم په دې ګويا دي.

لامذهبه نذيرحسين په معيار الحق بار دوم سنه (۱۳۲۹) هـ، ص (۴۲) کې ليکي چې په عامي باندې مطلق تقليد واجب او تقليد شخصي ورته مباح دی.

---

۱ - المهند على المفند، يعني عقائد علماء اهل سنت ديوبند ص۴۳.

او لامذهبه محمد حسین بټالوي سنه (۱۳۳۸) هـ (اشاعة السنة) کې صفحه (۱۲٦) لامذهبه ثناء الله امرتسري (۱۹۸۴) (اخبار اهل حدیث) کې، لامذهبه محمد ابراهیم سیالکوټي سنه (۱۹۵٦) کې تاریخ اهل حدیث صفحه (۱۲۵) کې او لامذهبه سید محمد داود غزنوي په سنه (۱۹٦۳) (داود غزنوي ص۳۷۵) کې هم دا خبره لیکلې ده.

## (۲۲) پوښتنه: د تقلید د تارکینو څه حکم دی؟

یعنې بعضې خلک ځانته غیر مقلدین وایي، ددوي حکم څه دی، او غیر مقلد څه معنی ده؟

جواب: غیر مقلد دېته وایي چې نه مجتهد وي او نه دبل چا مقلد وي، کله مجتهد ته بد وایي، کله مقلد ته، لکه یو سړی چې نه امام وي او نه مقتدي وي، بلکې کله امام ته بد وایي او کله مقتدي ته.

حکم یې دادی چې: غیر مقلدین ګمراهان دي او تعزیریې ضروري دی.

شاه اسحق رحمه الله فرمایي: *کسیکه حقیت مذاهب اربعه نداند انکار اتباع ایشان کند آن کس ضال است*(۱). یعنې څوک چې دڅلورو مذاهبو حقانیت نه مني او ددوي دتقلید څخه انکار کوي هغه ګمراه دی.

میا عبد الخالق رحمه الله د شاه اسحق رحمه الله شاګرد فرمایي: *هرگز مقلد ایشان (مقلد ائمه اربعه) را هرگز بدعتی نباید گفت زیراکه تقلید ایشان تقلید حدیث شریف است پس متبع حدیث را بدعتی گفتن ضلال وموجب نکال است*(۲).

یعنې مقلدینو د مذاهبو اربعه وو ته بدعتیان مه وایئ! ځکه چې ددوي تقلید دسنتو تقلید دی او په سنتو باندې عمل کونکي ته بدعتي ویونکي ګمراه دی او تعزیریې ضروري دی.

---

(۱) تنبیه الضالین ص۳٦ او ۳۷.
(۲) مسائل ص۹۳ مسئله ٦۲.

مفتي صدر الدين رحمه الله چې دلامذهبه نواب صديق حسن خان استاد دی فرمايي: كسيكه مذهب يکی از ائمه اختيار کند آن متبع سنت رسول ﷺ است، وشخصې عامي بلکې عالم رانيز که بمرتبه اجتهاد نه رسيده باشد تقليد يکی از مجتهدان واجب است.

وبالفعل مذاهب اربعه از مجتهدين مشهور ومتواتر ومقبول ومدون ومنقول است، پس تقليد يکی از اين چهار ائمه اختيار بايد کرد، ومنکران حقيقت مذاهب اربعه وبدعت گويندگان تقليد ضال ومضل اند وهم (اَضَلُّوْ كَثِيْرًا وَضَلُّوْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيْلَ). (۱) يعنې څوک چې په دې مذاهبو اربعه وو کې ديو مقلد وي هغه د سنت نبوي ﷺ تابعدار دی. نو په عام کس او غير مجتهد عالم باندې ديو مجتهد تقليد واجب دی.

او بالفعل مذاهب اربعه د مجتهدينو مشهور متواتر، مقبول، مدون او متواتر دي، نو پکار دي چې پدوئ کې ديو تقليد اختيار شي، او څوک چې د مذاهبو اربعه وو د حقانيت څخه منکر وي او مقلدينو ته بدعتي وايي نو داسړی گمراه دی او نور خلک هم گمراه کوي، يعنې د ( ضَلُّوْا وَاَضَلُّوْا ) مصداق دی.

## (۲۳) پوښتنه: په مذاهبو اربعه وو کې کوم يو مذهب غوره دی؟

ځواب: د ټولو آيمه و خدمتونه پخپل ځای د احترام قابل او منلې شوي دي، لکن د امام صاحب رحمه الله فقه پدوي ټولو باندې راجحه ده.

۱- حضرت امام صاحب ابو حنيفه رحمه الله رؤيةً و روايةً تابعي دی په خلاف د نورو أيمه وو چې هغوي تابعين ندي.

مشهور، پخواني او ثقه مؤرخ امام ابو الفرج محمد بن اسحاق بن نديم رحمه الله، المتوفي ۳۸۵هـ د امام صاحب په باره کې فرمايي چې: وكان من التابعين لقي عدة من الصحابة. [فهرست: ص۲۹۸ من تصنيف ۳۷۷هق]

امام ابو حنیفة رحمه الله تابعي دی او ډېرو صحابه وو سره یې ملاقات شوی دی، ملا علي قاري رحمه الله فرمایي چې دا خو یقیني ثابت دي چې امام صاحب بعضې صحابه رضی الله عنهم لیدلي دي، لکن اختلاف پدې کې دی چې امام صاحب د صحابه وو رضی الله عنهم څخه احادیث روایت کړي دي او که؟ لکن معتمده خبره داده چې روایت کړي یې دي، وروسته لیکي چې امام ابو حنیفة رحمه الله غټ تابعي دی لکه څرنګه چې غټو غټو علماوو پدې تصریح کړې ده.

وقد ثبت رؤيته لبعض الصحابة، واختلف في روايته عنهم والمعتمد ثبوتها... (الى قوله) فهو من التابعين الاعلام كما صرّح به العلماء الاعيان. [ذيل الجواهر ج۲/ص ٤٥٢].

د امام صاحب پیدا ایښت په اتیایمه هجری کې شوی دی. [جامع المسانيد ج۱ ص۲۵، تذكرة الحفاظ ج۱/ ص ۱۵۸]. [تهذيب التهذيب ج۱۰/ ص ۴۴۹]، [الجواهر المضية ج۱/ ص ۲۷].

او ډېر صحابه رضی الله عنهم د اتیایمې هجری څخه وروسته وفات شوي دي، حضرت واثلة بن اثقع رحمه الله په پنځه اتیایمه هجری کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج۱/ ص ۱۰۱].

حضرت انس بن مالک رضی الله عنه په ۹۳ هـ کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج۱/ ص ۳۷۹]. [تاريخ صغير للبخاري ص ۱۰۱]، طبقات ابن سعد ج۷/ ص ۱۶].

حضرت محمود بن لبيد رضي الله عنه په ۹۶ هـ کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج ۱۰/ ص ۶۶].

حضرت محمود بن الربيع رضي الله عنه په ۹۹ هـ کې وفات شوی دی. تهذيب التهذيب ج۱۰/ ص ۶۳].

د حضرت هرماس بن زیاد الباهلي رضي الله عنه سره په یو سلو دوهمه کې د حضرت عکرمة بن عمار رحمه الله ملاقات شوی دی نو دده وفات د یو سلو دوهمې څخه وروسته شو.

حضرت ابو طفیل عامر بن واثلة رضي الله عنه په ۱۱۰ هـ کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج۵/ ص ۸۲].

چې په دغه وخت کې امام صاحب د ديرشو كالو وو، دا مونږ د اختصار سره نيم درجن صحابه رضي الله عنهم وليكل.

حضرت ابن حجر رحمه الله فرمايي چې (رأى أنساً رضي الله عنه). [تهذيب التهذيب ج١٠/ ص٤٤٩] يعنې امام ابو حنيفة رحمه الله حضرت أنس رضي الله عنه ليدلى وو، او علامه ذهبي فرمايي چې: رأى أنس بن مالك رضي الله عنه غير مرة لما قدم عليهم الكوفة. [تذكرة ج١/ ص١٥٨] يعنې امام ابو حنيفة رحمه الله څو څو ځله حضرت أنس وليدلو چې كله يې كوفې ته تشريف راوړو.

علامه ابن سعد رحمه الله امام دار قطني رحمه الله خطيب بغدادي رحمه الله امام نووي رحمه الله، امام ابن عدي رحمه الله، علامه ذهبي رحمه الله، علامه سمعاني رحمه الله، علامه عراقي رحمه الله، حافظ ابن حجر رحمه الله، او امام سخاوي رحمه الله وغيرهم د امام ابو حنيفة رحمه الله په تابعي والي باندې متفق دي. وګورئ!

[بغدادي ج١٣/ ص٣٢٤]، [تذكرة الموضوعات ص١١١] و [قانون الموضوعات ص ٢٣٦]، [جامع بيان العلم ج١/ ص٤٥]. حافظ ابن كثير رحمه الله فرمايي چې: و ذكر بعضهم أنه روي عن سبعةٍ من الصحابة. [البداية والنهاية ج١٠ ص١٠٧].

د نمونې په شكل يو څو هغه روايات وګورئ چې امام صاحب رحمه الله د صحابه وو رضي الله عنهم څخه روايت كړي دي. ابويوسف رحمه الله عن أبي حنيفة رحمه الله أنه قال: سمعت أنس بن مالك رضي الله عنه يقول: سمعت رسول الله ﷺ يقول: طلب العلم فريضة على كل مسلم.

وعن أبي داؤد الطيالسي عن أبى حنيفة رحمه الله أنه قال: ولدت سنة ثمانين، وقدم عبدالله بن أنيس الكوفة سنة أربع وتسعين وسمعت منه وأنا ابن أربع عشرة سنة يقول: قال رسول الله ﷺ: حبك للشيء يعمي ويصم.

ابويوسف عن أبي حنيفة رحمه الله قال: ولدت سنة ثمانين وحججت مع أبي سنة ستة وتسعين وأنا ابن ستة عشر سنة فلما دخلت المسجد الحرام رأيت حلقة قلت لأبي حلقة: من هذا؟ قال حلقة:

عبدالله بن الجزء الزبیدی رضی الله عنه صاحب رسول الله ﷺ فتقدمت فسمعته يقول سمعت رسول الله ﷺ يقول: و من تفقه في دين الله كفاه الله همه ورزقه من حيث لا يحتسب.

ابويوسف عن أبي حنيفة عن أنس بن مالك رضی الله عنه عن النبي ﷺ قال: الدال على الخير كفاعله والله يحب اغاثة اللهفان.

عن أبي سعيد عن أبي حنيفة رحمه الله أنه قال: سمعت واثلة بن الاسقع رضى الله عنهم يقول: سمعت رسول الله ﷺ يقول: لا تظهرن شماتة لأخيك فيعافيه الله ويبتليك.

يحي بن معين عن أبي حنيفة رَحِمَهُ ٱللَّهُ عن عايشة بنت عجرة رضى الله عنها قالت: قال رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أكثر جند الله في الأرض الجراد لا أكله ولا أحرمه. وګوره: [جامع المسانيد ج۱/ ص۸۷ تر ص۹۸ پورې].

(۲) د حضرت امام صاحب رحمه الله فقهي كمال يو منلى شوى حقيقت دى، حضرت امام الشافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې: الناس في الفقه عيال على أبي حنيفة رَحِمَهُ ٱللَّهُ. [تذكرة ج۱/ ص۱۵۹].

علامه ذهبي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ليكي چې: الامام الأعظم، فقيه العراق، امام، متورع، عالم، عامل، فقيه، متقي وكبير الشان.

(۳) د امام صاحب رحمه الله د فقهي اصول او ضوابط د يوې شورى په ذريعه باندې مرتب شوي او مدون شوي دی چې ددې شورى رئيس امام ابو حنيفة رحمه الله وو، دوي به د پوره بحث او مناظرې څخه وروسته مسئله ليكله.

علامه خطيب بغدادي رحمه الله فرمايي چې: كان أصحاب أبي حنيفة رحمه الله الذين يذكرونه ابويوسف، و زفر، و داؤد الطائي، واسد بن عمرو، و عافية الأودي، والقاسم بن معن، وعلي بن مسهر، ومندل، وحبان ابنا علي، وكانوا يخوضون في المسئلة فإن لم يحضر عافية قال أبوحنيفة رحمه الله: لا ترفعوا المسئلة حتى يحضر عافية فإذا حضر عافية، فإن وافقهم قال أبوحنيفة : أثبتوها، فإن لم يوافقهم قال

أبوحنيفة لا تثبتوها. [تاريخ بغداد ج۱۲/ ص۱۰۸]. د امام صاحب رحمه الله بعضې هغه اراکین د شورئ چې امام صاحب رحمه الله به ورسره د مسایلو مذاکره کوله دادي:

ابویوسف، زفر، داؤد الطایي، اسد بن عمرو، عافیه، قاسم، علي، مندل، حبان، نو کله به چې په یوه مسئله بحث وشو نو که عافیه به پکې شریک وو، امام صاحب رحمه الله به وفرمایل چې: دا مسئله ولیکئ او که عافیه به نه وو شریک نو امام صاحب رحمه الله به وفرمایل چې: دا مه لیکئ ترڅو چې عافیه رحمه الله نه وي راغلی، نو عافیه به چې کله راغلو او ددوی سره به موافق شو نو امام صاحب رحمه الله به وفرمایل چې: او س یې ولیکئ او که موافق به نه شو نو امام صاحب رحمه الله به فرمایل چې: دا مسئله مه لیکئ.

امام صدر الأیمه لیکي چې: فوضع أبوحنيفة رحمه الله مذهبه شورى بينهم ولم يستبد فيه بنفسه دونهم، اجتهاداً منه في الدين، ومبالغةً في النصيحة لله ورسوله والمؤمنين، فكان يلقى مسئلة مسئلة ويسمع ما عندهم، ويقول ما عنده ويناظرهم شهراً أو أكثر من ذلك حتى يستقر أحد الأقوال فيها ثم يثبتها أبويوسف رحمه الله في الأصول حتى أثبت الأصول كلها. [مناقب موفق ج۲/ ص ۱۳۳].

امام صاحب رحمه الله خپل مذهب د شورئ په طریقه جوړ کړو او د احتیاط او د الله تعالی د دین او د مؤمنانو د خیر خواهی له وجې به یې هیڅ مسئله د مشورې څخه بغیر نه لیکله نو په یوه مسئله به یې میاشت او څه د پاسه میاشت مشوره او مناظره کوله، ترڅو چې په یوه رایه به اتفاق راغلو، نو امام ابویوسف رحمه الله به هغه په اصولو کې ولیکله تردې چې ټول اصول منضبط شول.

او که امام ابویوسف رحمه الله به عجله وکړه نو امام صاحب رحمه الله به ورته فرمایل چې: لا تكتب كل ما تسمع مني، فأني قد أرى الرأي اليوم وأتركه غداً وأرى الرأي غداً وأتركه في غده. [مقدمة نصب الرأيه ص ۳۱].

زما څخه هره اورېدلې خبره مه لیکه، ځکه چې زه نن یوه خبره کوم او سبا ته یې پرېږدم او سبا یوه خبره کوم او بل سبا ته یې پرېږدم.

د امام بخاري رحمه الله استاذ امام عبدالله بن المبارک رحمه الله فرمايي چې: ددې شورى مجلس ته به اهمه مسئله پيش شوه، فخاضوا فيها ثلاثة أيام بالغداة والعشي. [مناقب موفق ج۲ ص۵۴].

نو ددې مجلس علماوو پکې درې شوا روزه غور او خوض وکړو- إذا وقعت لهم مسئلة يـديرونها حتى يضيئونها، [مناقب كردي ج۲/ ص۳]. كله به چې دې مجلس ته مسئله مخې ته راغله نو پوره پوره به يې تاو راتاو کړه تردې چې ښه به واضحه شوه.

فى مقدمة اعلاء السنن، وحكى الحافظ ابن مندة بسنده الى الأعمش انه جاءه رجل فسـأله عـن مسالة فقال عليک بأهل تلک الحلقة فانهم اذا وقعت لهم مسألة لا يزالون يديرونها حتى يصنيبوها، يعنى حلقة ابى حنيفة رحمه الله تعالى آه وروى الخطيب البغدادى بسنده عن ابن كرامـة قـال كنـا عند وكيع بن الجراح يوما فقال رجل اخطاء ابو حنيفة رحمه الله فقال وكيع كيف يقدر ابـو حنيفـة رحمه الله ان يخطى وعنده مثل ابى يوسف وزفر، ومحمد فى قياسهم واجتهادهم ومثل يحى بن زكريـا بن ابى زائده وحفص بن غياث وحبان ومندل ابن على فى حفظهم للحديث ومعرفتهم بـه والقاسـم بن معن فى معرفته باللغة العربية وداود بن نصير الطائى وفضيل بن عياض فى زهد همـا و ورعهمـا من كان اصحابه هؤلاء او جلسائه لم يكن ليخطئ وان اخطـأ ردوه الى الحـق آه وروى الطحـاوى بسنده الى اسد بن الفرات،قال كان اصحاب ابى حنيفة الذين دوّنوا الكتب اربعين رجلا، فـكان فى العشرة المتقدمين ابو يوسف وزفر و داود الطائى واسد بن عمرو ويوسف بن خالد السمتى ويحى بـن زكريا بن ابى زائدة وهو الذى كان يكتبها لهم ثلاثين سنة آه (مقدمة اعلاء السنن، قواعد فى علوم الحديث صـ ۳۳۰، ج ۱۹، ابى حنيفة امام ثقه حافظ الخ، ط، ادارة القران كراچى)

وفى الشامية ونقل، ط، عن مسندالخوارزى ان الامام اجتمع معه الـف مـن اصـحابه اجلهـم وافضلهم اربعون قد بلغوا حد الاجتهاد فقربهم وادناهم وقال لهم إنى الجمت هذا الفقـه واسرجتـه لكن فاعينونى فان الناس قد جعلونى جسرا على النار فان المنتهى لغيرى واللعب على ظهرى فـكان اذا وقعت واقعة شاورهم وناظرهم وسألهم فيسمع ما عندهم من الاخبار والاثـار ويقـول مـا عنـده ويناظرهم شهرا اواكثر حتى يستقر آخر الاقوال فيثبته ابو يوسف حتى اثبت الاصول على هذا المنهاج

شورى لا أنه تفرد بذلک كغيره من الائمة آه (شاميه صـ ۵۰ ج ۱، مقدمة، مطلب فى حديث اختلاف امتى رحمة ، ط، رشيديه كويته)

(۴) د امام صاحب رحمه الله فقهې ته الله تعالى عام مقبوليت وربښلى دى، لکه څرنګه چې امير شکيب ارسلان فرمايي چې: مشهور مؤرخ ابن نديم فرمايي چې: فقه اکبر، کتاب رسالته الى البستي، کتاب العالم والمتعلم او کتاب الرد على القدرية د امام صاحب تصنيفات دي بيا مخکې ليکي چې: والعلم براً وبحراً، شرقاً وغرباً، بعداً وقرباً تدوينه .[الفهرست ص ۲۹۹]. په وچه او په سمندر کې، په مشرق او په مغرب کې، نزدې او لرې ټول علم د امام صاحب تدوين دى.

(۵) د امام صاحب اجتهاد ډير دقيق وو، هيڅ باريک اړخ به هم ترينه نه پاتې کيدو، لکه څرنګه چې علامه سبکي فرمايي چې: فقهه دقيق. [طبقات الشافعية الكبرى ج ۲/ ص ۱۷۴].

(۶) وروسته به راشي چې ددنيا د ټولو محدثينو سند د امام صاحب په شاګردانو باندې تيريږي او لويو لويو محدثينو به د امام صاحب د مذهب مطابق فتوى ورکوله، لکه عبد الله بن المبارک، وکيع بن الجراح، يحيى بن سعيد القطان، يحيى بن معين، يحيى بن زکريا رحمهم الله وغيره.

(۷) امام اعظم رحمه الله د هرچا څخه مخکې د امت د سهولت لپاره د کتابونو او دبابونو ضرورت محسوس کړو او ددې لپاره يې بهترين بنياد کيښودلو.

صدر الأيمة رحمه الله ليکي چې: و ابوحنيفة رحمه الله اول من دون علم هذه الشريعة ولـم يسبقه أحدٌ ممن قبله. [مناقب موفق ج۲/ ص۱۳۶]. امام ابو حنيفة رحمه الله د ټولو څخه مخکې د شريعت تدوين وکړو، دده څخه مخکې هيچا هم داسې تدوين نه وو کړى.

۸: شاه ولي الله رحمه الله په خپل مکاشفات کې ليکي چې عرفنى رسول الله صلى الله عليه وسلم ان فى المذهب الحنفى طريقة انيقة هى اوفق الطرق بالسنة المعروفة التى جمعت و نقحت فى زمان البخارى و اصحابه.(فيوض الحرمين ص ۴۸)

یعنې شاه ولي الله رحمه الله فرمايي چې ماته خپله پيغمبر عليه السلام دا خبره معلومه کړه چې په حنفي مذهب کې داسې عمده طريقه ده چې د هغه سنت نبوي سره زياته موافقه ده کومه چې د امام بخاري په زمانه کې راجمع شوې ده.

۹: په ټولو فقو کې فقه حنفي واحده فقه ده چې مسايل تحقيقي او تقديري دواړه پکې موجود دي، فقه تحقيقي معنی هغه مسايل چې واقع شوي وي، او فقه تقديري معنی هغه مسايل چې لاتر اوسه واقع شوي نه وي بلکې دهغوي لپاره فرضي صورتونه جوړ شوي وي او حل شوي وي، نن سبا په سلګونو مسايل د تقديري فقې په رڼا کې حل کولی شي، دلته به ضمناً د يو بل اعتراض جواب هم ذکر کړو او هغه دا چې لامذهبيان اعتراض کوي چې:

## تا ته څرنګه معلومه شوه چې دامام صاحب رحمه الله مذهب غوره دی؟ ته خو مجتهد نه يې

قلنا الزاما تا ته څرنګه معلومه شوه چې په فلانکي هسپتال کې فلانکی ډاکټر ښه سپيشلست دی ته خو سپيشلسټ نه يئ؟ تا ته څرنګه معلومه شوه چې فلانکی ښه خياط دی ته خو خياط نه يئ؟

۲: تحقيقي جواب: معرفت په دوه قسمه دی اول اجمالي او دوهم تفصيلي ديو کس د مهارت د پيژندلو لپاره اجمالي معرفت کافي وي چې د تواتر وغيره ذرايعو څخه حاصليږي، مثلا عوام اجمالاً پدې پوهيږي چې صحيح البخاري أصح الکتب بعد کتاب الله دی، لکن بيا محدثين ندي، همدارنګه د سهولت له وجې يو مذهب ته ترجيح ورکوي او د امام صاحب په مذهب کې د هرې مسئلې حل په اسانه پيدا کيږي، همدارنګه اتفاق هم د ترجيح وجه کيدلی شي، کله د يو عبادت د اداء کولو دوه طريقې وي، په يو طريقه اتفاق وي او د بلې طريقې له وجې اختلاف جوړيږي، نو په اتفاقي طريقه عمل کول راجح وي، نبي کريم صلی الله عليه وسلم د اتفاق ډير خيال ساتلو، يوه ورځ يې وفرمايل چې که دا خلک نوي مسلمانان نه وی، نو ما به کعبه د ابراهيم عليه السلام په بنيادونو جوړه کړې وه.

## د امام صاحب رحمه الله دفقهي شورى اراكين

(۱)امام زفر بن هذيل(۲) امام مالک بن مغول،(۳) امام داود الطائي (٤) امام مندل بن علي(٥) امام نصر بن عبد ا لكريم(٦) امام عمرو بن ميمون(۷) امام حبان بن علي (۸) امام ابو عصمه نوح بن مريم (۹) امام زبير بن معاويه (۱۰) امام قاسم بن معن (۱۱) امام حماد بن امام اعظم (۱۲)امام بياج بن بسطام (۱۳) امام شريک بن عبدالله (١٤) امام عافيه بن يزيد (۱٥)امام عبدالله بن المبارک(۱٦)امام ابو يوسف(۱۷) امام محمد بن نوح (۱۸)امام هشيم بن بشير السلمى(۱۹) امام ابو سعيد بن زكريا بن أبي زايده(۲۰) امام فضيل بن عياض (۲۱) امام اسد بن عمرو(۲۲) امام محمد بن حسن الشيبانى(۲۳) امام على بن مسهر (٢٤) امام يوسف بن خالد السمتى(۲٥) امام عبدالله بن ادريس الكوفي(۲٦) امام فضل بن موسى السينانى(۲۷) امام علي بن ظبيان(۲۸) امام حفص بن غياث(۲۹) امام بشام بن يوسف(۳۰) امام يحيى بن سعيد القطان(۳۱) امام شعيب بن اسحاق (۳۲) امام ابو حفص بن عبدالرحمن(۳۳) امام ابو مطيع البلخي (٣٤) امام خالد بن سليمان (۳٥) امام عبدالحميد بن عبدالرحمن (۳٦) امام حسن بن زياد (۳۷)امام ابو عاصم النبيل (۳۸) امام مكي بن ابراهيم (۳۹) امام حماد بن دليل. ( اماني الاخبار والجواهر المضيه ، بزم احناف صـ ۷۳ صـ ۷۷)

## ٢٤- سوال: ايا محدثينو تقليد منلو؟

**جواب :** عام محدثين اوصحاح سته وو حضرات رحمهم الله.

| | |
|---|---|
| ۱ - مسندزيد ۱۲۲هه | ۲ - مسندامام اعظم ۱٥۰هه |
| ۳ - موطا امام مالك ۱۷۹هه | ٤ - كتاب الاثارابي يوسف ۱۸۲هه |
| ٥- كتاب الاثارامام محمد ۱۸۹هه | ٦ - موطا امام محمد ۱۸۹هه |

| | |
|---|---|
| ۷ - کتاب الحجة علي اهل المدينة ۱۸۹ھ | ۸ - المدونة الکبري ۱۹۱ھ |
| ۹ - مسندالشافعي ۲۰۴ھ | ۱۰ - ابوداوود طيالسي ۲۰۴ھ |
| ۱۱ - عبدالرزاق ۲۱۱ھ | ۱۲ - مسندالحميدي ۲۱۹ھ |

داکتابونه په خيرالقرون کې ليکل شوي دي ځکه خيرالقرون تردوه سوه شلم پورې وو

| | |
|---|---|
| ۱۳ - سعيدبن منصور ۲۲۷ھ | ۱۴ - مسندابي الجعد ۲۳۰ھ |
| ۱۵ - ابن ابي شيبه ۲۳۵ھ | ۱۶ - مسنداحمد ۲۴۱ھ |
| ۱۷ - سنن دارمي ۲۵۵ھ | ۱۸ - صحيح البخاري ۲۵۶ھ |
| ۱۹ - صحيح مسلم ۲۶۱ھ | ۲۰ - سنن ابن ماجه ۲۷۳ھ |
| ۲۱ - سنن ابي داوود ۲۷۵ھ | ۲۲ - جامع الترمذي ۲۷۹ھ |
| ۲۳ - سنن نسايي ۳۰۳ھ | ۲۴ - ابويعلي ۳۰۷ھ |
| ۲۵ - ابن الجارود ۳۰۷ھ | ۲۶ - الکنیٰ والاسماءدولابي ۳۱۰ھ |
| ۲۷ - تفسيرطبري ۳۱۰ھ | ۲۸ - صحيح ابن خزيمه ۳۱۱ھ |
| ۲۹ - ابوعوانه ۳۱۶ھ | ۳۰ - شرح معاني الاثارطحاوي ۳۲۱ھ |
| ۳۱ - مشکل الاثار ۳۲۱ھ | ۳۲ - معجم الصغير للطبراني ۳۶۰ھ |
| ۳۳ - معجم الاوسط للطبراني ۳۶۰ھ | ۳۴ - المعجم الکبير للطبراني ۳۶۰ھ |
| ۳۵ - عمل اليوم والليلة ۳۶۴ھ | ۳۶ - کتاب العظمة ۳۶۹ھ |
| ۳۷ - دارالقطني ۳۸۵ھ | ۳۸ - ناسخ الحديث ومنسوخه ۳۸۵ھ |

| | |
|---|---|
| ۳۹ - مستدرك للحاكم ۴۰۵ھ | ۴۰ - سنن البيهقي ۴۵۸ھ |
| ۴۱ - شعب الايمان ۴۵۸ھ | ۴۲ - معرفة السنن والاثار ۴۵۸ھ |
| ۴۳ - جامع بيان العلم ۴۶۳ھ | ۴۴ - مسند الفردوس ۵۰۹ھ |
| ۴۵ - شرح السنة ۵۱۶ھ | ۴۶ - ابن حبان ۳۵۴ھ |
| ۴۷ - ابن شاهين ۳۸۵ھ | ۴۸ - الكامل ابن عدي ۳۶۵ھ |
| ۴۹ - حلية الاولياء ۴۳۰ھ | ۵۰ - الخطيب البغدادي ۴۶۳ھ |
| ۵۱ - المحلي لابن حزم ۴۵۷ھ | ۵۲ - خطابي ۳۸۸ھ |
| ۵۳ - جامع الاصول ۶۰۶ھ | ۵۴ - مشكاة المصابيح ۷۳۷ھ |
| ۵۵ - نصب الراية ۷۶۲ھ | ۵۶ - جامع المسانيد ابن كثير ۷۷۴ھ |
| ۵۷ - مجمع الزوائد ۸۰۷ھ | ۵۸ - فتح الباري ۸۵۲ھ |
| ۴۹ - عمدة القاري ۸۵۵ھ | ۶۰ - الجامع الكبير ۹۱۱ھ |
| ۶۱ - كنز العمال ۹۷۵ھ | |

ددې کتابونو مؤلفین یا اهل السنة والجماعة مجتهدین دي، اویا اهل السنة والجماعة مقلدین دي، په دوي کي يو کس هم څوک داسې نشي ثابتولی چه نه مجتهد وو او نه مقلد بلکي غیر مقلد وو.

## دامام بخاري رحمه الله اجمالي حالات

امام بخاري رحمه الله مقلد وو، دامام شافعي رحمه الله اویا دامام احمد رحمه الله په مذهب وو، ابو عاصم عبّادي رحمه الله، امام تاج الدين السبكي رحمه الله، حضرت شاه ولی الله الدهلوي رحمه الله او نواب صديق حسن خان ورته شافعي مقلد ويلی دی.

او ابو يعلى رحمه الله ، علامه ابن تيميه رحمه الله او علامه ابن ا لقيم رحمه الله ورته حنبلي مقلد ويلي دي.

علامه تاج الدين السبكي رحمه الله په طبقات الشافعية الكبرى كې ليكي چې (ذكر ابو عاصم العبادي اباعبدالله فى كتاب الطبقات وقال سمع من الزعفرانى ، وابى ثور، والكرابيسى، قلت وتفقه على الحميدى وكلهم من أصحاب الشافعى رحمه الله (طبقات ا لشافعية الكبرى ج ۲صـ ۲۱٤)

ابو عاصم په خپل كتاب طبقات الشافعية كې د امام بخاري رحمه الله ذكر كړى دى او فرمايلي يې دي چې د زعفراني رحمه ا لله، ابوثور رحمه الله ، او دكرابيسى رحمه الله څخه يې د حديثو سماع كړې ده، علامه سبكي رحمه الله فرمايي چې زه وايم چې امام بخاري رحمه الله د حميدي رحمه الله څخه فقه لوستلې ده او دا ټول شوافع وو.

شاه ولى ا لله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: ( ومن هذا القبيل محمدبن اسماعيل البخاري فانه معدود فى طبقات الشافعية وممن ذكره فى طبقات الشافعية الشيخ تاج الدين السبكى وقال انه تفقه بالحميدى ، والحميدى تفقه بالشافعى ، واستدل شيخنا العلامه على ادخال البخارى فى الشافعية بذكره فى طبقاتهم وكلام النووى الذى ذكرناه شاهد له (الانصاف مع ترجمة وصّاف صـ٦٧)

نواب صديق حسن خان لكي چې: فلنذكر نبذا من أيمة الشافعية ليكون الكتاب كامل الطرفين حايز الشرفين ، وهؤلاء صنفان احدهما: من تشرف بصحبة الامام الشافعى ، والأخر من تلاهم من الأيمة أم الأول فمنهم احمد خالد الخلال.... واماالصنف الثانى فمنهم محمد بن ادريس ابو حاتم الرازى ومحمد بن اسماعيل البخارى (ابجدالعلوم ج ۳صـ ۱۲٦)

همدارنګه لكي چې: وقال الشيخ تاج الدين السبكى فى طبقات كان البخارى امام المسلمين ، وقدوة المؤمنين وشيخ الموحدين والمعلول عليه فى احاديث سيد المرسلين ، قال وقد ذكره ابو عاصم فى طبقات اصحابنا الشافعية (الحطة فى ذكر الصحاح الستة صـ ۲۸۰)

نو د نواب صديق حسن خان په نيز هم امام بخارى رحمه الله شافعي دى ځكه چې دا اقوال يې را نقل كړي دي او سكوت يې پرې كړى دى ، بل طرف ته قاضي ابو الحسين محمد بن ابى يعلى الحنبلى په طبقات الحنابله ج ۱صـ ۲۷۱، كې ورته حنبلي ويلي دي.

ابن تیمیه رحمه الله په یو ځای کې لیکي چې: وأیمـة الحـدیث کالبخـاری ومسـلم والترمـذی والنسائی وغیرهم ایضا من اتباعهما (ای احمد بن حنبل واسحاق بن راهویه ) وممـن یأخـذ العلـم والفقه عنهما (فتاوی ابن تیمیه ج ۲۵، صـ ۲۳۲).

علامه ابن القیم رحمه الله فرمایي چې: وکذلک البخاری ومسلم وابوداؤد والأثرم وهذه الطبقة من أصحاب احمد اتبع له من المقلدین ا لمحض المنتسبین الیه (اعلاء الموقعین ج ۲صـ ۲۲۳)

بعضې خلک امام بخاری رحمه الله ته مجتهد مطلق وايي او د شافعي والي لپاره يې داسې توجيه کوي چې ده ته شافعي په دې اعتبار سره ويلی شي چې د ده اجتهاد د امام شافعي رحمه الله د اجتهاد سره مطابق وؤ ، لکن دا خبره د تحقیق څخه مخالفه ده ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: ان البخاری فی جمیع مـایورده من تفسیر الغریب انما ینقله عن أهل ذلک الفن کأبی عبیدة والنضر بن شمیل ، والفـراء وغـیرهم ، اما المباحث الفقهیة فغالبها مستمدة له من الشافعی وابی عبید وأمثالهم واما المباحث الکلامیة فأکثرهـا مـن الکرابیسی ، ابن کلاب ونحوها( فتح الباری ج ۲صـ ۲۵۳، باب مایقول عند الخلاء)

نو که مجتهد مطلق وی، نو په فقهي مباحثو کې به يې د امام شافعی رحمه الله او د امام ابو عبيد څخه استمداد نه کولو بلکې پخپله به يې اجتهاد کولو .

۲-که امام بخاری رحمه الله مجتهد مطلق وی نو د ده ذکر به په طبقات الفقهاء کې راغلی وؤ .

۳-د مجتهد لپاره خپل اصول وي چې د هغې اصولو په رڼا کې اجتهاد کـوي او د امام بخاري رحمه الله داسې اصول نشته.

۴- که امام بخاري رحمه الله مجتهد مطلق وی نو د فقهې په کتابونو او په اختلاف الفقهاء کې به د ده اقوال رانقل کيدلی، حالانکې د ده فقهي قول څوک نه رانقلوي ، امام ترمذي د امام بخاري رحمه الله شاګرد دی، د حديث د تصحيح او د تضعيف په سلسله کې د امام بخاري رحمه الله اقوال رانقلوي ، لکن په اختلاف الفقهاء کې د ده قول نه رانقلوي، مولانا سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې امام بخاري رحمه الله ، شافعی المذهب وو نه مجتهد مطلق وو او نه په دې معنی باندې شافعي وو چې د ده اجتهاد د امام شافعي رحمه الله د اجتهاد سره مطابق وو ،بلکې د دومره وسعت نظری سره سره شافعي المذهب مقلد وو (طايفه منصوره صـ ۱۱۱).

# ديو څو محدثينو اجمالي حالات

علامه سبکي رحمه الله د امام ابوداود په باره کې وايي چې زمونږ استاذ علامه ذهبي رحمه الله فرمايي چې امام ابوداود فقه د امام احمدبن حنبل څخه حاصله کړې وه، حافظ ابن قيم هم د امام ابوداود په باره کې حنبلي ليکلي دي (اعلام الموقعين ج(۱) ص(۲۷۶) طبع هند او علامة اسماعيل شاه بغدادي هم امام ابوداود حنبلي لکلي دی. (هدية العارفين ج(۱) ص(۳۹۵).

محمد انوره شاه کشميري وايي چې حافظ ابن تيميه، امام نسائی، د ابوداود په حنبلي کيدو تصريح کړې ده، مقدمة فيض الباري ص(۵۸) او فرمايي چې حق هم دادی (العرف الشذي ص(۶)

بهرحال شافعي وي او که حنبلي مقلد خودی.

قاضي اسماعيل بن النسفي الکندي المتوفی (۱۶۴) په فقه کې د امام ابوحنيفه متبع وو.

امام ليث بن سعد المتوفی سنه (۱۷۵) نواب صديق حسن خان ليکي: (وی حنفي المذهب بود وقضاء مصر داشت) (اتحاف ص(۲۳۷)

عبدالله بن مبارک المتوفی (۱۸۱) امام صدرالائمة المکي المتوفی (۵۹۸) ليکي: چې په ائمة حنفي کې يو امام عبدالله بن مبارک هم دی (مناقب موفق ج(۲) ص (۱۳۳).

علامه ذهبي وايي چې په خپل دور کې د علم حديث مدار په دريو بزرګانو باندې وو، امام يحيی بن سعيد القطان، يحی بن زکريا بن ابی زائده، او وکيع ابن الجراح، تذکرة ج(۱) ص (۳۲۸) او علي المديني فرمايي: چې خپل دور کې علم په يحيی بن أبی زأيده باندی ختم وو اخبار ابی حنيفه واصحابه (ص ۱۵۰) او دا درې واړه بزرګان مقلدين د امام صاحب وو.

خليفه جعفر بن معتصم الملقب بالمتوکل علی الله المتوفی سنه(۲۴۶) هـ په خلفاء کې اول سړی وو چې د امام شافعي مقلد وو (تاريخ الخلفاء (۳۵۹)

امام محدث ابوعوانة يعقوب بن اسحاق الاسفرائی المتوفی سنه(۲۱۶) شافعي المذهب وو، امام طحاوي، ابوجعفر احمد بن محمد المتوفی سنة(۳۲۱) هـ حنفي المذهب وو (تذکرة (ج ۳ همدارنګه امام

ابو العباس احمدبن عمر المتوفى سنه ۳۰۶ شيخ الاسلام قدوة الشافعيه شافعي المذهب وو، تذكره ج ۲ ص ۳۰) ص(۲۸)

امام ابو القاسم عمروبن الحسن البغدادي الخرفي المتوفى سنة (۳۲۴) شيخ الحنابلة (تذكرة (۳) ص(۶۲).

مشهور مورخ علامة ابو الفرج محمد بن اسحاق بن نديم المتوفى سنة (۳۸۵)هـ په خپل كتاب الفهرست طبع مصر كې د صـ(۲۹۸) نه تر (۳۰۸) پورې دهغه حضراتو فقهاء كرامو تذكره كړې ده چې په فقه كې د حضرت امام ابو حنيفة مقلدين وو، او دهغوي تعداد يې تقريباً دېرش بيان كړيدى.

اوبيا د(۳۰۸) نه تر(۳۱۷) صفحې پورې د حضرت امام شافعي د شاگردانو ذكر كوي، او تقريباً د څلور دېرشو حضراتو نومونه يې ذكر كړي، او د(۲۶۴) صفحې نه تر (۲۹۸) پورې يې د حضرت امام مالک د مقلدينو ذكر دى، چې تقريباً پنځويشت دي، او په صفحه (۳۳۴) كې د حضرت امام احمد بن حنبل او دهغه د كتابونو د تذكرى كولو نه پس د الامام الاثرم، احمد بن محمد، امام احمد بن محمد بن الحجاج، او امام اسحاق بن راهوي ذكر كوي، او فرمايي: دا ټول حنبليان وو (صـ ۳۳۵)

امام ابن عبد البر مالكي په خپل كتاب الانتفاء كې د څلورمې صدى نه وړاندې چې كوم مالكيه، شافعي او احناف وو دهغوى، دنومونو فهرست ئى وركړى دى، كه شوق مو وي نو وې گورئ.

امام ابو بكر احمد بن الحسين البيهقي المتوفى سنة(۴۵۸)هـ علامة ذهبي ليكلي چې دا شافعي المذهب وو. امام ابو محمد بن مسعود البغوي صاحب تفسير معالم التنزيل وشرح السنة ومصابيح وغيره كتابونو المتوفى سنة (۵۱۶)هـ شافعي المذهب وو. (تذكرة ج(۴) ص (۵۲) همدا رنگه امام ابن عساكر المتوفى سـ۵۱۷ شافعي المذهب وو تذكره ج ۴ ص ۱۱۸)

امام الحازمي محمد بن موسى المتوفى سنة (۵۸۴) شافعي المذهب وو، تذكرة ج(۴) ص(۱۵۲).

امام عبد الرازق بن ابي محمد الشيخ عبد القادر الجيلاني د واړه ځوى او پلار حنبلي المذهب وو، تذكرة (۴) ص (۱۴).

امام عزالدين ابو الفتح المتوفى سنه (۶۱۳) حنبلي وو. (تذكرة (۴) ص (۱۸۶).

امام ابن الصلاح ابو عمرو عثمان المتوفى سنة (۶۴۳) شافعي وو. (تذكرة (۴) ص (۲۱۴).

امام شرف الدين يوسف بن الحسن النابلسي المتوفى (۶۷۰) شافعي وو تذكرة (۴)ص (۲۵۰)
همدارنګه امام نووي المتوفى سنه ۶۷۵ شافعي وو (تذكره ج ۴ / ۲۵۰)
حافظ ابن تيمية احمد بن عبد الحليم المتوفى (۷۲۸) حنبلي وو، نواب صديق حسن خان دده په باره
کې شيخ الحنابله ليکلي. (الجنة ص (۳۸).
امام يحيى بن معين المتوفى سنة (۲۳۳)ه امام الجرح والتعديل الثقة المامون احد الائمة الثقات
،تهذيب التهذيب ج(۱۱) ص (۲۸۸) کې ليکي: چې دا په علم حديث مرجع الاخلائق وو.
اوعلامه ذهبي په غالي حنفيانو کې شمار کړی دی خپله يحی بن معين وايي چې زما په نيز قراءت
دحمزة اوفقه دابو حنيفه معتبره ده ،اوهم پدې باندې ماخلق موندلي دي. [تاريخ بغداد ج(۱۲)
ص(۳۴۷)هج] دهغه حنفي کيدل يو واضح حقيقت دی.[فيض الباري ج(۱) ص(۱۶۹)، مقدمة نصب
الراية ص (۴۲).

## تفاسير

اکثر مشهور تفسيرونه مقلدينو لکلي دي،مثلاً تفسير بيضاوي،البحرالمحيط ،معالم التنزيل،
خازن،ابن کثير،قرطبی، تفسير کبير.
تفسير احکام القرآن للجصاص،مدارک ابو السعود،روح المعاني، مظهري په هندوستان باندې
دانګريزانو ددورې څخه مخکې تقريبا دوه لکه تفسيرونه ليکل شوي وو چې دا ټول مجتهدين او يا
مقلدين وو.

## ۲۵- پوښتنه: غيرمقلدين څومره فرقې دي؟

**جواب :** غير مقلدين ډېرې فرقې دي.

۱. جماعت غرباء اهلحديث تاريخ پيدايش (۱۳۱۳)هج
۲. کانفرنس اهل حديث (۱۳۲۸)ه
۲. امير شريعت (۱۳۳۹) ه
٤. فرقه ثنائيه (۱۹۳۸)ه

۵. فرقه حنفيه عطائيه (۳۰- ۱۳۲۹)ه

٦. فرقه شريفيه (۱۳٤۹)ه

۷. فرقه غزنويه (۱۳۵۳)ه

۸. جمعيت اهلحديث (۱۳۷۰)ه

۹. انتخاب مولانامحيی الدين (۱۳۷۰)ه

۱۰. جماعة الدعوة الى القرآن والسنة (۱٤۰۰) ه([1])

۱۱. د (۱۴۰۰) کال په شا او خوا کې يو بله ډله د پښاور په بده ببره کې په نوم د اشاعة التوحيد والسنة على منهاج السلف راپيدا شويده.

غير مقلد مولوي عبدالاحد خانپوري ليکي: چې نېچريه فرقه چې د معجزاتو او د کراماتو څخه منکره ده او قادياني فرقه چې د ختم نبوت او د حيات د عيسی ؑ څخه منکره ده او مرزا قادياني ته نبي وايي، چکړالوي فرقه چې د سنت څخه منکره ده ټول د اهلحديثو (غير مقلدينو) څخه وتلي دي يعنې دوي ټول اول غير مقلدين وو ([2])

## ۲٦- پوښتنه: ددې ډلې څو نومونه دي؟

جواب: په تقريبا يوه صدی کې دوي ډېر نومونه بدل کړل موحد، محمدي، غير مقلد، سلفي، اثري، غرباء اهلحديث، اماميه، تنظيم جماعت المسلمين اهل حديث، شبان اهل حديث...

## ۲۷- پوښتنه : اهل حديث څه معنی ده ؟

الجواب: د دې پوره تشريح به په مستقله رساله کې راشي. په اصل کې خو اهل خديث د اکابرو په اصطلاح کې د اهل نحو او اهل صرفو په شان په معنی د محدث او د شيخ الحديث سره استعمالېدلو لېکن، دوي په دې معنی اهل حديث نه دي.

[1] - خطبه امارت ص ٦٩.

[2] - ملخصا کتاب التوحيد والسنة ص۱ وص ۲.

دغیر مقلدینو مناظر اعظم ثناء الله امرتسري لیکي چې: داهل حدیث دلقب لپاره علم حدیث ندی ضروري[1]

همدارنګه دلامذهبو دحدیثو داسې یوه شرحه هم نشته چې په هندوستان باندې د انګریزانو د دورې څخه مخکني تاریخ ولري اوپه دې معنی هم اهلحدیث ندي چې دوي عمل بالحدیث کوي، ځکه دحدیث اطلاق په مرفوع، موقوف، مقطوع، مرسل، مدلس ټولو باندې کېږي لکن دوي صرف د یو قسم حدیث د منلو دعوی کوي، باقي دټولو څخه منکردي.

نو د دوي دعاداتو او د منشور سره مناسبه وجه داده، چې حضرت پیران پیر سید عبدالقادر جیلاني رحمه الله په غنیة الطالبین صفحه (۱۴۷) دشیطان په بحث کې کې یو روایت ذکر کړیدی چې: یوه ورځ شیطان په خپل مقعد کې خپله لکۍ ننیسته او اوه (۷) هګۍ یې وکړې، دهرې هګۍ څخه یې یو یو بچی پیداشو، اوهریو ته یې دانسان دګمراه کولو یوه یوه وظیفه ورکړه. دیو شیطان نوم په کې حدیث دی او دده وظیفه لمونځ کوونکو ته وسوسې غورزول دي. ددغې ډلې افعال اوکردارهم داسې دی چې لمونځ کوونکي په خپل لمانځه کې شکیان کوي، کله ورته وایي رفع الیدین دې ونکړو، کله ورته وایي تالاسونه دنوم څخه پورته ندي ایښي.

کله ورته وایي پښې دې آزاده ندي او همداسې ورپورې نښتی وي، حتی چې دهرعامي څخه به تاسو اورئ چې وایي مونږ حیران یو چې څرنګه لمونځ وکړو؟ نو معلومېږي چې دوي هم انګریزانو ددې لپاره مقرر کړي دي چې دلمونځ کوونکو په زړونو کې وسوسې واچوي. (نودوي اهلحدیث دې په معنی داهل ددغه شیطان چې نوم یې حدیث دی).

## ۲۸- پوښتنه: لامذهبو دکوم تاریخ څخه ځانونو ته دا نوم ایښی دی؟

جواب: ددې ډلې ایجاد په هندوستان کې شوی دی، په هندوستان کې ددوي اصلي نوم وهابي وو، بیا مشهور بریلوي عالم مولوی فضل رسول بدایواني ورپسې تبلیغات شروع کړل، چې دوي د محمد بن

---

[1] فتاوی ثنائیه ج۱ ص۱۰۱

عبدالوهاب هم مذهب دي، نو ددې تهمت دلرې کولو لپاره ټولو وهابيانو په متفقه طور باندې برطانوي حکومت ته عریضه وکړه چې د وهابي په لفظ باندې قانوني پابندي ولګوي.

او ددې جماعت نوم اهلحديث کړي، دعريضې متن داسې وو:

بخدمت جناب سکرٹری گورنمنٹ میں اپ کی خدمت سطور ذیل پیش کرنی کے اجازت اور معافی کاخواست گار ہوں (۱۸۸٦)ع میں نے اپنے ماہواری رسالہ اشاعۃ السنۃ میں شائع کیا تھا جس میں اس بات کااظہار تھا کہ لفظ وہابی جس کو عموماً باغی اور نمک حرام کے معنی میں استعمال کیا جاتا ہے لہٰذا اس لفظ کااستعمال مسلمانان ہندوستان کی اس گروہ کے حق میں جو اہل حدیث کہلاتے اور وہ ہمیشہ سے سرکار انگریزی کے نمک حلال اور خیر خواہ رہی اور یہ بات بارہا ثابت ہوچکے ہی اور سرکاری خط اور کتابت میں تسلیم کے جائے پس ہم کمال ادب وانکساری کے ساتھ گورنمنٹ سے درخواست کرتے ہی کہ وہ سرکاری طور پر اس لفظ وہابی کو منسوخ کرکے اس لفظ کے استعمال سے ممانعت کاحکم نافذ کریں اور ان کو اہل حدیث کے نام سے مخاطب کیا جاوے [اشاعۃ السنۃ ص ۲۴ جلد ۱۱ شمارہ نمبر ۲] نو ددوئ نوم په کال (۱۸۸۸)ع کې په انګريزي رجسټرو کې اهلحديث شو.

## ۲۹- پوښتنه: ایارسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حنفي یاشافعي یاحنبلي یامالکي و؟

الجواب: ایارسول الله ﷺ وهابي یاسلفي یااثری ...وغیره وو؟ ایارسول الله تاته دبخاری اودمسلم نوم خودلی دی؟ مخکې مونږ وویل چې د حنفي نسبت له وجې د ادنی مناسبت څخه دی او هغه دا چې په اجتهادیاتو کې مونږ دامام ابو حنیفة رحمه الله داجتهاد مطابق په دین عمل کوو، لکه د صحیح البخاری بخاري د حدیثو نسبت چې امام بخاری ته له دې وجې کیږی چې ده یې تدوین کړی دی.

## ۳۰- پوښتنه: خبره د اُمتي منل پکارده اوکه دپیغمبر؟

که دپیغمبر دخبرې منل پکار وي نو تاسو دامام ابوحنیفه خبره ولې منئ؟

(۱) الجواب: داسوال غیرمقلدینو (اهلحدیثو) د خپلو مشرانو ورونو (اهل قران) یعنې منکرینو حدیثو څخه زده کړی دی، دا اعتراض منکرینو حدیثو کړی وو چې خبره د خالق منل پکاردي او که دمخلوق؟ نو جواب ورکونکی به خامخا وائي چې د خالق دخبرې منل پکاردي.

نو منکرین د حدیثو بیا سمدستي وائي چې بخاری شریف خود بند ګانو کتاب دی، مسلم شریف خود بند ګانو کتاب دی، ابوداود ترمذی وغیره د بند ګانو کتابونه دي، د الله کتاب خو صرف قرءان کریم دی د هغې منل او په هغه عمل کول پکار دي د بند ګانو کتابونه ولې منې؟ نو غیرمقلدینو دا سوال د هغو ځخه غلا کړو او د فقهي په خلاف یې وکړو.

۲: جواب: د الله او د پیغمبر خبرې منصوصات دي او د امام خبرې اجتهادیات دي او مونږ ته الله تعالی د منصوصاتو او اجتهادیاتو دواړه د منلو حکم کړی (اطیعو الله) یعنې د الله خبره ومنئ (اطیعوالرسول) یعنې د مصطفی خبره ومنئ د الله خبره قران دی او د مصطفی خبره احادیث دي دا دواړه منصوصات دي (وأولی الأمر منکم) او د فقهاوو خبره ومنئ د فقهاوو خبره فقه ده او فقه اجتهادیات دي.

که د امتي خبرې د نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خبرې سره ټکر خوړو نو بیا صرف او صرف د نبي ﷺ د خبرې منل پکار دي، او که د امتي خبره د نبي د خبرې تشریح وه او د قران او د سنت ځخه استنباط وو، نو بیا ددې امتي د خبرې منل بعینه د نبي علیه السلام د خبرې منل دي، شاه ولي الله رحمه الله فرمایي چې (مَا اقتَدَينَا بِإمَامِنَا اِلَّا لِعِلمِنَا بِاَنَّهُ اَعلَمُ مِنَّا بِكِتَابِ اللهِ وَ سُنَّةِ رَسُولِهِ).

ترجمه: مونږ د خپل امام پسې خالص پدې خاطر اقتداء کووچې هغه زمونږ ځخه زیات او ښه په کتاب الله او په سنت الرسول پوهیږي.

۳: مونږ د الله ﷻ او د رسول ﷺ خبره منو خو د امام ابو حنیفه د تشریح او د راهنمائي مطابق. او په دې ملکونو کې د امام صاحب د راهنمائي او د تشریح ځخه بغیر د الله ﷻ او د پیغمبر اتباع نده ممکنه.

ددې مثال داسې دی لکه چې د جماعت په لمانځه کې یو امام وي او نور مقتدیان. امام تکبیر تحریمه وائي مقتدی یې هم وائي لکن د امام ځخه یې وروسته وائي او د امام په اتباع کې یې وائي.

نو د امام او د مقتدی دواړو تکبیرونه د الله ﷻ لپاره دي، لکن د مقتدي تکبیر د امام په اتباع کې دی، نو اوس دا ویل حماقت دی چې د مقتدي تکبیرونه د امام په اتباع کې دي فلهذا دا د الله لپاره نه دي همدارنګه امام قیام کوي او مقتدی ورپسې د امام په اتباع کې قیام کوي لکن د دواړو قیامونه د الله لپاره دی.

همدارنګه امام سجده کوي تشهد وغیره کوي او مقتدي يې هم کوي لکن د امام په اتباع کې، نو هيڅ څوک داسې نه شي ويلی چې د امام لمونځ د الله لپاره دی لکن د مقتدي لمونځ د خپل امام لپاره دی همدارنګې مونږ د محمد ﷺ اتباع کوو لکن د امام صاحب په راهنمائي او اتباع کې يې کوو.

نو داسې ويل هم حماقت دی چې تاسو صرف د امام صاحب اتباع کړې ده او د حضرت محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتباع مو پرېښې ده.

امام صاحب فرمائی (انا اخذ بكتاب الله، س صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فان لم اجد في كتاب الله فبسنة رسوله، فان لم اجد في سنته اخذت بقول اصحابه من شئت منهم وادع من شئت منهم ولم اخرج عن قولهم الي قول غيرهم فاما اذا انتهي الامر وجاء الى ابراهيم والشعبي وابن سيرين وحسن وعطاء وسعيد بن المسيب وعدد رجالا فقوم اجتهدوا فاجتهد كما اجتهدوا (عقود الجمان ص ۱۷۲) تاريخ بغداد ،ج ۱۳_ ص ۳۳۹ )

امام صاحب فرمائی چې زه د ټولو څخه مخکې مسئله د کتاب الله تعالی څخه رااخلم (نو حنفيان د ټولو څخه مخکې د امام صاحب په تابعداری کې په قرءان باندې عمل کوي) که هلته مسئله پیدا نه شوه نو بيايې د سنت الرسول څخه رااخلم، (نو په دوهم نمبر کې احناف د امام اعظم په پيروي کې په نبوي سنتو عمل کوي) که هلته پیدا نه شوه نو بيايې د صحابه وو څخه رااخلم (که د صحابه وو پرې اتفاق وو) او که د صحابه وو په مينځ کې اختلاف وو نو بيا (د تطبيق او ترجيح څخه وروسته) د يو صحابي قول رااخلم، او نور پرېږدم، خو د صحابه وو د اقوالو څخه نه وو زم الخ...

او په بل ځای کې امام صاحب فرمايي چې که د صحابه وو اختلاف وو نو بيا هغه مسئله رااخلم چې خلفاء راشیدینو پرې عمل کړی وي. او که هلته هم پیدا نه شوه نو بيا اجتهاد کوم.

## ۳۱ـ پوښتنه :فقه څنګه د قران او دحديث تشريح ده؟

که د فقهی هره مسئله د قران او د حديث تشريح وي نو د فقهې هره مسئله د قرءان او د حديث سره ملاويدل پکار دي، يعنې د فقه هره جزئيه يا د قران کريم د يو ايت ترجمه جوړيدل پکار دي، يا د يو حديث،

نو بیا مونږه منلې شو چې فقه واقعي د قران او د حدیث تشریح ده، حالانکه د فقهې په هره مسئله د قران یا د حدیث ترجمه نه کیږي.

الجواب: دا ضروري نه ده چې د فقهې هره هره جزئیه دې یا د قران کریم ایت وي او یا دې حدیث شریف وي تاسو د تشریح معنی هم نده فهم کړی، تاسو هم منئ چې احادیث د قران تشریح ده، لیکن د مشکواة بخاری، مسلم، ابوداود، ترمذی، ابن ماجه، نسائي، هر هر حدیث تاسې د قران څخه نشي ثابتولی، نو لکه څنګه چې هر حدیث د قران پاک د هر ایت څخه د نه ثابتیدلو باوجود د دې تشریح جوړیدی شي، نو همدارنګه فقه هم ده ځکه چې تشریح همیشه د هغه شي څخه زیاته وي د کوم چې تشریح کیږي، مثلا یو سړی پوښتنه وکړي چې قران څه شی دی؟

نو د پوهې والا به داسې تشریح وکړي چې دا قران یو داسې کتاب دی چې په حضرت محمد ﷺ باندې الله نازل کړی دی دا کتاب لاشک او لاریب دی نو اوګوره د کوم شي چې تشریح اوشوه هغه لفظ د (قران) دی، او ددې په تشریح کې ډیر الفاظ د وضاحت لپاره زیات شوي دي او په ډیرو ختونو کې د زیات وضاحت لپاره مثال هم ورکول کیږي، که څوک دا ووایې چې د تشریح هر هر لفظ په دې شي کې راته وښایه د کوم شي چې تشریح شوی ده، نو دا خبره د هغه کم عقلي ده، لکه څرنګه چې د هر حدیث ثبوت د قران څخه صراحةً غوښتل کم عقلي ده، نو بعینه همدارنګه د فقهې د هرې جزئې ثبوت د حدیث څخه اصراحةً غوښتل د عقل لوی قحط او یا کامل تجاهل دی.

## ۳۲- پوښتنه: ایا دا څلور واړه مذاهب مجموعه اسلام دی او که هر یو جدا جدا مکمل اسلام دی؟

الجواب: سائل په دین او په مذهب کې فرق نه دی کړی. د څلورو واړو مذاهبو دین یو دی او دا څلور واړه ورته لارې دي، لکه یو مسجد ته چې څلور لارې وي، یا داسې ووایه چې اسلام د منصوصاتو څخه عبارت دی او مذاهب یې اجتهادیات او توضیحات دي، مخکې د پنځم نمبر اعتراض لاندې تشریح تیره شوې ده.

## ۳۳- پوښتنه په رسول الله ﷺ څلوراسلامه نازل شوي وو او که يو؟

(۱) الجواب: په رسول الله ﷺ اوه قراتونه نازل شوي وو او که يو؟

(۲) جواب: د څلورو واړو مذهبونو اسلام يو دی. سائل د مذهب او د اسلام په منځ کې فرق نه دی کړی اسلام د مسائلو څخه عبارت دی او مذهبونه د دې مسائلو توضيحات دي، اسلام د منصوصاتو څخه عبارت دی او مذهبونه د اجتهاديا تو څخه عبارت دي، تفصيل مخکې د پنځم اعتراض لاندې تېر شوی دی او د نهه ديرشمې پوښتنې لاندې هم را روان دی.

## ۳٤- پوښتنه: داحنفی، مالکي اوشافعي داسلام اقسام دي ؟

الجواب: که چيرته دا د اسلام اقسام نه وي نو ايا د کفر اقسام دي ؟

که حنفی او شافعی ... د اسلام اقسام نه وي نو غرباء اهلحديث ،امراء اهلحديث ،جماعة المسلمين فرقه مسعوديه ، لشکر طيبه ، سلفی، اثری، جماعة الدعوة ،اشاعة التوحيد والسنة على منهاج السلف په کوم دليل د اسلام اقسام دي ؟

مخکې مونږ وويل چې د حنفی نسبت له وجې د ادنی مناسبت څخه دی او هغه دا چې امام صاحب د دې نبوي مسائلو تدوين کړی دی. لکه د رسول الله صلی الله عليه وسلم احاديث چې امام بخاري رحمه الله وغيره ته له دې وجې منسوبيږي چې دوي يې تدوين کړی دی.

## د سنت او د حديث په منځ کې فرق: اهل حديث اهل سنت دي او که نه؟

د حديث او د سنت په مابين کې نسبت د عموم او خصوص من وجه دی د سنت لپاره څلور شرطه دي

اول شرط دا چې يو کار به رسول الله ﷺ عادتاً کړی وي ضرورتاً به ئې نه وي کړی.

دوهم شرط دا چې نبی کريم ﷺ به دا کار دائماً کړی وي وروسته به يې پرې ايښی نه وي.

دريم شرط: دا دی چې نبی کريم به دا کار د امت د عمل لپاره کړی وي خصوصيت د نبي به نه وي.

څلورم شرط: دادی چې د أمتي لپاره به عمل وربانديې ممکن وي، د معراج په احاديثو عمل ندی ممکن، لهذا معراج سنت ندی؟

نو په کومو احاديثو کې چې داسې عمل راشي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم عادتاً او دائماً کړی وي، یا دنبي ﷺ آخري عمل وي، او دامت دعمل لپاره ئي کړی وي، نو دا حدیث هم شو او سنت هم شو، مثال: لکه تکبیر تحریمه دا رسول الله عادةً کړی ده ضرورةً یې نه ده کړی، همدا رنګه وروسته یئ پرې ایښی نده بل دا چې دامت دعمل لپاره ئي کړی دی خصوصیت ئي ندی، نو دا سنت هم شو حدیث هم شو دا ماده داجتماع دسنت او د حدیث شوه.

او اوله ماده دافتراق چې: اول شرط مونږ دا بیان کړی وو چې سنت هغه عمل دی چې نبي ﷺ عادةً کړی وي ضرورةً یې نه وي کړی نو که نبي ﷺ یو کار ضرورةً کړی وي نو هغه اګر چې حدیث دی لکن سنت نه دی لکه دنبي علیه السلام په ولاړه اودس ماتول، چې نبي کریم ضرورتاً کړي دي، په ملائي درد یا بل څه عذر وو، نو دا حدیث دی، خو سنت نه دی وګټوري اهلحدیث لا مذهبه وائي چې په ولاړه باندې بولې کول سنت دي؟ نو مونږ ورته وایو چې بیا به ستاسې زنانه په دې سنتو باندې څنګه عمل کوي؟

دویم شرط داوو چې نبی کریم به دا عمل عمل دائماً کړی وي او بیا به ئي پرې ایښی نه وي، که وروسته ئي پرې ایښی وي نو دا حدیث دی خو سنت ندی، لکه د بیت المقدس طرفته لمونځ پیغمبر کړی دی په احادیثو کې شته خو سنت نه دی. دریم شرط داوو چې نبی کریم به دامت لپاره کړی وي دخپل ځان لپاره به ئي نه وي، کړی یعني خصوصیت به ئي نه وي که خصوصیت ئي وو نو دا بیا سنت ندی لکه نهه (۹) بیبیانې دا په حدیث کې شته خو سنت ندي.

دوهمه ماده افتراقي چې سنت به وي حدیث به نه وي لکه سنت دخلفاء راشدینو، مثلاً اول اذان دعثمان رضی الله عنه دا سنت دی خو په مرفوع حدیث کې نشته، نو سنت دی خو مرفوع حدیث نه دی، نو اوس مقصد دادی چې دا وګټوري اهل الحدیث اهل سنت ندي، ځکه چې دوی ځانونه ته په دې معنی اهلحدیث وايي چې عمل بالحدیث کوي، نو اوس که یو سړی په ولاړه بولي کوي نو دا سړی اهل الحدیث

دی ځکه چې په حديث باندې يې عمل و کړو، خو اهل سنت نه دی او يو سړی چې بيت المقدس ته لمونځ کوي نو دا اهل الحديث دی ځکه چې په حديث يې عمل و کړو خو اهل سنت ندی، يو سړی چې نهه بنځې کوي دا اهلحديث دی ځکه چې په حديث يې عمل و کړو خو اهل سنت ندی.

نو خلاصه دا چې اهل حديث اهل سنت نه دي، او اهل الجماعة هم نه دي ځکه چې له جماعة څخه امتيان مراد دي او دامتيانو د خبرو منلو ته دوي تقليد وائي او تقليد تـه كفر او شـرک وايي.ددې يو ځه نور تفصيل د (۴۲) پوښتنې لاندې راروان دی.

## د اهل سنت والجماعت مختصره معنی

سنت قانون ته وائي او جماعة مقدسو اشخاصو ته وايي، يعنې دقـانون منـل دمقدسو اشخاصو په رهنمائي کې، نو غير مقلدين اهل سنت والجماعة نه دی، ځکه چې دوي دمقدسو اشخاصو راهنمائي نه مني ددې بحث نور تفصيل (۴۲) پوښتنې لاندې وګورئ.

## ۳۵ـ پوښتنه : غير مقلدين له کوم وخت څخه شروع شو؟

تاسو مخکې وويل چې دصحابه ﷺ څخه شروع تر ائمه اربعه وو پورې ټول خلک مقلدين وو، نو غير مقلدين دکوم وقت څخه شروع شو؟

جواب : (۱) بعضې وايي چې دوی دمحمدبن عبدالوهاب نجدي پيروان دي او دهغه د زمانې څخه راپيدا شول.

له دې وجهې يې دوي ته وهابيان ويلی، لېکن دا خبره غلطه ده ،ځکه چې دوي اګر چې دمحمد بن عبدالوهاب د نظريـاتو څخـه متـاثره دي، لکـن بيـا هـم محمـد بـن عبـدالوهاب مقلـد وو، او وکثـوري اهلحديث وايي چې مونږ غير مقلدينو يوو کله چې د محمد بن عبدالوهاب نجدي ډلـه پـه حرمينو باندې قابضه شوه، نو په مکه مکرمه کې عبدالله بن محمد بن عبدالوهاب اعلان وکړو، چې مـونږ پـه فروعـو کې دامـام احمـدبن حنبـل رحمه الله پـه مـذهب يـو، چونکـه دامـام ابوحنيفـه ،امـام مالـک ،امـام شـافعي او امـام احمـدبن حنبـل رحمهـم الله مذهبونـه منضبط دي، لـه دې وجهـې ددې مـذهبونو پـه پيروانـو بانـدې مـونږ

اعتراض نه کوو، ددې څلورو مذهبونو څخه ماسوی مثلاً زيديه، روافض، اماميه، ددوي مذاهب منضبط نه دي، له دې وجهې دا مونږ نه منو، مونږ به خلک مجبور کړو چې په دې څلورو امامانو کې ديو تقليد وکړي، (۱) دوهابي ډلې تفصيل به د رسالې په آخر کې راشي.

دمصر ډاکټر محمد البهي دوهابي تحريک په بيان کې ليکي چې په اتمه صدۍ کې محمد بن عبدالوهاب ددې تحريک بنياد په حنبلي مذهب باندې کيښود لو. الحرکة الوهابيه ص ۳۱.

(۲) د(۱۹۱۱) کال څخه مخکې دوي په عالم اسلام کې بالکل قابل ذکر نه وو، په (۱۹۱۱) ع کې په يوه مردم شمارۍ کې دمسلمانانو تعداد داسې بيان شوی وو:

۱. اثناعشري يو کروړ اوه دېرش لاکه
۲. زيدي دېرش لاکه
۳. حنبلي دېرش لاکه
٤. مالکي يو کروړ.
۵. شافعي لس کروړه
٦. حنفي د اوه دېرش (۳۷) کروړو څخه زيات (۲)

نو په (۱۹۱۱) ع کې ټول اهل سنت والجماعت د اته څلوېښت کروړه او دېرش لاکهو نه زيات وو، اوغير مقلدين پکې بالکل قابل دذکر نه وو.

(۳) دغير مقلدينو مشهور عالم او مؤرخ شاه جهانپوري په (۱۹۰۰) ع کې په خپل کتاب الارشاد کې ليکي: ديو څه وخت نه راپه دېخوا يو څو کسان راپيدا شويدي چې خلک ورسره بالکل نا اشنا دي، دوي ځانونو ته اهلحديث، محمدي يا مؤحدين وايي خو خلک ورته وهابيان، لامذهبه، اوغير مقلدين وايي. (۱) الارشاد الى سبيل الرشاد صـ ۱۳)

---

[1] الهدايه السنية مؤلفه علامه سلمان بن سحمان، اردو ترجمهة تحفة وهابيه اسماعيل غزنوي صـ ٦١.
[2]

ددې څخه معلومېږي چې دايوه بدعتي او نوې فرقه ده (۴) داسلام دتاريخ څخه.

هم دامعلومېږي، څکه چې په اسلامي مکتبو کې ،طبقات حنفيه ، طبقات مالکيه، طبقات شافعيه ،طبقات حنبليه ، کتابونه شته دي چې ذدوي دمحدثينو فقهاوو ،مفسرينو سلاطينو او نورو علمي طبقاتو ذکر په کې شويدی.

لېکن دطبقات غيرمقلدين په نوم يکې هيڅ کتاب نشته، بلکه دغير مقلدينو په نوم يوه رساله هم په کې نشته، دمذاهبو اربعه وو کتابونه دحديثو ، دتفسير، دفقهې د اصول، داصول حديث،داصول تفسير،اسماء الرجال، په هرځای کې شته لکن دغير مقلدينو يوه رساله هم داسې نشته چې په هندوستان باندې دانگريزي دورې څخه مخکني تاريخ ولري.

(۵) خلاصه دا چې رسول الله ﷺ دفتح دهند وړاند وينه ورکړه.[۲]

داپېش گويي او وړاند وينه الله ﷻ داحنافو په لاسو پوره کړه احنافو هندوستان فتح کړو.

دفتح څخه وروسته تر(۱۲۹۳) پورې په دې سلگونو کلونو کې په هندوستان کې دغير مقلدينو کتابونه او مدرسې نه وې.

(۶) بيا چې کله دانگريزانو منحوس قدمونه هندوستان ته داخل شو ، اود احنافو اسلامي حکومت يې ختم کړو احناف چه (۱۸۵۷) کې د انگريزانوپه خلاف په جهاد مصروف وو ، انگريزانو يو طرف ته په زرگونو احنافو علماوو ته اعدام ورکولو ، بل طرف ته يې دمذهب د ازادۍ اعلان وکړو ، ملکې وکټوريې اشتهارونه خواره کړه چې تاسو دحنفي مذهب څخه آزاد يئ لامذهب او غير مقلد جوړشئ، نو دبرطانوي حکومت په خير خواهانو کې به شمارشئ، اوکه پخپل حنفي مذهب ټينگ پاتې شئ نو دسرکار

---

[۱]- الارشاد الی سبيل الرشاد صـ ۱۳.

[۲]- (مسند احمد ج ۵ صـ ۱۷۸) ج ۲ صـ ۲۲۹ ج ۲ صـ ۳۶۹ )نسائي باب غزوة الهند.

برطانیه څخه به باغي شمارشئ، مقصد یې وو (لړاو اورحکومت کرو) .(۱) (مسلمانان خپل مینځ کې وجنګوه او حکومت وکړه) .

ددې اعلان څخه وروسته یو خودسره او متعصبه فرقه راپیدا شوه، ددې فرقې اول قدم په سلفو باندې بدګماني وه، او انتهاء یې دسلفو پر خلاف بد زباني وه. ددوي هریو فرد ددې حدیث مصداق وو چې (لَعَنَ آخِرُ هٰذِهِ الْأُمَّةِ أَوَّلَهَا) ددې فرقې هرفرد ځان دائمه وو بلکې دصحابه وو څخه بهترشماري.

(۷) دحضرت ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها په باره کې ګستاخ مولوي عبدالحق بنارسي (باني غیر مقلدیت) ښکاره اعلان کوي چې (حضرت عائشه رضي الله عنها دحضرت علي رضي الله عنه سره جنګېدلې ده که توبه یې نه وي وېستلې نو مرتده مړه شوې) نعوذبالله من ذلک.

په بل ځای کې لیکي چې دصحابه وو رضي الله عنهم علم زما دعلم څخه کم دی ځکه دهغوي هریو پنځه پنځه حدیثونه یاد وو او ماته ددوي ټولو احادیث یاد دي.(۲)

(۸) مشهور غیر مقلد نواب صدیق حسن خان لیکي: په دې زمانه کې یوه ریاکاره او شهرت پسنده فرقه راپیدا شوې ده چې دټولو نقصانونو باوجود دقرآن او دحدیثو دعلم دعویدار دي، حالانکه دقرآن او دحدیث سره ددې فرقې هیڅ تعلق نشته .

داخلک دعلوم آلیه وو او عالیه وو دواړو څخه خالي دي. (۳) دا خلک داسلام دحلاوت څخه بالکل خالي الذهن دي، دمسلمانانو په خلاف دېرتنګ زړي او سخت زړي دي.(۴) يَقُوْلُوْنَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ وَهُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ. (۵)

---

۱- جنګ ازادي ص ۴۰۹.

۲- (کشف الحجاب ص ۴۲) قاري عبدالرحمن پاني پتي دشاه اسحاق شاګرد.

۳- (الحطه ص ۱۵۳)

په الله قسم چې دا خلک ځانته خالص موحدين وايي او نورو مسلمانانو ته بدعتي او مشرک وايي حالانکه دا خلک د ټولو څخه زيات غالي او د دين په باره کې ډېر متعصب دي (الحطه ص ۱۵٦) فَمَا هَذَا دِيْنٌ اِنْ هَذَا الافِتْنَةٌ فِيْ الاَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيْرٌ.[۱]

(۹) نواب صديق حسن خان په (۱۳۱۲) هـ کې کتاب ليکلى دى په هغه کې ليکي:

خلاصه دا چې د کوم وخت نه هندوستان ته اسلام راغلى دى نو چونکه اکثر خلک د بادشاهانو طريقې خوښوي نو د ابتداء د اسلام څخه تر اوسه دا خلک حنفيان وو، د لته د همدې مذهب مفتيان قاضيان او حاکمان وو تردې چې د دې خلکو يو غټ جماعت يو ځاى شو او فتاوى عالمگيري يې وليکله.[۲]

(۱۰) بيا ليکي: چا او ربدلي دي چې يو متبع قرآن او سنت د انگريز سرکار سره بې وفا يې کړيده يا بغاوت ته آماده شوى دى.

کوم کسان چې غدار او انگريزي حاکمانو سره عناد لري ټول مقلدين د حنفي مذهب دي.[۳]

**نوټ**: انگرېزانو به غدر جهاد ته ويلو. (۱۱) انگرېزانو چې په هندوستان خصوصاً په ډهلي کې په زرگونو زره علماء شهيدان کړل او په لکونو عوام يې په وينو ولړل او ترډېرو ځو پورې يې قتل عام روان کړى وو، د دوي په بآره کې نواب صديق حسن خان ليکي: او د حاکمانو اطاعت او رئيسانو ته انقياد په ملت د ټولو واجباتو څخه غټ واجب دى.[۴]

(۱۲) بيا ليکي: جهاد او مذهبي جنگ په مقابله د برټش گورنمنټ هند، چا چې د مذهبي ازادۍ اعلان کړى دى، د شريعت له رويه خلاف او ممنوع دى.

---

۱- (الحطه ص ۱۵٦)

۲- (ترجمان وهابيه ص ۱۰ و ص ۱۱)

۳-(ترجمان وهابيه ص ۲۵).

٤- (ترجمان وهابيه ۹۵)

او چاچې په مقابله د برټش ګورنمنټ هند اسلحه را وچته کړې ده او مذهبي جهاد کوي داخلک باغیان، دي او د باغیانو د سزا مستحق دي ،په دې فتوی د ټولو غیر مقلدینو دستخطونه شته.[۱]

(۱۳) لوی غیر مقلد محمد حسین بټالوي لیکي: انګرېزي حکومت سره جنګېدل او د جنګېدونکو سره یې مدد کول غدر او حرام دی.[۲]

(۱۴) نو ددوي ایجاد د جهاد د مقابلې لپاره وو، چې داکارېې ښه په اخلاص سرته رسولو، او په دلیل کې به یې داسې ویل: چې رسول الله ﷺ فرمائي چې قیامت ته نزدې به په هر ځای کې د عیسایانو حکومت وي ددې احادیثو مطابق دلته انګرېزي حکومت دی، نو لهذا ددوي سره جنګ جهاد ندی بلکه نساد دی او د پېغمبر ﷺ د فرمان مخالفت دی.[۳]

(۱۵) جنګ او جهاد په مقابل د برټش ګورنمنټ هند، چاچې مذهبي آزادي ورکړې، د شریعت له نظره خلاف او ممنوع دی، ځوک چې د انګریز په خلاف اسلحه را اخلي باغي دی او د باغیانو د سزا مستحق دی، په دې فتوی د ټولو غیر مقلدینو دستخط شته.[۴]

(۱۶) لوی غیر مقلد محمد حسین بټالوي لیکي: د انګریزي حکومت په خلاف مذهبي جنګ هېڅکله نه دي جائز.[۵]

(۱۷) دنور تفصیل لپاره د غیر مقلد نواب صدیق حسن خان ترجمان وهابیه او تعارف علماء اهل حدیث وګوره. خلاصه دا چې د انګرېزي ملکي وکټوزي د اعلان سره دا فرقه راپیدا شوه ددوي باني میا

---

۱- (ترجمان وهابیه صـ ۶۱)

۲- (الاقتصاد في مسایل الجهاد صـ ۴۹)

۳- (ترجمان وهابیه صـ ۷)

۴- (ترجمان وهابیه صـ ۶۱)

۵- (ترجمان وهابیه ۱۹)

نذیر حسین دهلوي او عبد الحق بنارسی وو، میا نذیر حسین به اول د شاه محمد اسحق په درس کې کیناستو، مذهبي څېړنه یې ډېره خوښېده.(۱)

او خپل لامذهبیت یې پټ ساتلی وو بنا بر تقیه، قاري عبد الرحمن صاحب د شاه محمد اسحق شاګرد او د شاه محمد اسماعیل شهید خلیفه په خپل کتاب کشف الحجاب ص۱۹ کې لیکي:

سید نذیر حسین او حفیظ الله خان او مولوي عبد الحق بنارسي چې کله اول ځل د شاه محمد اسحق په درس کې حاضر شو، ځانونو ته به یې اهل سنت ویلی او چا به چې په امام ابو حنیفه طعن لګولونو د قرآن او د حدیث څخه به یې جواب ورکولو او د ډېرې غصې څخه به یې خپله خوله د زګونو څخه ډکوله ترڅو چې خلک ورباندې ښه ګومان وکړي، لېکن کله چې شاه صاحب وفات شو او دوي ته ډهلي خالي ښکاره شو نو ورو ورو ئې خپله عقیده ښکاره کړه او خلک یې د روافضو په سرک روانول شروع کړل. بیا په صفحه (۸) کې لیکي چې میا نذیر حسین د سید محمد مجتهد شیعه څخه د خطونو په ذریعه باندې مطاعن ابو حنیفه را وغوښتل او خپل ټول همت یې په ایمه وو باندې په طعن کې مصرف کړو، په صحابه وو او ائمه وو باندې طعن ته به یې جهاد ویلی د مسلمانانو پخپلو کې جنګول ورته عبادت عظمی ښکارېدو، د مولوي نذیر حسین په شیعه والي کې هیڅ شک نه وو.(۲)

(۱۸) د شیعه ګانو په مذهب کې یوه مسئله د ه تقیه ورته وایي د نذیر حسین تقیه تر یو کافي وخت پورې وه اخر د انګریزي حکومت د یو ملازم حافظ محمد یوسف په ډاډ ګېرنه د ه ځان ښکاره کړو او ښکاره یې په غیر مقلدیت باندې عمل شروع کړو.(۳)

(۱۹) په افغانستان کې د روسانو له وخت څخه را پیدا شول، چې دوه لیډرانیې لرل، یو سیاف چې اوس د صلیبي پارلمان غړی دی ،او بل مولوي جمیل الرحمن، غیر مقلد مسلم دوست لیکي چې د ده د تنظیم شوری به د پاکستان د ای آس آی افسرانو ته بغلي تحفه کولې، د ده د ژوند نور حالات د ده د تنظیم

۱-(تحفة العرب و العجم ص ۶)

۲-(کشف الحجاب ص ۸)

۳-(نقوش ابو الوفا، ص ۴۳ و ص ۴۱)

ديو مخور غړى غير مقلد مسلم دوست په كتاب (ماتې زولنې) كې وګوره په لوستو به يې حيا درشي.صاحب البيت ادرى بما فيه (۲۰) خلاصه دا چې:

## لامذهبه وګټوري اهلحديث دانګريزانو پيداوار دي

دلامذهبو اهل حديثو سلسله پنځو مشرانو ته رسيږي (۱) عبدالحق بنارسي (۲) نذيرحسين دهلوي (۳) نواب صديق حسن خان (۴) نواب وحيد الزمان (۵) عبدالله غزنوي،

داپنځه واړه په هندوستان كې وو او په هندوستان باندې دانګريزانو دحكومت په دوركې را پيدا شول،عبدالحق بنارسي دشاه اسماعيل شهيد حنفي شاګرد دى نذير حسين دشاه اسحق رحمه الله حنفي شاګرد دى، نواب صديق حسن خان دمولانا فضل الرحمن رحمه الله ګنج مراد آبادي حنفي مريد اوشاګر دى، وحيد الزمان دمولانا سلامت الله كانپوري رحمه الله حنفي شاګرد دى، عبدالله غزنوي دحبيب الله قندهاري رحمه الله حنفي شاګرد دى.

(۲۱): په هندوستان كې په (۱۸۵۷) عيسوي كې دجنګ آزادى معركه وه، دسيداحمدشهيد رحمه الله يو خليفه مولانا سرفراز علي رحمه الله حنفي دمجاهدينو اميروو، اوجنګي قومندان دده يو مريد جنرل بخت خان حنفي رحمه الله وو، دوي دبادشاه بهادرشاه ظفر حنفي سره يوځاى شول، او ډهلي يې فتح كړو، په دغه معركه كې حاجى امداد الله مهاجر مكي رحمه الله مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله، مولانا رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله، مولانا رحمت الله كيرانوي رحمه الله، حافظ ضامن شهيد رحمه الله وغيره احناف علماء هم ملګري وو، لكن بل طرف ته انګريزانو د داخلي منافقانو او دغيرمقلدينو ددې مذكورو مشرانو څخه ډيركار واخيستلو اوبېرته يې ډهلي ونيولو.

(۲۲) : نذيرحسين دمجاهدينو په خلاف فتوى وركولى، دده فتاوى ده كتاب دى په نوم د نذيريه، په هغې كې يې باب لګولى دى په نوم دكتاب الامارة والجهاد، هلته دده څخه پوښتنه شوى ده چې جهاد فرض عين دى او كه فرض كفايي ؟ نو نذيرحسين جواب وركوي چې جهاد فرض كفائى دى، لكن دجهاد لپاره يو څو شرطونه دي، چې ترڅو پورې هغه شرطونه نه وي موجود شوي جهاد نه كېږي او بيا په آخر كې ليكي چې نن سبا هغه شرطونه كوم شرط هم نشته، فتاوى نذيريه ج دريم صفحه (۲۸۴)

د انگریزانو سره د جهاد په باره کې ترېنه پوښتنه شوې ده، نو دی ورته په جواب کې لیکي چې: علاوه لا داچې مونږ معاهدین یو، مونږ د سرکار سره عهد کړی دی، نو بیا څرنگه د عهد څخه مخالفت کوو دعهد شکنۍ ډېر مذمت په حدیثو کې راغلی دی، فتاوی نذیریه ج (۳) ص (۲۸۴)

(۲۳) : غیرمقلدینو به د مجاهدینو جهاد ته غدر ویلو او د جهاد په خلاف یې دوه رسالې ولیکلې، یوه نواب صدیق حسن خان ولیکله په نوم د ترجمان وهابیه، او بله محمد حسین بټالوي ولیکله په نوم د الاقتصاد في مسائل الجهاد، په دې دواړو رسالو کې یې دا فتوی جاري کړی چې د انگریزانو په خلاف جهاد حرام دی او د (۱۸۵۷) کال په جنگ آزادۍ کې د اولسو زرو څخه زیاتو شهیدانو شو علماو ته یې مردار وویل.

(۲۴) : د نذیر حسین سوانح نگار لیکي چې: عین د غدر (جهاد) په حالت کې یوه انگریزه مسنر لیسنس په زخمي حالت کې نذیر حسین په داسې حالت کې کورته راوستله چې هر بچی د انگریزانو دښمن وو، هغه یې درې میاشتې په کور کې وساتله او د هغې یې پوره علاج او خدمت وکړو، که په دغه وخت کې ظالم باغیان (مجاهدین - از ناقل) خبر شوي وای نو د نذیر حسین د کور په تباه کولو کې به یې هیڅ تاخیر نه وی کړی، باغیان (مجاهدین) په څنگ کې مسجد ته راغلي وو، لیکن تر دریو میاشتو پورې پدې پوه نه شول چې په څنګ کې حویلۍ کې څو مره کسان دي، کله چې درې میاشتې بعد پوره امن قائم شو، او انگریزه پوره صحتمنده شوه، نو نذیر حسین انگرېزي کېمپ ته ور وړله، چې د دې کار نامې په عوض کې ورته یو زر درې سوه روپۍ انعام میلاو شو - الحیات بعده الممات (۱۲۷)

(۲۵) : په هندوستان باندې د انگریزانو د دورې څخه مخکې د غیرمقلدینو هیڅ مدرسه هیڅ مسجد او هیڅ کتاب نشته د دوي د هر کتاب هرې مدرسې او هر مسجد تاریخ د انگرېزانو د دورې څخه شروع دی

## ۳٦- پوښتنه: غیرمقلدین وایي چې دلایل صرف دوه دي یو قرآن او بل حدیث آیا دا خبره صحیح ده ؟

الجواب: دلایل څلور دي: (۱) قرآن (۲) حدیث (۳) اجماع (۴) قیاس

**چلنج:** غیر مقلد محمد حسین بټالوي د تقلید شخصي په باره کې یو اشتهار چاپ کړی وو، په هغه کې یې لیکلي وو، چې د تمام هندوستان احنافو ته زماله طرفه چیلنج دی، چې د قرآن دیو ایت یا دیو حدیث شریف څخه راته ثابته کړي، چې په هغه کې صراحةً ذکر وي چې په تمامو مسلمانانو باندې د امام ابوحنیفه رحمه الله یا د امام شافعي رحمه الله یا د بل کوم امام تقلید واجب دی.

حضرت شیخ الهند رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته ولیکل چې د جواب څخه مخکې زه ستا څخه د داسې د دوو مسئلو په باره کې پوښتنه کوم، چې دواړه مسئلې د ټولو مسلمانانو په مابین کې اتفاقي دي، بلکې د اسلام بنیاد دی.

اوله مسئله: د قران کریم واجب الاتباع کېدل په کوم دلیل ثابت دي؟

دوهمه مسئله: د حدیث النبي صلي الله علیه وسلم، واجب الاتباع کېدل په کوم دلیل ثابت دي؟

مهرباني وکړه د دې لپاره داسې دلیل ووایه چې نه پکې دور لازم شي او نه پکې مصادره علي المطلوب لازمه شي، د اولې مسئلې د اثبات لپاره د قرآن آیت نشې پېش کولی، ځکه چې بیا مصادره علی المطلوب راځي، او همدارنګه د دې مسئلې د اثبات لپاره د رسول الله صلي الله علیه وسلم حدیث هم نشې پېش کولی ځکه چې بیا دور لازمېږي ځکه چې د احادیثو واجب الاتباع کېدل د قران د واجب الاتباع کېدلو پورې موقوف دي، اوس که د قرآن واجب الاتباع کېدل د حدیث پورې موقوف شي نو دور راغلو.

همدارنګه د دوهمې مسئلې د اثبات لپاره حدیث نشې پېش کولی ځکه چې بیا مصادره علی المطلوب راځي، او همدارنګه د دې مسئلې د اثبات لپاره د قرآن کریم آیت هم نشې پېش کولی ځکه چې بیا دور لازمېږي ځکه چې د قرآن واجب الاتباع کېدل موقوف دي تر واجب الاتباع کېدلو د احادیثو پورې، اوس که د احادیثو واجب الاتباع کېدل موقوف شي تر واجب الاتباع کېدلو د قران پورې نو لازم به شي دور.

او که چېرته دا دواړه مسئلې په بل کوم درېیم دلیل باندې ثابتوې، نو بیا سوال دا کوو چې د دغه درېیم دلیل واجب الاتباع کېدل د کوم دلیل څخه ثابت دي؟ که چیرته د قرآن د آیت څخه او یا د کوم حدیث څخه وي نو دور لازم شو.

او که د بل کوم څلورم دليل څخه ثابت وي نو بيا زمونږه سوال په دغه څلورم دليل کې دی چې دده واجب الاتباع کېدل په کوم دليل ثابت دي؟ که په ايت د قرآن يا حديث او يا د درېم دليل باندې ثابت وي نو دا دور دی، او که په بل پنځم دليل باندې وي نو دا خو تسلسل شو.

نو غير مقلد دغه مسائل په نص نشي ثابتولی ځکه چې دده په نيز دليل نقلي منحصر دی په قرآن او په حديث کې او په دوئ باندې يې چې ثابتوي نو دغه مذکور باطل شيان به لازمېږي او که چېرته غير مقلد ته ياد ده ملګرو غير مقلدينو ته وحی کېږي نو بيا خو عجيبه ده چې رسول الله صلی الله عليه وسلم خاتم النبيين هم مني، او وحی الهی هم ورته کېږي.

نو زمونږ له طرفه درته دا ګزارش دی که تاسو دغه دوه مسئلې په اجماع الامة او قياس ثابتوئ نو مونږه هم تقليد شخصي ديو امام په اجماع الامة واجب ګڼو. (ادلة کامله ص۷۷ ص۷۸ ص۷۹ مطبعه قديمي کتب خانه کراچي) نو د اهل سنت والجماعت د قايلينو د اجماع په نزد باندې جواب ډېر آسان دی او هغه دا چې قرآن په ثبوت کښې موقوف دي تر اجماع پورې او اجماع په حجيت کښې موقوفه ده تر قرآن پورې فلا دور، ليکن غير مقلدين دا جواب ځکه نشي کولی چې هغوي اجماع نه مني، د اجماع او د قياس د حجيت دلايل وروسته تفصيلاً را روان دي.

## ۳۷- پوښتنه: ته ولې ابوبکري او عمري نه يې؟

يعنې ته د حضرت ابوبکر صديق او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په مذهب باندې ولې نه يې؟

ځواب: دا اعتراض هم د ابن سبا پيداوار نه دی، بلکې ډېر زوړ اعتراض دی. او د يو رافضي څخه سرقه ده. او د شيعه ګانو قی خوري ده.

حافظ ابن تيميه رحمه الله دا اعتراض داسې رانقلوي چې: قال الرافضي: ذهب الجميع منهم الى القول بالقياس والاخذ بالرأى فادخلوا فى دين الله تعالى ما ليس منه، و حرفوا احكام الشريعة واتخذوا مذاهب اربعة لم تكن فى زمن النبى صلى الله عليه وسلم ولا زمن الصحابة و اهملوا اقاويل الصحابة مع انهم نصوا على ترک القياس و قالوا اول من قاس ابليس .... الخ. [ منهاج السنة / ج ۲/ ص ۸۹ / طبع بولاق].

ترجمه: روافض وايي چې: ټول اهل سنت والجماعت د قياس قايل دي، او په رأى باندې عمل كوي. اودوي د الله تعالى جل جلاله په دين كې هغه څه داخل كړل چې له دين څخه نه دي. او دوي د شريعت احكام بدل كړي دي او څلور مذاهب يې جوړ كړي دي. داسې مذهبونه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم اود صحابه وو په زمانه كې نه وو، اودغو اهل سنتو د صحابه وو خبرې پرېښې دي، حالانكه صحابه وو د قياس په پرېښودلو باندې تصريح كړې ده. اودا يې ويلي دي چې: اول قياس ابليس كړى وو. انتهى.

دا اعتراض ډېر لوى دى. چې دا هم پكې دي چې تاسو ولې ځانته د شافعي او دحنفي په ځاى ابوبكري او عمري نه وايئ؟ دغه اعتراض ته حافظ ابن تيميه ځوابونه وركړي دي چې خلاصه يې داده:

۱- د امامانو مسئلې خپلې مسئلې نه دي، بلكې دا هغه مسئلې دي چې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم اود صحابه وو څخه مسلسلې را روانې دي. لكه د بخاري اود مسلم حديثونه چې د دوي خپل حديثونه نه دي بلكې دا هغه احاديث دي چې د حضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم او له صحابه وو څخه مسلسل را روان دي. دوي ته يې نسبت يوازې له دې امله كېږي چې دوي يې تدوين كړى دى او ترتيب يې وركړى دى.

۲- د مذاهبو اربعه وو كتابونه چې ګورئ نود صحابه وو د اقوالو اود افعالو څخه پكې با قاعده استدلالات كېږي. نودا ددې دليل دى چې دوي د صحابه وو اقوالو او افعالو ته حجت ويلو.

۳- ځانته ابوبكري او عمري له دې وجهې نه وايو چې: حضرت ابوبكر صديق رضى الله تعالى عنه او حضرت عمر فاروق رضى الله تعالى عنه ديني مسائل د كتابونو په شكل كې نه وو را جمع كړي.

او حنفي او شافعي له دې امله ځان ته وايو چې دغو امامانو په خپله اويا هم د دوي معتبرو شاګردانو دا مسائل را جمع كړي دي او مرتب كړي يې دي. نو څوك چې د دې مسائلو پيروي كوي ځان ته حنفي يا شافعي وايي.

وفى المجموع، وليس له التمذهب بمذهب احدٍ من الائمة الصحابة رضى الله عنهم وغيرهم من الاولين وانكانوا أعلم وأعلى درجة ممن بعدهم لانهم لم يتفرغوا لتدوين العلم وضبط اصوله وفروعه فليس لاحد منهم مذهب مهذب محرر مقرر وانما قام بذلك من جاء بعدهم من الائمة الناحلين والتابعين القائمين بتمهيد احكام الوقايع قبل وقوعها الناهضين بايضاح اصولها وفروعها كمالك رحمه الله وابى حنيفة رحمه الله آه (المجموع شرح المذهب للنووى صــ ۹۱، ج ۱، فصل فى

اداب المستفتی بحواله تقلید کی شرعی حیثیت للعلامه مفتي محمد تقی عثماني صـ ۸۱، ط، مکتبة دار العلوم کراچی)

۴-لکه څرنګه چې صحیح بخاري، صحیح مسلم او نور د احادیثو کتابونه امام بخاري، امام مسلم، امام ابوداؤد او امام ترمذي په پوره دیانتدارۍ سره مرتب او مُدوّن کړي دي، نو له دې وجهې یې دوي ته نسبت کېږي. نو ددې نسبت معنا دا نه ده چې دا احادیث د دوي خپل ایجاد دی، همدارنګه دا فقهي مسائل دغو ایمه وو حضراتو مرتب او مُدوّن کړي دي، له دې وجهې یې دوی ته نسبت کېږي، نو ددې نسبت هم دا معنا نه ده چې دا مسائل د دوي خپل ایجاد دی.

۵-د امام حفص رحمه الله قرأت چې په دغو هیوادونو کې خلک ورباندې د قرآن کریم تلاوت کوي، دا قرأت امام حفص رحمه الله ته منسوب دی، لکن ددې نسبت هم دا معنا نه ده چې دا دده خپل ایجاد دی. همدارنګه د فقهي له نسبت څخه دغو ایمه وو ته دا نه لازمیږي چې دا ددوي خپل ایجاد دی.

۶-که د روافضو مقصد دا وي چې د فقهې دا مسائل د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کې نه وو، نو دا خالص دروغ دي، ځکه چې د فقهې کتابونه د آیتونو، احادیثو او د صحابه کرامو له اقوالو څخه ډک دي. او که یې مقصد دا وي چې امام ابوحنیفه او امام شافعي وغیره په خپله په هغه زمانه کې نه وو، نو بیا دا خبره صحیح ده، لکن په دې کې څه نقصان دی؟ په هغه زمانه کې خو امام بخاري، امام مسلم، امام حفص وغیره هم نه وو، ددغه تأخر زماني څخه خو نه په احادیثو کې څه نُقصان راځي او نه د قرآن کریم په قرأت کې.

او لکه څرنګه چې امام بخاري او نور مُحدِّثین د خپل خدای ورکړي فِراست او قابلیت په بناء باندې د یو حدیث تصحیح او یا تضعیف کوي، حالانکه دا تصحیح او تضعیف په نصوصو کې صراحتاً نه دی ذکر شوی او نه یې له خپلو استادانو څخه اورېدلی دی. نو همدارنګه فقهاء د خپل خدای ورکړي فراست او قابلیت په بناء باندې د نصوصو څخه د مسائلو استنباط کوي، کوم چې په نصوصو کې صراحةً نه وي موجود او نه یې مخکې چا استنباط کړی وی. نو لکه څرنګه چې دا مُحدِّثین د دې تصحیح او تضعیف په مسئله کې د مُذمت قابل نه دي نو همدارنګه فقهاء هم د جزئیاتو د استخراج په مسئله کې د مُذمت قابل نه دي. [منهاج السنة/ج۲/ص۹۰/۹۱/طبع بولاق]

# د (اَوّلُ مَن قَاسَ اِبلِيسُ) حقيقت

رافضيانو دا قول د صحابه كرامو رضى الله تعالى عنهم طرف ته منسوبوي او غير مُقلدين هم د روافضو تقليد كوي، حالانكه دا نه حديث دی او نه د قرآن ايت دی او نه د كوم صحابي قول دی. دا د جعفر صادق (المتوفی ۱۴۸هـ) قول دی. [دراسات اللبيب / ص ۳۴۷ / طبع قديم او په مسند دارمي / ص ۳۶ / طبع هند] كې د محمد بن سيرين رحمه الله او د مطر رحمه الله څخه هم منقول دی.

۱-اول خو په دې: اسې مسئله كې يعنې مقلدينو ته د ګمراه او د بدعتي ويلو په مسئله كې ستاسو په نيز د آثارو د تابعينو څخه استدلال كول څرنګه صحيح دی؟

۲-كه دا قول صحيح هم شي، نو بيا هم له دې څخه مُقلدينو ته هيڅ نُقصان نه رسيږي، ځكه چې د دې څخه هغه قياس مُراد دی چې د نص په مقابله كې وي، ځكه چې الله جل جلاله ملائكو او ابليس ته د سجدې كولو امر وكړو او د دې امر په مقابل كې ابليس قياس وكړو چې (أنا خيرٌ منه)

(فى جامع بيان العلم وَقَدْ جَاءَ عَنِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ مِنَ اجْتِهَادِ الرَّأْيِ وَالْقَوْلِ بِالْقِيَاسِ عَلَى الْأُصُولِ عِنْدَ عَدَمِهَا مَا يَطُولُ ذِكْرُهُ وَسَتَرَى مِنْهُ مَا يَكْفِي فِي كِتَابِنَا هَذَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى، وَمِمَّنْ حُفِظَ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ وَأَفْتَى مُجْتَهِدًا رَأْيَهُ وَقَايِسًا عَلَى الْأُصُولِ فِيمَا لَمْ يَجِدْ فِيهِ نَصًّا مِنَ التَّابِعِينَ؛ فمن اهل المدينة... الخ، (ذكر سبعة عشر تابعيا، ومن اهل المكة واليمن الخ وذكر اثنا عشر تابعيا) ومن اهل الكوفة الخ وذكر اثنا عشر تابعيا) ومن اهل البصرة الخ وذكر سبعة تابعى، ومن اهل الشام (وذكر خمس تابعى) ومن اهل المصر الخ وذكر اثنا عشر تابعيا، ومن اهل بغداد وغيرهم من الفقهاء الخ (وذكر ثلاث تابعى) جامع بيان العلم وفضله لابن عبدالبر المالكى رحمه الله (صـ ۶۲، ج ۲، باب الاجتهاد الرأى على الاصول عند عدم النصوص الخ ،ط نعمانيه بشاور)

۲- وفيه ايضا الحسن وابن سيرين وقد جاء عنهما وعن الشعبى ذم القياس ومعناه عندنا قياس على غير اصل لئلايتناقض ماجاء عنهم آه (جامع بيان العلم وفضله صـ ۶۳، ج ۲، ط نعمانيه بشاور)

۳- (وفيه ايضا قَالَ أَبُو عُمَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ: "لَا خِلَافَ بَيْنَ فُقَهَاءِ الْأَمْصَارِ وَسَائِرِ أَهْلِ السُّنَّةِ، وَهُمْ أَهْلُ الْفِقْهِ وَالْحَدِيثِ فِي نَفْيِ الْقِيَاسِ فِي التَّوْحِيدِ وَإِثْبَاتِهِ فِي الْأَحْكَامِ إِلَّا دَاوُدَ بْنَ عَلِيِّ بْنِ خَلَفٍ الْأَصْفَهَانِيَّ ثُمَّ الْبَغْدَادِيَّ وَمَنْ قَالَ بِقَوْلِهِمْ، فَإِنَّهُمْ نَفَوُا الْقِيَاسَ فِي التَّوْحِيدِ وَالْأَحْكَامِ جَمِيعًا، آه (جامع العلم وفضله صـ ۸۶، ج۲، باب نفى الالتباس فى الفرق بين الدليل والقياس الخ ،ط بالا،

٤- وفيه ايضا واما ما روى عن السلف فى ذم القياس فهو عندنا قياس على غير اصل او قياس يرد به اصل آه جامع بيان العلم وفضله صـ ٨٩، ج ٢، ط بالا.

٥- (وفيه ايضًا قَالَ أَبُو عُمَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: وَحَدِيثُ مُعَاذٍ صَحِيحٌ مَشْهُورٌ رَوَاهُ الْأَئِمَّةُ الْعُدُولُ وَهُوَ أَصْلٌ فِي الِاجْتِهَادِ وَالْقِيَاسِ عَلَى الْأُصُولِ وَبِهِ قَالَ جُمْهُورُ الْعُلَمَاءِ وَسَائِرُ الْفُقَهَاءِ، آه)(جامع بيان العلم وفضله: ج:٢،ص:٩٢ ، ط: بالا).

٦: (وفيه ايضًا وَأَمَّا الْقِيَاسُ عَلَى الْأُصُولِ وَالْحُكْمُ لِلشَّيْءِ بِحُكْمِ نَظِيرِهِ فَهَذَا مَا لَمْ يُخَالِفْ فِيهِ أَحَدٌ مِنَ السَّلَفِ، بَلْ كُلُّ مَنْ رُوِيَ عَنْهُ ذَمُّ الْقِيَاسِ قَدْ وُجِدَ لَهُ الْقِيَاسُ الصَّحِيحُ مَنْصُوصًا لَا يَدْفَعُ هَذَا إِلَّا جَاهِلٌ أَوْ مُتَجَاهِلٌ مُخَالِفٌ لِلسَّلَفِ فِي الْأَحْكَامِ " آه)(جامع بيان العلم وفضله:ج:٢،ص:٩٢،طبع بالا نعمانيه).

٧- وفيه قال ابن القيم رحمه الله فان الرأى رأيان رأى يوافق النصوص وتشهد له بالصحة والاعتبار وهوالذى اعتبره السلف وعملوا به ورأى يخالف النصوص وتشهد له بالابطال والاهدار فهوا لذى ذموه وانكروه (اغاثة الهفان صـ ٣٣٩، ج ١، طبع مصر بحواله الكلام المفيد)

٨- وفى الخيرات الحسان، وسمعه اى ابى حنيفه رحمه الله رجل يقايس آخر فى مسألة فصاح دعوا هذه المقايسة فان اول من قاس ابليسُ فاقبل اليه ابو حنيفة فقال يا هذا او ضعت الكلام فى غير موضعه ابليس رد بقياسه على الله تعالى امره كما أخبر تعالى عنه فى كتابه فكفر بذلك وقياسنا اتباع لأمر الله تعالى لاننا نرده الى كتابه وسنة رسوله او اقوال الائمة من الصحابة والتابعين فنحن ندور حول الاتباع فكيف نساوي أبليس لعنه الله فقال له الرجل غلطت وتبت فنوّر الله قلبك كما نورت قلبى آه (الخيرات الحسان فى مناقب امام الاعظم ابى حنيفة النعمان لابن الحجر المكى الشافعى رحمه الله صـ ٦٤: الفصل الحادى عشر فيما بنى عليه مذهبه ،طبع حقانيه بشاور) وكذا فى عقود الجمان تفصيلا للمؤرخ الكبير محمد بن يوسف الصالحى الدمشقى الشافعى رحمه الله صـ ١٤٥، الباب الثامن الخ طبع نعمانيه بشاور)

كه زمونږ په قلم كې دغير مقلد ينو صفت پيدا شي نو داسې پرې ليكلى شو چې: اول غير مقلد ابليس وو: ځكه چې الله جل جلاله امر د سجدې وكړو نو ملايكو بغير د چون و چرا ځخه او بغير د مطالبې د دليل ځخه سجده وكړه ، صرف په دې اعتماد چې الله جل جلاله حكيم دى او د حكيم فعل له

حکمت څخه خالي نه وي. لکن ابليس لعين غير مقلد شو د الله جل جلاله په حکم يئ اعتماد ونه کړو او د دليل مطالبه يې وکړه او داسې يې وويل چې: ( أرئيتک هذالذی کرمتَ علیّ).

## ۳۸۔ پوښتنه :ته د امام صاحب په ځای ولې د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مذهب نه کېږې ؟

ځواب: ددې پوښتنې يو څه تفصيل د (۵) نمبر اعتراض لاندې تېر شوی دی چې زه د محمد صلی الله عليه وسلم په دين يم او د امام صاحب په مذهب يم دا سوال هم په اصل کې شيعه ګانو کړی وو او شاه عبدالعزيز رحمه الله په (تحفه اثناعشريه / ص ۱۰۹ کې ځواب ورکړی وو. د ځواب الفاظ داسې دي چې: (نبی عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ صاحبِ شريعت است . نه صاحب مذهب. زيراکه مذهب نامی راهی است که بعض اُمتيان را در فهم شريعت کُشاده شود و بعض خود چند قواعد مقرر کُنند که موافق آن قواعد استنباط مسايل شرعيه از مأخذ آن نمايند ولهذا محتمل صواب و خطاء می باشد. و لهذا مذهب را بسوی خدا و جبرئيل و ديگر ملايکه منسوب کردن کمالی بی خردی است . ) انتهی.

يعنې نبي عليه السلام د شريعت څښتن دی. د مذهب صاحب نه دی. ځکه چې مذهب د هغې لارې نوم دی چې د شريعت د فهم له پاره بعضې امتيانو ته مکشوفه شوي وي، چې اُمتيان يو څه قواعد وضع کړي او د هغې موافق د مسايلو استنباط د خپلو مأخذونو څخه وکړي. له دې وجهې د خطاء او د صواب احتمال پکې وي. له همدې وجهې الله جل جلاله ، رسول الله صلی الله عليه وسلم ، جبرئيل او نورو ملايکو ته د مذهب نسبت کول ډېر سخت جهالت دی.

خلاصه دا چې : د دين او د مذهب په منځ کې فرق دی. (۱) مذهب لاره ده يعنې اجتهاديات دي او دين مقصود او منزل يعنې منصوصات دی. (۲) په مذهب کې د خطا او د صواب دواړو احتمال دی او په دين کې نشته. (۳) مذهبونه ډېر دي او دين يو دی.

نو دا اعتراض هم د شيعه ګانو قی خوري ده. غير مقلدين کېدی شي چې په دې غلط فهمۍ کې غورځېدلي وي چې مثلاً خلک وايي چې: دا مذهب د هندوانو دی، يا دا د عيسويانو مذهب دی، يعنې دا د هندوانو دين دی او دا د عيسويانو دين دی. نو هلته مذهب په معنا د دين دی، نو کېدی شي چې همدا معنا د حنفي مذهب او د شافعي مذهب وغيره هم وي. لکن دا يوه غلطه خبره ده، ځکه چې دلته مذهب په

معنا د دين سره نه دی، بلکې په معنا د رأيې او د مسلک سره دی. او همدا معنا د محدثينو او د فقهاوو په منځ کې مشهوره ده. د هر مُحدّث د حديثونو د سند په باره کې يو مذهب يعنې يوه رأيه وي.

۱-امام نووي رحمه الله فرمايي : د جمهورو په نيز مسلمان له کافر څخه ميراث نشي وړلی، لکن بعضې وايي چې وړلی يې شي. او بيا ليکي چې: وهو مذهب معاذ بن جبل و معاوية رضى الله تعالى عنهما. [شرح مسلم / ج ۲ / ص ۳۳ ].

يعنې همدا د حضرت معاذ بن جبل او د حضرت معاويه رضى الله عنهما مذهب دی، نو دلته مذهب په معنا د رأيې او د مسلک سره دی. په معنا د دين سره نه دی، ځکه چې په دين کې تعدد او اختلاف او احتمال د خطأ نشته.

۲-امام مسلم عَلَيْهِ السَّلَامُ د ثقه راوي د زيادت په بحث کې ليکي چې: (ألذی يعرف من مذهبهم...الخ) [ مقدمه مسلم / ص ۵ ]. يعنې د محدثينو د مذهب څخه چې کومه خبره مشهوره ده هغه داده ... الخ.

۳-امام مسلم رحمه الله فرمايي : ما چې کوم اصول نقل کړي دي داد قوم ( محدثينو ) مذهب دی. [ مذهب القوم / مقدمه / ص ۲۰ ].

۴-امام نووي رحمه الله په يو ځای کې فرمايي چې: ( و مذهب النسائی ) [ مقدمه شرح مسلم / ص ۱۵ ] يعنې داد امام نسائي مذهب دی.

۵-علامه حازمي رحمه الله د حديثو د ترجيح د وجوهو د بيانولو په ضِمن کې د يوې وجهې لاندې ليکي چې: ( وهذا هو مذهب اهل العراق والبصريين والشاميين. [ كتاب الاعتبار / ص۱۱].

۶-حضرت امام تاج الدين سبکي رحمه الله د خپل والد علی بن عبد الكافی رحمه الله په باره کې ليکي چې: ذكر شئ ممّا انتخبه مذهباً وارتضاه رأياً لنفسه و ذلک على قسمين احدهما ماهو معترف بأنه خارجٌ عن مذهب الشافعی [ طبقات/ ج ٦/ ص ۱۸۲ ] .

۷-د غير مقلدينو روح روان ثناءالله يوه رساله ليکلې ده په نامه د ( اهل حديث کا مذهب ) .

۸-شاه ولی الله دهلوی رحمه الله فرمايي چې: ( مذهب عمر بمنزله متن است و مذاهب اربعه بمنزله شروح . ) [ ازالة الخفاء / ج ۲ / ص ۸۲ ] .

مونږ له لا مذهبو څخه پوښتنه کوو چې آیا حضرت عمر رضی الله تعالی عنه بل کوم نوی دین راپیدا کړی وو چې د محمد صلی الله علیه وسلم له دین څخه جُدا وو ؟ که ځواب نفي وي نو دلته له مذهب څخه څه شی مراد دی ؟

حاصل دا چې په دې تمامو ځایونو کې مذهب په معنا د اجتهادي رأیې او مسلک سره دی.

## د ګستاخۍ انتهاء

د پُلچرخي په محبس کې یو څو غیر مقلدین په یو ځای کې ناست وو، یو پکې د خپلو لامذهبو استاذانو خبره رانقل کړه چې مذهب بیت الخلاء ته وایي ( معاذالله ) . اونورو ملګرو ورسره د اخبره په تهقه خندا بدرګه کړه.

نو اې د بلعم په ګډې ناستو لا مذ.هبو ! دهغه سړي څه حُکم دی چې هغه ووایي چې بیت الخلاء د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په منزله د متن ده او بیت الخلاء د مذاهبو اربعه وو په منزله د شرحې ده. (معاذالله).

او یا یو سړی ووایي چې: دا مسئله بیت الخلاء د معاذبن جبل رضی الله عنه او د حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه ده. او یا یو سړی ووایي چې: د مسلم شریف په مقدمه کې چې کوم اصول ذکر شو دا بیت الخلاء ګانې د محدثینو دي.

ربښتیا هم چې د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث په تاسو ډیر ښه تطبیقیږي چې: (یمرقون من الاسلام کما یمرق السهم من الرمیة ) [صحیح مسلم / ج ۱ / ص ۳۴۱ ].

**اې غیر مقلدینو!** آیا دا ویل صحیح دي او که نه؟ چې د فرعون په شمول ټول پخواني کافران سلفیان وو، ځکه چې الله تعالی ورته سلفیان ویلي دي. الله تعالی جل جلاله فرمایي چې: (فجعلناهم سلفاً و مثلاً للاخرین)

### ۳۹- پوښتنه: آیا په هندوستان کې د انګریزانو له دَور څخه مخکې داسې کومه ډله وه چې ځانونو ته یې محمدي ویلي وي ؟

**ځواب:** د غیر مقلدینو مشهور مؤرخ شاهجهان پوري د خپلې ډلې په باره کې لیکي چې: په مخکنیو وختونو کې د دې نظریې خلک بالکل شاذ او نادر وو، ډیر په نظر نه راتلل، د دوي نوم ډیر د لږ وخت څخه

راپېدېخوا اورېدل کېږي، دوی ځانونو ته اهلِ حديث يا مُوحِد، يا محمدي وايي، مګر مخالف فريق ورته غير مقلدين، وهابيان او لامذهبه وايي. [الأرشاد الى سبيل الرشاد/ ص ١٣ /بحواله اهل حديث].

نو په هندوستان باندې د انګرېزي دورې څخه مخکې په دې نوم باندې کومه خاصه ډله نه وه، البته مخکې تېر شو چې روافضو به ځانته محمدي ويل. د ابوشاهين په نوم يو مُحدِث دی. المتولد (٢٩٧هـ). دغه محدث په سنه (٣٠٧) کې د احاديثو اورېدل شروع کړل او په سنه (٣٨٥هـ) کې وفات شو. [تذکره/ج ٣/ص ١٨٣]. نو امام دارقطني رحمه الله د دغه عالم په باره کې فرمايي چې: ابن شاهين ثقه و، لکن ډېر زيات غلطيدلو. او علامه خطيب بغدادي فرمايي چې: محدث ابن شاهين د شيوخو څخه پاتې شوني دی. لکن ډېر زيات غلطيدلو او له فقهې څخه بالکل ناخبره وو. او دده په مخ کې به چې د حنفي يا شافعي يا د مالکي او يا هم د حنبلي مذهب ذکر کېده نو ده به ويل چې: زه محمدی المذهب يم. [تذکرة/ج ٣/ص ١٨٤].

نو دا لفظ نه د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم څخه ثابت دی، او نه د صحابه وو رضی الله عنهم څخه او نه هم د تابعينو څخه، بلکې د څلورمې صدی د يو داسې محدِّث څخه ثابت شوی دی، چې هغه د فقهې د علم څخه بالکل محروم و او د اغلاطو ټيکه دار و او هغه هم د يوې ډلګۍ په شکل نه وو، بلکې يوازې ځان ته به يې محمدي وايه.

## ٤٠ـ پوښتنه: د بخاري اود احاديثو د نورو کتابونو پښتو، فارسي او اردو ترجمې راووتلې نو اوس مذهب ته څه ضرورت دی ؟

**ځواب:** زه د هجرت په وخت کې يوه ورځ د پېښور د چغرمټي څخه باړې ته روان وم، هلته مې د هاشمي په نوم مدرسه کې طالبانو ته په رمضان کې د قرآن کريم تفسير کاوه، په ډاټسن کې لاندې په سيټونو کې ځای نه وو، نو د ډاټسن په چت کېناستم، په څنګ کې راسره يو بل ځوان هم کېناستو. ددې ځوان په سر باندې خولۍ نه وه، بلکې لوڅ سر وو او پيکی يې هم انګريزي و، ږيره يې هم لنډه کړې وه، او دده دوينا مطابق د بډهبېرې د سيفن مدرسې ته روان وو، چې هلته يې د غير مقلد عبدالسلام رستمي سره ترجمه کوله. دا سوال هغه له ما څخه وکړو چې: د احاديثو د کتابونو ترجمې راوتلي دي، زه هغه ګورم نو زما نور تقليد ته ضرورت نشته!

دده د چُپ کولو له پاره مې هغه ځواب ورکړو کوم چې ما د شيخ صاحب حسن جان شهيد رحمه الله بيانونو څخه اورېدلی و. او هغه دا چې پښتو، اردو او فارسي ترجمې خو يوائې د حديثو د کتابونو نه دي راوتلي بلکې د طب د کتابونو هم شته، هغه هم ګوره او خپل علاج په خپله کوه! ډاکټر ته څه ضرورت دی؟ د مستري توب کتابونه هم شته، هغه ګوره او خپل ګاډی په خپله جوړوه، مستري ته څه ضرورت دی؟ د خياطۍ (درزي توب) کتابونه هم شته هغه ګوره او خپلې جامې په خپله ګنډه، خياط ته څه ضرورت دی؟

او که په دې معمولي شيانو کې يوائې د کتابونو په کتلو باندې اکتفاء کول ځان د هلاکت کندې ته غورځول وي، نو د دين په معامله کې څرنګه نه دي؟ آيا دين له دغو شيانو او کسبونو څخه سپک دی؟ اوس به يې د الله جل جلاله په توفيق د لږ تفصيل سره وليکم.

۱- کله د حديث په ظاهر باندې عمل کول د ګمراهۍ څخه بغير بل هيڅ شی نه وي؟ لکه څرنګه چې امام ابن عبدالبر المالکی رحمه الله فرمايي چې: (و اما طلب الحديث على ما يطلبه كثير من اهل عصرنا اليوم دون تفقهٍ فيه ولا تدبرٍ لمعانيهِ فمكروهٌ عند جماعةِ اهل العلم.) [جامع بيان العلم/ ج۲ / ص۱۲۷].

د حديثو طلب بغير د پوهېدلو څخه په معنا د هغې او بغير د تدبر څخه مکروه دي، لکه څرنګه چې يې اکثره خلک نن سبا کوي.

۲- يو سړی د بخاري [ج ۱ / ص ۲۵ او ترمذی / ج ۱ / ص ۱۱ او مشکوة / ج ۱ / ص ۴۰] دا حديث وګوري چې: که د يو سړي څخه باد ووتلو نو ترڅو يې چې آواز نه وي اورېدلی او يا يې بوي نه وي محسوس کړی نو تر هغې پورې يې اودس نه ماتيږي. (حتى يسمع صوتاً او يجد ريحاً). نو اوس که يو سړی دې په ظاهر عمل کوي، تيزونه او پسکۍ اچوي لکن ترڅو يې چې آواز نه وي اورېدلی او يا يې بوي نه وي محسوس کړی تر هغې پورې خپل لمونځ کوي نو آيا دا به عمل بالحديث وي؟

۳- په [صحيح البخاري / ج ۱ / ص ۳۹] کې يو حديث دی چې: (امّا انا فَاَفِيضُ على رأسى ثلاثاً واشاره بيديهِ كلتيهما) يعنې زه په دواړو لاسونو په خپل سر باندې درې لپې اوبه اچوم. اوس که يو سړی دې په ظاهر عمل کوي او په غُسل کې يوائې په خپل سر باندې درې لپې اوبه اچوي او نور بدن نه

مينځي نو آيا دا به عمل بالحديث وي ؟ حالانکه په بل تفصيلي روايت کې د ( ثـمّ يُفيضُ على سائر جسده ) الفاظ هم شته.

۴ – په بر صغير کې قبله مغرب طرف ته ده، نو که دلته يو سړی د مغرب طرف ته اودس ماتی کوي اود [ بخاري شريف / ج ۱ / ص ۲۶ ] په دې حديث باندې عمل کوي چې: ( شرّقوا او غرّبوا ) دمشرق او يا دمغرب طرف ته اودس ماتوئ ! نو آيا دا به عمل بالحديث وي؟

۵ – يوه ورځ امهات المؤمنين رضی الله تعالی عنهن د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې: يارسول الله ! په مونږ کې به له تاسره اول ملاقات د چا کيږي ؟ حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : ( اَطوَلُكُنَّ يداً ) [ بخاري / ج ۱ / ص ۱۹۱ / مسلم / ج ۲ / ص ۲۹۱ ] يعني دچا لاس چې اوږد وي. نو امهات المؤمنين رضی الله عنهن چې د يو بل سره لاسونه مقايسه کړل نود حضرت سوده رضی الله عنها لاسونه اوږده وو. امهات المؤمنين فرمايي چې: وروسته مونږ پوه شو چې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم له دې څخه ظاهر مراد نه وو، بلکې سخاوت يې مُراد وو. بيا په ازواجو مطهراتو کې اول حضرت زينب رضی الله عنها وفات شوه. [ مسلم / ج ۲ / ص ۲۹۱ / نووی شرح مسلم / ج ۲ / ص ۱۹۱ ].

۶ – ځينې احاديث منسوخ وي ، مثلاً په [ بخاري / ج ۱ / ص ۳۰ ] کې د حضرت عثمان رضی الله عنه روايت دی چې: کوم سړی چې دخپلې مېرمنې سره همبستري وکړي او انزال يې ونه شي نو غُسل پرې فرض نه دی. حالانکه ددې حديث په ظاهر باندې عمل کول منسوخ دي.

۷ – همدارنګه په قرآن کريم او په سنت رسو ل الله صلى الله عليه وسلم کې هم ټولې مسئلې صراحتاً نشته. د مثال په ډول مونږ وروسته يو اځې د لمانځه په باره کې ( ۲۸۰ ) سوالونه ليکلي دي چې صراحتاً يې حل په قرآن کريم او په سُنت کې نشته. ددې جواب نور تفصيل د (۴۸) پوښتنې لاندې را روان دی هلته يې ضرور وګوره.

## ٤١- پوښتنه: امام ابوحنيفه رحمه الله خو په خپل لاس کوم کتاب نه دی ليکلی نو څرنګه يې تقليد کوئ؟

**ځواب** : دا اعتراض د معتزله وو اختراع ده :

۱-د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل لاس کوم لیکل شوی کتاب نشته، نو بیا د مکمل قرآن او حدیث څخه هم منکرېږي او که نه؟

۲-د دنیا په هیڅ کتابخانه کې د حضرت ابو بکر صدیق، حضرت عمر فاروق، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت ابو هریره او نورو صحابه وو رضی الله عنهم په خپل لاس هیڅ لیکل شوی کتاب نشته، نو د دوي د احادیثو څخه هم منکرېږې او که نه؟

۳-لکه څرنګه چې قرآن کریم د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وو لیکلی دی، همدارنګه فقهه هم د امام ابو حنیفه رحمه الله اصحابو لیکلې ده.

د امام صاحب رحمه الله ممتاز شاګرد امام محمد رحمه الله هغه مسایل چې بالذات یې له امام صاحب څخه اورېدلي دي او یا یې د امام ابویوسف رحمه الله په واسطه اورېدلي دي هغه یې د (جامع الکبیر، سیر الکبیر، جامع الصغیر، سیر الصغیر، مبسوط او زیادات) په نامه کتابونو کې راجمع کړي دي. نور کتابونه یې هم شته لکه: (جمع الجوامع، أمالی ابویوسف وغیره).

۴-د امام صاحب رحمه الله خپل لیکلي کتابونه هم شته. لکه: (فقه الاکبر په عقایدو کې) (کتاب الرسالة الی البستي) (کتاب العالم والمتعلم) (کتاب الرد علی القدریة). [الفهرسة لابن ندیم / ص ۲۹۹ / طبع مصر].

محدث الحرم ملا علي قاري رحمه الله د محمد بن سماعه رحمه الله څخه نقل کوي فرمایي چې: (ان الامام ذکر فی تصانیفه نیفا وسبعین الف حدیث و انتخب الاثار من اربعین الف حدیث) [ذیل الجواهر / ج ۲ / ص٤۷٤].

امام ابوحنیفه رحمه الله په خپلو تصنیفاتو کې څه د پاسه اویا زره احادیث ذکر کړي دي. او کتاب الاثار یې د څلوېښت زره احادیثو خلاصه ده. او همدا خبره صدر الائمه هم کړې ده. [مناقب موفق / ج ۱ / ص ۹۵ / الجواهر / ج ۲ / ص ۳۲۵].

## ٤۲- پوښتنه: آیا اهلحدیث اهل سُنت والجماعت دي او که نه؟

**الجواب**: ۱- د حدیث او د سُنت په منځ کې نسبت د عموم او خصوص من وجهٍ دی. تفصیل یې دا دی چې: حدیث د څلورو شیانو نوم دی: اول: د نبي کریم صلی الله علیه وسلم اقوال او ارشادات. دوهم: د

نبي کريم صلى الله عليه وسلم افعال. دريم: د نبي کريم صلى الله عليه وسلم تقريرات يعنې چې: د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مخ کې يو کار وشي او دی مبارک صلى الله عليه وسلم ورباندې انکار ونه کړي. او څلورم: د نبي کريم صلى الله عليه وسلم صفات يعنې ذاتي حالات دا هم حديث دی.

او سُنت په لغت کې لارې (الطريق) ته وايي. بيا دا لفظ په قرآن کريم کې هم استعماليږي، لکه (و لن تجدَ لِسُنّةِاللهِ تبديلاً) او په قرآن کريم کې په معنا د ترتب د مسبباتو سره دی په اسبابو باندې. ددې له پاره امام شاه ولی الله رحمه الله په [حجة الله البالغة] کې يو پوره باب لګولی دی.

او دا لفظ په فقهه کې هم راځي په فقهه کې دا د احکامو د يوې داسې مرتبې نوم دی چې د واجبو څخه پورته او د مندوباتو څخه ښکته ده. او دا لفظ په احاديثو کې هم استعماليږي په معنا د (الطريقة المسلوکة فى الدين) يعنې هغه ديني لاره چې مسلمانان ورباندې روان وي.

خلاصه دا چې د سنت او د حديث په منځ کې نسبت د عموم او خصوص من وجهٍ دی. درې مادې غواړي.

اوله: افتراقي ماده: ځينې روايتونه يو ائې احاديث دي او سُنت نه دي.

۱ – هغه احاديث چې منسوخ دي هغه سُنت نه دي. لکه يو حديث دی چې: (توضؤا مما مست النار) کوم شی چې په اور پوخ شوی وي نو د هغې له خوړلو څخه وروسته اودس وکړئ! دا حديث بالکل صحيح حديث دی. حالانکه دا حکم وروسته منسوخ شو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه کرامو به په اور باندې پاخه شوي شيان خوړل او اودس به يې نه کولو او همدارنګه په ابتداء د اسلام کې به په لمانځه کې خبرې کېدلې چې بيا وروسته منسوخې شوې.

حاصل دا چې مسنوخ احاديث د احاديثو په کتابونو کې شته، لکن سنت نه دي. سنت هغه حُکم دی چې ددې څخه وروسته راغلی وي.

۲ – هغه حديثونه چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصيات پکې ذکر شوي دي لکه د څلورو څخه له زياتو ښځو سره نِکاح حديث دی. لکن سُنت نه دی.

۳ – همدارنګه کوم احاديث چې د کوم خاص مصلحت او يا ضرورت له وجهې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو څه فرمايلي وي او يا يې کړي وي دا هم حديثونه دي، لکن سُنت نه دي. همداسې

ضرورت له وجې په ولاړه بانديې مُتيازې کول په صحيح حديث باندې ثابت دي لکن سُنت نه دي.
دغسې نور هم ډېر مثالونه شته.

**يوه اهمه لطيفه:**

حضرت مفتي سعيد احمد پالن پوري شيخ الحديث و صدر المدرسين دارالعلوم ديوبند فرمايي چې:
په نيويارک کې يو غير مقلد د حديثو درس ورکاوه، نو د احديثې بيان کړو چې: نبي کريم صلى الله عليه وسلم يوه ورځ په ولاړه باندې اودس مات کړو او بيا يې په تشريح کې وويل چې: په ولاړه باندې د اودس ماتول سُنت دي. د درس په حلقه کې يو تن پاڅېده او پوښتنه يې وکړه چې: آيا دا يو اځې د سړيو له پاره سُنت دي او که د ښځو له پاره هم؟ نو له غير مقلد څخه لاړه ورکه شوه. [علمي خطبات/ج ۱/ص ۸۴].

**دوهمه افتراقي ماده:**

بعضې شيان سُنت دي، لکن حديث نه دی على تعريفٍ. چې هغه د خلفاء راشدينو رضى الله عنهم سُنت دي. حضرت رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: (عليكم بسُنتى وسنة الخلفاء الراشدين ... الخ)

**اجتماعي ماده:**

په دې کې ټول هغه روايتونه داخل دي چې له خيرالقرون څخه ورباندې عمل روان وي. د سُنتو د پېژندلو معيار د خلفاوو او صحابه وو رضى الله عنهم تعامُل دی. په کوم حديث چې دوي عمل کړی وي هغه سُنت دی.

۲- نو اهلحديث اهلِ سُنت و الجماعت نه دي. اهل سُنت خو ځکه نه دي چې د حديث او د سُنت په منځ کې فرق دی. او اهل جماعت هم ځکه نه دي چې: د جماعت تابعداری ته دوي شِرک او کفر وايي، ځکه چې د جماعت تابعداري د امتي تابعداري ده او د اُمتي تابعداري تقليد دی. او تقليد د دوي په نيز کفر او شرک دی.

همدارنګه دوي د اهلِ سُنت و الجماعت د اجماعي عقيدې څخه منکر دي چې هغه حُجيت د ادله وو اربعه وو دی، د دې خبرې لپاره نور دلائل هم شته چې دوي اهل سنت و الجماعت نه دي.

## ۴۳ـ پوښتنه: آیا امام اعظم رسو ل الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی او که امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ؟

**الجواب :**

۱-آیا فاروق اعظم حضرت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وو او که حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ؟ آیا صدیق اکبر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی او که ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ؟

۲-محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعظم في الانبياء دی او ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ امام اعظم في الأيمه دی، د پیغمبر تقابُل به د پیغمبرانو سره کوې او د امام تقابُل به له امامانو سره کوې ! امام د پیغمبر په مقابل کې اعظم نه دی. او پیغمبر د الله تعالی په مقابل کې اعظم نه دی. بلکې یو امام د بل امام په مقابل کې اعظم کېدی شي او یو پیغمبر د بل پیغمبر په مقابل کې اعظم کېدی شي. یو مناظر د بل مناظر په مقابل کې مناظرِ اعظم کېدی شي. یو وزیر د بل وزیر په مقابل کې وزیرِ اعظم کېدی شي .

۳-امام ابوحنیفه رحمه الله ته د (اعظم) لقب حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم اشارةً ورکړی دی، ځکه چې یو حدیث مبارک دی : (عن ابی هريرة رضى الله تعالى عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: اعظم الناس نصيباً في الاسلام اهل فارس ... او كما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم).

یعنې په اسلام کې اعظمه برخه د اهلِ فارِس یعنې عجمو ده. او په اهلِ فارس کې د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په شان سړی نه دی تېر شوی، چې د ټول دین اسلام تدوین یې کړی وي. یعنې د اودس، لمونځ، حج، زکوة، نِکاح، طلاق، عِتاق، یمین، حُدود، بیع، شفع، اجاره او رهن .......... په لکونو مسائل امام صاحب رحمه الله له ادله وو اربعه وو څخه علی الترتیب را ایستلي او مُدوّنې کړي یې دي. او دا کار په عجمو کې بل چا نه دی کړی.

## ۴۴ ـ پوښتنه: آیا رښتیا امام اعظم رَحِمَهُ اللهُ د قرآن او د حدیث په مقابله کېپه خپله رایه عمل کولو؟

**ځواب:** دا خبره خو صحیح ده چې امام ابوحنیفة رَحِمَهُ اللهُ د قیاس، استنباط او د اجتهاد څخه کار اخیستلو ، لکن دا کار یې کله اخیستلو ؟

(۱) نو د حضرت امام ابو حنيفة رحمه الله خپل بيان دا دی چې:

أخذ بكتاب الله، فما لم أجد فبسنة رسول الله ﷺ فإن لم أجد في كتاب الله ولا في سنة رسول الله ﷺ أخذت بقول أصحابه رضي الله عنهم، آخذ بقول من شئت منهم وأدع من شئت منهم، ولا أخرج من قولهم إلى قول غيرهم، فأما إذا انتهى الأمر وجاء إلى إبراهيم، والشعبي، وابن سيرين، والحسن، وعطاء، وسعيد بن المسيب، وعدد رجالا، فقوم اجتهدوا فأجتهد كما اجتهدوا.[تاريخ بغداد: ج۱۳/ ص۳٦۸].

يعنې زه اول په كتاب الله عمل كوم، او كه په كتاب الله كې مې حكم ونه موندلو نو بيا يې د رسول الله ﷺ په سنتو كوم، او كه په سنتو كې مې حكم ونه موندلو نو بيا د صحابه وو رضى الله عنهم قول را اخلم (او د اختلاف په صورت كې) د يو صحابي رضي الله عنه قول را اخلم او د صحابه وو رضى الله عنهم د اقوالو څخه نه اوړم، او چې معامله تابعينو رحمهم الله ته را ورسيږي، نو بيا زه هم د هغوى په شان اجتهاد كوم. [ملخصاً].

همدا مضمون ابن عبد البر رحمه الله هم ذكر كړى دى. [الانتقاء ص۱۴۳] او د غير مقلدينو شيخ الكل مبارکفوري هم ذكر كړى دى. [تحفة الأحوذي ص ۸۲].

(۲) ابن حجر مكي رحمه الله او ملا علي قاري رحمه الله ليكي چې: إن كان في المسئلة حديث صحيح تبعه، وإن كان عن الصحابة رضى الله عنهم والتابعين رحمهم الله فكذلک، والا قاس، فأحسن القياس. [الخيرات الحسان ص۲۷] و [ذيل الجواهر ج۲/ ص۴۷۲].

كه په مسئله كې به صحيح حديث وو نو امام صاحب رحمه الله به يې اتباع كوله، او كه د صحابه وو رضي الله عنهم او يا د تابعينو رحمهم الله څخه به د مسئلې حكم را معلوميدلو نو بيا به يې هم د دوى پيروي كوله، او كه پدې كې به ورته پيدا نشوه نو بيا به يې قياس كولو، او ډير ښكلى قياس به يې كولو.

(۳) علامه ذهبي رحمه الله د امام يحيى بن معين رحمه الله په طريقه د امام صاحب رحمه الله څخه نقلوي چې: أخذ بكتاب الله، فما لم أجد فبسنة رسول الله ﷺ والآثار الصحاح عنه التي فشت في أيدي الثقات عن الثقات، فإن لم أجد فبقول أصحابه أخذ بقول من شئت، وأما إذا انتهى الأمر إلى إبراهيم، والشعبي، والحسن، وعطاء فأجتهد كما اجتهدوا. [مناقب أبي حنيفة رحمه الله طبع مصر للذهبي ص۲].

ترجمه يې لږ مخكې د اولې شميرې لاندې تيره شوه.

(۴) امام عبدالوهاب شعراني رحمه الله امام ابن حجر مكي رحمه الله او امام سيوطي رحمه الله د امام صاحب رحمه الله ځخه رانقلوي چې امام صاحب فرمايلي دي چې: ما جاء عن رسول الله ﷺ بأبي هو وأمي فعلى الرأس والعين، وما جاء عن أصحابه تخيرنا، وما جاء عن غيرهم فهم رجال ونحن رجال. [ميزان ج۱/ ص۲۹] و [الخيرات الحسان ص۲۷] و [تبييض الصحيفة ص۲۷].

كوم حكم چې د رسول الله ﷺ ځخه ثابت وي زما مور او پلار دې ترې قربان شي نو هغه په سر سترګو منو، او كوم حكم چې د صحابه وو رضى الله عنهم ځخه ثابت وي، نو مونږ د دوى په اقوالو كې ير غوره كوو، او كه د غير صحابي قول وي نو مونږ هم د هغوى په شان انسانان يو. يعني چونكې زه هم تابعي يم او د اجتهاد ملكه لرم نو ماته د نورو مجتهدينو تابعينو سره د مناقشې حق شته.

حافظ ابن عبدالبر رحمه الله هم همدې ته ورته الفاظ رانقل كړي دى. [الانتقاء ص ۱۴۴ طبع مصر].

(۵) ابو حمزة السكري رحمه الله فرمايي چې: سمعت أبا حنيفة رحمه الله يقول إذا جاءنا الحديث عن النبي ﷺ أخذنا به و إذا جاءنا عن الصحابة رضى الله عنهم تخيرنا، وإذا جاءنا عن التابعين زاحمناهم. [الانتقاء ص ۱٤٤ لابن عبدالبر واللفظ له] و [تبييض الصحيفة ص۲٦] و [الجواهر المضية ج۲/ ص ۲٤۹].

يعني ما د امام ابو حنيفة رحمه الله ځخه واوريدل چې فرمايل يې چې: كله چې د رسول الله ﷺ حديث مونږ ته ميلاو شي نو مونږ ورباندې عمل كوو، او كله چې د صحابه وو رضى الله عنهم اقوال وي نو په هغوى كې يو غوره كوو، او كه د تابعينو اقوال راشي نو په هغوى كې مزاحمت كولى شو.

(۶) حضرت ملاعلي قاري رحمه الله د امام صاحب رحمه الله مذكور قول په داسې الفاظو رانقلوي چې: ما جاءنا عن الله و رسوله لانتجاوز عنه، وما اختلف فيه الصحابة رضى الله عنهم اخترنا، وما جاء عن غيرهم أخذنا أو تركنا. [ذيل الجواهر ج۲/ ص٤٧٣].

(۷) او مولي احمد بن مصطفى رحمه الله د امام صاحب رحمه الله مذكور قول په داسې الفاظو رانقل كړى دى چې: ما جاءنا عن الصحابة فعلى الرأس والعين و ماجاءنا عن التابعين فهم رجال ونحن رجال. [مفتاح السعادة ج۲/ ص٦٧].

(۸) امام ابن حجر مکي رحمه الله او ملا علي قاري رحمه الله څخه دا الفاظ هم رانقل شوي دي چې: ليس لأحد أن يقول برأيه مع كتاب الله تعالى ولا مع سنة رسول الله ﷺ ولا مع ما أجمع عليه أصحابه. [الخيرات الحسان ص ۲۷] و [ذيل الجواهر ج۲ ص ۴۷۳]. يعني د کتاب او د سنة په مقابل کې هيچا ته هم د رأيې حق نشته، او همدارنګه د صحابه وو رضى الله عنهم د اجماع په مقابل کې هم هيچا ته د رأيې حق نشته.

(۹) د امام ابو حنيفة رحمه الله په زمانه کې هم داسې متعصبين موجود وو چې په امام صاحب رحمه الله بې اعتراض کولو، امام صاحب رحمه الله دوي ته په جواب کې داسې وفرمايل چې: عجباً للناس يقولون أفتي بالرأي، ما أفتي إلا بالأثر. [الخيرات الحسان ص۲۷]، [تبييض الصحيفة ص ۲۷]، [والجواهر المضية ج۲/ ص ۲۰۲] يعنې تعجب دى هغه خلکو ته چې وايي چې زه په رأيه فتوى ورکوم حالانکې زه د حديث مطابق فتوى ورکوم.

(۱۰) حضرت عبد الله بن المبارک رحمه الله فرمايي چې: لاتقولوا رأي أبي حنيفة رحمه الله ولكن قولوا أنه تفسير الحديث. [ذيل الجواهر ج۲/ ص۴٦۰].

داسې مه وايه چې دا د ابو حنيفة رحمه الله رأيه ده بلکې داسې وايې چې دا د حديث تشريح ده.

همدارنګه عبد الله بن المبارک رحمه الله فرمايي چې: لكن الذي تعتمد عليه الأثر من الرأي ما يفسر لك الحديث. [جامع بيان العلم ج۲/ ص۱۳۲]. خپل اعتماد په حديث کوه او د رأيې څخه هم دومره کار اخله چې د حديث په تفسير کې درسره امداد وکړي.

همدارنګه صدر الأيمة المکي رحمه الله په خپل سند سره د امام عبد الله بن المبارک څخه رانقلوي او فرمايي چې: عليكم بالأثر، ولابد للأثر من أبي حنيفة، فيعرف به تأويل الحديث ومعناه ... الخ. [مناقب موفق ج۲/ ص۵۳]. په تاسو باندې لازم دي چې د حديث او د أثر څخه کار واخلئ، لکن د أثر لپاره د امام ابو حنيفة رحمه الله ضرورت دى، ترڅو چې دده په وجه خلک د حديث په معنى پوه شي،

همدارنګه علامه خطيب بغدادي د خپل سند سره د امام عبد الله بن مبارک رحمه الله څخه روايت کوي چې: إن كان الأثر قد عرف وأحتيج إلى الرأي- فرأى مالك، وسفيان، وأبي حنيفة، و ابوحنيفة

أحسنهم وأدقهم فطنة، وأغوصهم على الفقه، وهو أفقه الثلاثة. [بغدادي ج۱۳/ ص ۳٤۳]يعني پر معروف حديث که رايې ته ضرورت لرلو نو يا د امام مالک، حضرت سفيان او د ابو حنيفة رحمهم الله رايه مناسبه ده او ابو حنيفة رحمه الله د دوی ټولو څخه زيات فقيه دی.

(۱۱) مشهور محدث علي بن خشرم رحمه الله فرمايي چې: كنا في مجلس سفيان بن عيينة رحمه الله فقال: يا أصحاب الحديث! تعلموا فقه الحديث لا يقهركم أصحاب الرأي ما قال ابوحنيفة رحمه الله شيئاً إلا ونحن نروى فيه حديثاً أو حديثين... الخ. [مغرفت علوم الحديث ص٦٦].

يعني اې محدثينو! په حديثو کې تفقه پيدا کړئ. هسې نه چې اصحاب الرأي په تاسو غالب راشي، امام ابو حنيفة رحمه الله هيڅ داسې خبره نده کړې چې مونږ ورته يو او يا دوه حديثه نوي پيدا کړي.

ددې څخه معلومه شوه چې د أصحاب الرأي كار تفقه في الحديث وو، له همدې وجې حضرت سفيان رحمه الله محدثينو ته ترغيب ورکړو چې د اصحاب الرأي په شان تفقه في الحديث حاصل کړئ او ددوي څخه دا هم معلومه شوه چې د امام صاحب رحمه الله اجتهاد عين د حديث مطابق وو.

امام صاحب رحمه الله د قرآن او د سنت په موجودګۍ کې هيڅکله هم د رأيې څخه كار نه دی اخيستی، او نه د امام صاحب رحمه الله رأيه د قرآن او د سنت څخه بې نيازه وه، بلكې امام صاحب رحمه الله د خپلې رأيې او د اجتهاد بنياد په قرآن او په سنت، او د صحابه وو رضی الله عنهم په اجماعي مسايلو باندې قايم کړی وو، او سره ددې څخه چې اكثريت عالم اسلام د امام صاحب د اصابت رأيې تعريف کوي خو بيا هم د امام صاحب د پراخه نظر او د علم د دوستۍ دا حال وو چې فرمايل به يې: هذا الذي نحن فيه رأي؛ لا نجبر أحداً عليه ولا نقول يجب على أحد قبوله بكراهية، فمن كان عنده شيء أحسن منه فليأت به... الخ. [الانتقاء ص۱٤۰]، [والخيرات الحسان ص٤۷].

مونږ څوک په دې اجتهادي او مستنبطه وو مسايلو باندې نه مجبوروو، او نه يې په چا باندې په زور منو، که څوک ددې څخه ښه اجتهاد کولی شي نو ودې کړي.

(۱۲) علامه خطيب بغدادي رحمه الله فرمايي چې: امام صاحب رحمه الله به فرمايل: هذا رأيي وهو أحسن ما قدرنا عليه فمن جاءنا بأحسن من قولنا فهو أولى بالصواب منا... الخ. [تاريخ بغداد ج۱۳/ ص ۳٥۲].

يعنې دا هغه بهترينه رأيه ده چې زمونږ په وس کې وه، نو که څوک زمونږ د قول څخه بهتر قول مونږ ته راوړي نو هغه قول به زمونږ د قول څخه أولی او ډېر صحيح وي.

(۱۳) او همدا خبره امام شعراني په دا سې ألفاظو سره رانقلوي چې: وكان إذا أفتى يقول: هـذا رأي أبي حنيفة رحمه الله وهو أحسن ما قدرنا عليه فمن جاء بأحسن منه فهو أولى بالصواب... الخ. [مـيزان ج۱/ ص۵۰ طبع مصر].

(۱۴) امام ابن حجر رحمه الله ليکي چې: علم أنه يتعين عليک ان لاتفهـم مـن أقـوال العلمـاء عـن أبي حنيفة وأصحابه، إنهم أصحاب الرأي، أن مراد هم بذالک تنقيصهم ولانسبتهم إلى انهم يقدمون رأيهـم على سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم ولا على قول أصحابه لأنهم برءآء من ذلک فقد جاء عن أبي حنيفة من طرق كثـيرة مـا ملخصه أنه أولاً يأخذ بما في القرآن فإن لم يجد فبالسنة، فإن لم يجد فبقول الصحابة، فإن اختلفوا أخذ بمـا كان أقرب إلى القرآن أو السنة من أقوالهم ولم يخرج عنهم، فإن لم يجد لأحد منهم قولاً لم يأخذ بقـول أحـدٍ من التابعين بل يجتهد كما اجتهدوا ... الخ. [الخيرات الحسان ص۲٦ وص ۲۷ طبع مصر].

يعنې پوه شئ چې دا خبره په تاسو لازمه ده چې تاسو د علماوو دا خبره چې: امام صاحب او دده رحمه الله اصحاب اهل رأيه دي، پدې غلط فهمی کې وانه چوي چې ددوی مقصد د امام صاحب رحمه الله تنقيص دی او همدا رنګه دا غلط فهمي هم ونکړئ چې ددوي مقصد نسبت د احنافو دی ديته چې دوي خپله رأيه په سنت د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په صحابه وو رضی الله عنهم بِاندې مقدمه ګڼي، ځکه چې دوي ددې څخه بالکل بې زاره دي، ځکه چې د امام ابوحنيفة رحمه الله څخه په مِتعدد و طرقو دا خبره رانقل شوې ده د کومې خلاصه چې داده: هغه د ټولو څخه مخکې په قران عمل کولو، او که په دې کې به ورته حکم پيدا نه شو نو بيا به يې (د رسول الله صلى الله عليه وسلم) په سنتو عمل کولو، او که په سنتو کې به هم ورته حکم ملاو نه شو نو بيا به يې د صحابه وو أقوال را اخيستل، او که د صحابه وو رضی الله عنهم په مينځ کې به اختلاف وو، نو بيا به يې د هغه صحابي رضي الله عنه په قول عمل کولو، کوم به چې کتاب او سنت ته نزدې وو، او د دوي رضی الله عنهم د اقوالو څخه به نه وتلو، او که د صحابه وو اقوال به ورته پيدا نشول نو بيا به يې د تابعينو په قول عمل نه کولو، بلکې د هغوی په شان اجتهاد به يې کولو.

(۱۵) امام عبدالوهاب شعراني رحمه الله لیکي چې: فصل في بيان ضعف قول من نسب الامام أبا حنيفة رحمه الله إلى أنه يقدم القياس على حديث رسول الله ﷺ . اعلم: أن هذا الكلام صدر من متعصب على الإمام، متهور في دينه، غير متورع في مقاله، غافلاً عن قوله تعالى: إن السمع والبصر والفؤاد كل أولئك كان عنه مسئولاً. الآية [ميزان ج۱/ ص۵۶].

یعنې دا فصل په بیان د بیانولو د ضعف د هغه چا د وینا کې دی چې هغوي وایي چې: امام صاحب رحمه الله به د رسول الله په حدیث باندې قیاس مقدم کولو، پدې پوه شه چې د امام صاحب رحمه الله په باره کې داسې خبرې د داسې خلکو څخه راووزي چې متعصب وي، او د دین په باره کې بې پروا وي، او په خبرو کې پرهیز نه کوي، او د الله تعالی ددې قول څخه غافل وي چې: د غوږونو، سترګو، او د زړه ددې ټولو په باره کې به دده څخه پوښتنه کیږي.

امام شعراني رحمه الله پدې باندې د پوره بحث څخه وروسته لیکي چې: فعلم من جميع ما قررناه أن الإمام لايقيس أبداً مع وجود النص، كما يزعمه المتعصبون عليه وإنما يقيس عند فقد النص... الخ. [ميزان ج۱/ ص۵۷].

مونږ چې کوم بحث وکړو ددې څخه دا خبره ښه واضحه شوه چې امام صاحب رحمه الله هیڅکله هم د نص په موجودګۍ کې قیاس ندی کړی لکه څرنګه چې د متعصبینو بیان دی، بلکې امام صاحب رحمه الله به صرف په هغه وخت کې قیاس کولو چې نص به ورته پیدا نشو.

امام شعراني رحمه الله مخکې لیکي چې: فأولهم تبريا من كل رأي يخالف الشريعة، الامام الأعظم أبوحنيفة النعمان بن ثابت رضي الله عنه خلاف ما يضيفه إليه بعض المتعصبين، ويا فضيحة يوم القيامة من الإمام إذا وقع الوجه في الوجه ... الخ. [ميزان ج۱/ ص۵۰].

یعنې د متعصبینو د غلطو نسبتونو برخلاف په ټولو امامانو کې اول امام صاحب رحمه الله د هغه رأیې څخه بې زاري اعلان کړې ده کومه چې د شریعت څخه مخالفه وي، د قیامت په ورځ به څومره رسوایي وي د هغه متعصب لپاره چې د امام صاحب رحمه الله سره مخامخ شي، دا په یاد ولرئ چې د امام صاحب رحمه الله ددې صفایي بیان شافعي المذهب امام شعراني رحمه الله کړی دی او امام شعراني رحمه الله

غه شیخ الکل دی چې ټول امت دده په علم او په دیانت باندې پوره اعتماد کوي، غیر مقلدینو هم په ...ریخ اهل حدیث، او په نتایج التقلید کې دده د عباراتو څخه استدلال کړی دی.

**٤۔ پوښتنه: آیا رښتیا امام صاحب رحمه الله د ضعیفو احادیثو څخه استدلال کړی دی؟**

جواب: دا د متعصبینو بالکل بې ځایه وهم دی ځکه چې د امام صاحب رحمه الله په دلایلو کې اکثر ...حیح او حسن احادیث دي.

(۱) امام شعراني رحمه الله سره ددې چې شافعي المسلک دی، د احنافو د دلایلو د قوت څخه متأثره ...ی دی او د خپل زړه رازیې داسې رابښکاره کړی دی چې: فصل في تضعيف قول من قال أن أدلة ...هب الإمام أبي حنيفة رحمه الله ضعيفة غالباً، اعلم يا أخي إني طالعت بحمد الله تعالى أدلة المذاهب ...ربعة لاسيما أدلة مذهب الإمام أبي حنيفة رحمه الله، فإني خصصته بمزيد اعتناء، وطالعت عليه ...اب تخريج أحاديث الهداية للحافظ الزيلعي رحمه الله وغيره من كتب الشروح، فرأيت أدلته ﷺ و ...ة أصحابه رضي الله عنهم ما بين صحيح أو حسن أو ضعيف كثرت طرقه حتى لحق بالحسن أو الصحيح صحة الاحتجاج به من ثلاثة طرق وأكثر إلى عشرة. [ميزان ج/۱ ص۵۸ طبع مصر].

یعنې دا فصل په بیانولو د ضعیفې وینا د هغو خلکو کې دی چې هغوی وایي چې د امام اعظم ...الله دلایل أکثر ضعیف دي، اې وروره! پدې پوه شه چې الحمد لله ما د ټولو وارو مذهبونو دلایل ...طالعه کړي دي، او په خصوصیت سره مې د امام صاحب رحمه الله د مذهب دلایلو ته ډېره توجه کړې ده، ...ما پدې سلسله کې د حافظ زیلعي رحمه الله کتاب "نصب الرأية في تخريج أحاديث الهداية" او ...دارنګه نورې شرحې لیدلې دي، نو د امام صاحب رحمه الله او دده د اصحابو دلایل مې څه صحیح او څه ...سن پیدا کړل او بعضې ضعیف وو خو د تعدد د طرقو له وجهې به هغه هم د حسن مرتبې ته رسیدل او د ...یو څخه تر لسو طرقو پورې به مروي وو.

(۲) امام شعراني رحمه الله لیکي چې: وإنه ما طعن أحد في قول من أقوالهم إلا لجهله به إما من ...يث دليله وإما من حيث دقة مداركه عليه لاسيما الامام الأعظم رضي الله عنه الذي أجمع السلف والخلف ...لى كثرة علمه و ورعه وعبادته ودقة مداركه واستنباطاته... الخ. [ميزان ج/۱ ص۵٤].

چاچې په امامانو کې په کوم امام رحمه الله اعتراض کړی دی نو دا یې صرف د جهالت په وجه کړی دی. ځکه چې یا خو د امام صاحب رحمه الله په دلیل نه دي پوه شوي، او یا د قیاس د وجوهو په باریکۍ نه دي پوه شوي، بالخصوص په امام أعظم رحمه الله باندې اعتراض کول خو بالکل د التفات قابل ندي، ځکه چې سلف او خلف دده په ډېروالي د علم، د تقوی، او عبادت او د قیاس د وجوهو په باریکۍ باندې متفق دي. [میزان ج۱/ ص۵۴].

(۳) مشهور محدث أبوبکر الأجري رحمه الله المتوفي سنة ۳۶۰هـ د امام صاحب رحمه الله په باره کې د بعضو څخه دا رانقل کړي دي چې دده سره نه رأیه وه او نه حدیث. امام شعراني رحمه الله دده قول د رانقلولو څخه وروسته لیکي چې: فإن الحس لایصدق هذا القایل فیما قاله في حق الإمام أبي حنیفة رحمه الله وقد تتبعت بحمد الله أقواله وأقوال أصحابه لما ألفت کتاب أدلة المذاهب فلم أجد قولاً من أقواله وأقوال أتباعه إلا وهو مستند إلی آیة أو حدیث ،أو أثر ،أو مفهوم، ذلک او حدیث ضعیف کثرت طرقه، أو إلی قیاس صحیح علی أصل صحیح... الخ. [میزان ج۱/ ص۵۵].

دې قایل چې د امام صاحب رحمه الله په باره کې کومه خبره لیکلې ده نو حس دده تصدیق نه کوي، ځکه چې کله چې ما الحمدلله د څلورو وارو مذاهبو د ادله وو کتاب ولیکلو، نو د امام صاحب رحمه الله او دده د اصحابو هیڅ داسې قول مې پیدا نکړو چې د هغې لپاره د آیة او یا د حدیث او یا د أثر او یا دده د مفهوم او یا دداسې ضعیف حدیث چې متعدد الطرق وي او یا د صحیح قیاس څخه دلیل نوي، امام شعراني رحمه الله ډېر متأدب وو کما اقر به اللامذهبیون [حاشیة تاریخ اهل حدیث ص۱۱۵]. او دا بیان یې د څلورو وارو مذهبونو د موازنې څخه وروسته کړی دی.

## ٤٦ـ پوښتنه: آیا رښتیا احناف په خبر واحد باندې قیاس مقدم کوي؟

جواب: د زمانې د رفتار سره د لامذهبو تعصب هم په عروج کې دی، احناف فقهاء کثر الله جماعتهم پدې تصریح کوي چې خبر واحد په قیاس باندې مقدم دی:

(۱) د فقه حنفي په مستند، او متداول کتاب در مختار کې لیکي چې: وقف علی أصحاب الحدیث لایدخل فیه الشافعي إذا لم یکن في طلب الحدیث ویدخل الحنفي کان في طلبه أولا.

کهیو سړی د اصحاب الحدیث لپاره یو شی وقف کړي نو شوافع پدې کې نه داخلیږي، ترڅو چې بغه د حدیثو په طلب کې نوي، او احناف په اصحاب الحدیث کې داخل دي، برابره خبره ده چې بالفعل په طلب د حدیثو کې وي او که نوي، او ددې دلیل یې داسې بیان کړی دی چې: لکونه یعمل بالمرسل ویقدم خبر الواحد علی القیاس. [در مختار ج۲/ ص ٤٦٩].

یعنې ددې وجې څخه چې حنفي په مرسل حدیث هم عمل کوي، او خبر واحد په قیاس باندې مقدم ګڼي. (فلهذا د اهل حدیث اولین مصداق احناف دي) د در مختار ددې عبارت څخه یوه دا خبره را معلومه شوه چې احناف خبر واحد په قیاس باندې مقدم ګڼي، او دوهمه دا خبره را معلومه شوه چې کله د اهل حدیث او د اصحاب الحدیث لفظ مطلق ذکر شي نو احناف به تربنه مراد وي، ځکه چې دوي مرسل حدیث هم حجت ګڼي او شوافع یې حجت نه ګڼي، او دا حقیقت دی چې اهل حدیث هغه څوک دي چې ټولو احادیثو ته حجت وایي، برابره خبره ده چې بالفعل په طلب د حدیثو کې مصروف وي او کنه، نوي ځکه چې هغه اصولاً ټول احادیث مني.

حضرت شاه ولي الله الحنفي رحمه الله د واجب او د حرام تقلید لپاره علامې ذکر کوي او فرمایي چې: وأمارة هذا التقلید أن یکون عمله بقول المجتهد کالمشروط بکونه موافقاً للسنة، فلایزال متفحصاً عن السنة بقدر الامکان فمتی ظهر حدیث یخالف قوله هذا أخذ بهذا الحدیث و إلیه أشار الأئمة. [عقد الجید ص٨٤].

یعنې د واجب تقلید علامه دا ده چې د مقلد عمل د مجتهد په قول باندې پدې شرط سره وي چې د هغه قول به د سنتو سره موافق وي، نو همیشه د امکان په مقدار د حدیثو په تفتیش کې وي، او کله چې د مجتهد د قول په خلاف ورته حدیث رابنکاره شي نو په حدیث عمل کوي، او همدې خبرې ته امامانو رحمهم الله هم اشاره کړې ده.

او د حرام تقلید علامه یې داسې ذکر کړې ده چې: فإن بلغه حدیث واستیقن بصحته ولم یقبله لکون ذمته مشغولة بالتقلید فهذا اعتقاد فاسد وقول کاسد لیس فیه شاهد من النقل والعقل وماکان أحد من القرون السابقة یفعل ذلک. [عقد الجید ص ٨٥].

که ده ته حديث ورسيږي او د حديث په صحت يې يقين هم راشي، لکن ددې ټولو سره سره يې ځکه نه مني چې دده ذمه په تقليد باندې مشغوله ده، نو دا فاسده او ناچله خبره ده، عقل او نقل پدې شاهدې نه ورکوي او په مخکنيو قرونو کې هيچا هم داسې نکول.

(۳) علامه شامي رحمه الله فرمايي چې: إذا صح الحديث وكان على خلاف المذهب عمل بالحديث ويكون ذلک مذهبه ولا يخرج مقلده من كونه حنفياً بالعمل به فقد صح عنه أنه قال إذا صح الحديث فهو مذهبي. [شامي ج۱/ ص ۷۰ طبع مصر].

کله چې صحيح حديث ثابت شي او د مذهب په خلاف وي، نو په حديث به عمل کولی شي، او په حديث باندې عمل کول د امام صاحب رحمه الله په مذهب باندې عمل دی، او ددې په وجه دا د حنفيت څخه نه وزي، ځکه چې د امام صاحب رحمه الله څخه په صحيح روايت دا خبره ثابته ده چې صحيح حديث زما مذهب دی.

(۴) او حضرت ملاعلي قاري رحمه الله د احنافو مذهب داسې رانقلوي چې: ان مذهبهم القوي تقديم الحديث الضعيف على القياس المجرد الذي يحتمل التزييف. [مرقات ج۱/ ص۳].

د احنافو قوي مذهب دادی چې دوي ضعيف حديث هم په قياس باندې مقدم کوي، کوم چې د کمزورۍ احتمال لري.

د افسوس مقام دادی چې کوم حضرات چې ضعيف حديث په قياس باندې مقدم ګڼي نو په دوي باندې دا الزام څرنګه صحيح دی چې دوي په صحيح حديث باندې عمل نکوي، البته د کوم حنفي عالم د غلط استدلال څخه دا تأثر پيدا کول چې احناف په خبر واحد باندې قياس مقدم ګڼي غلط دی، ځکه چې احناف رحمهم الله د مجتهد په باره کې معصوميت عن الخطاء نه مني، نو د غير مجتهد په باره کې به يې څرنګه ومني؟ او همدارنګه د احنافو د مذهب مدار په داسې خطاګانو باندې ندی بلکې حنفيت د مفتی به مسايلو نوم دی.

## د احنافو په نيزد ضعيف حديث هم په قياس باندې مقدم دی

امام ابن حجر مکي رحمه الله ليکي چې: وقال ابن حزم جميع أصحاب أبي حنيفة رحمه الله مجمعون على أن مذهبه أن ضعيف الحديث أولى عنده من القياس. [الخيرات الحسان ص۲۷].

ابن حزم رحمه الله فرمايي چې: د امام صاحب رحمه الله ټول اصحاب پدې متفق دي چې ضعيف حديث د قياس څخه بهتر دی.

د غير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چې: وذكر ابن حزم الاجماع على أن مذهب أبي حنيفة رحمه الله أن ضعيف الحديث أولى عنده من الرأي والقياس إذا لم يجد في الباب غيره. [دليل الطالب ص ٨٨٧].

امام ابن حزم رحمه الله فرمايي چې پدې خبره باندې اجماع ده چې د امام صاحب رحمه الله مذهب د ضعيف حديث تقديم دی په قياس باندې کله چې پدې باب کې د دې څخه ما سوا بل شی نه وي.

فى مقدمة اعلاء السنن قال ابن حزم رحمه الله جميع الحنفية مجمعون على ان مذهب ابى حنيفة ان ضعيف الحديث عنده اولى من الرأى فتأمل هذ الاعتناء بالاحاديث وعظيم جلالتها وموقعها عنده كذا فى الخيرات الحسان آه.

مقدمة اعلاء السنن، قواعد فى علوم الحديث صـ ٩٥، ج ١٩، الفصل الثالث فى حكم العمل بالضعف وشرائطه الخ طبع ادارة القران كراچى )

وقال ابن القيم رحمه الله واصحاب ابى حنيفه رحمه الله مجمعون على ان مذهب ابى حنيفه ان ضعيف الحديث عنده اولى من القياس والرأى وعلى ذلک بنى مذهبه آه مقدمة اعلاء السنن صـ ٩٩، ج١٩، طبع حقانيه بشاور)

د ډېر تعجب خبره داده چې کله امام صاحب رحمه الله ضعيف حديث هم په رأيه باندې مقدم ګڼي، نو بيا هم څرنګه دا اعتراض کيږي چې امام صاحب رحمه الله د صحيح حديث په مقابله کې په رأيه باندې عمل کوي؟ دا اعتراضونه صرف د جهل او د تعصب پيداوار دی.

علامه سيوطي رحمه الله او علامه خطيب بغدادي رحمه الله د مشهور محدث عبدالله بن داؤد الخريبي رحمه الله المتوفي سنة ٢١٣ څخه رانقلوي چې هغه به فرمايل چې: الناس في أبي حنيفة رحمه الله حاسد وجاهل وأحسنهم عندي حالاً الجاهل. [بغدادي ج١٣/ ص٣٦٧] و [ تبييض الصحيفة ص ٢٢].

د امام صاحب په باره کې (معترضين) خلک څه حاسدان دي او څه جاهلان دي، او زما په نيز پدوی کي د جهالت والا بهتر دي. عبدالله بن داؤد الخريبي رحمه الله الحافظ القدوة وو. [تذکرة ج۱/ ص۳۰۸].

او د امام بخاري رحمه الله استاذ عبدالله بن المبارک رحمه الله د قاضي الحسن بن عماره رحمه الله په حواله باندې رانقل کړي دي چې: ده امام صاحب رحمه الله ته وفرمايل چې: ومايتكلمون فيك إلا حاسدا. [بغدادي ج۱۳/ ص ۳٦۷].

خلک ستا په باره کې صرف د حسد له وجې خبرې کوي. دا په ياد لرئ چې د جاهل څخه مراد دا ندی چې د امام صاحب رحمه الله په باره کې غلطې خبرې کوونکی د علم څخه جاهل دی، بلکې د جاهل معنی داده چې داسې غلطې خبرې کوونکی سره ددې چې لوی محدث او فقيه به وي لکن بيا به هم د امام ابوحنيفة رحمه الله د صحيح علم او د استدلالاتو د طريقې او د فقاهت څخه ناخبره وي، ځکه چې يا خو امام صاحب رحمه الله په زمانه کې نوي موجود، او د امام صاحب رحمه الله او دده د اصحابو سره د تنفر په وجه يې د دوي کتابونه ندي مطالعه کړي، او يا د حاسدانو د غلط پروپاګند له وجې متأثره شوي وي، او د امام صاحب رحمه الله د علمي مقام پوره کوشش يې نوي کړی وغير ذلک. د امام يحيی بن معين رحمه الله په مخکې به چې چا په امام صاحب رحمه الله باندې اعتراض وکړو نو ده به وفرمايل چې:

حسدوا الفتى إذا لم ينالو فضله　　فالقوم أعـداء له وخصـوم

كضرائر الحسـناء قلن لزوجها　　حسداً وبغـياً إنـها لدمـيم

[ذيل الجوهر ج۲/ ص۱٦۸].

خلک د امام صاحب مرتبې ته نه شي رسيدلی نو ځکه ورسره حسد او دښمني کوي، لکه د ښايسته ښځې بنې چې کله ددې مرتبې ته نشي رسيدلی نو ميړه ته وايي چې دا خو بدشکله ده.

فانقيل: په اصول الشاشي کې فرمايي چې: قياس په داسې خبر واحد مقدم دی چې راوي يې غير معروف فی الفقه وي؟

قلنا: دا داحنافو د أيمه يې ثلاثه وو خبره نه ده، بلکې عيسی بن ابان ته منسوب قول دی، حالانکې عيسی بن أبان ته يې هم نسبت ندی صحيح.

## ٤٧ـ پوښتنه: د حديثو څخه دمخالفت الزامونه ولې په نورو ايمه وو نه لګيږي؟ او صرف په امام صاحب رحمه الله ولې لګيږي؟

**جواب:** په خوله باندې دا اعتراض ډېر اسانه راوځي چې فلاني امام د حديثو څخه مخالفت کړی دی، او فلاني امام خپلې رايې ته په حديثو باندې ترجيح ورکړې ده، لکن بيا ددې خبرې ثبوت ډېر سخت دی چې بغير د کوم قوي عذر څخه کوم امام صرف د يو حديث مخالفت کړی وي.

۱ـ حافظ مغرب ابن عبد البر رحمه الله فرمايي: عن الليث بن سعد أنه قال أحصيت على مالك بن أنس سبعين مسئلة كلها مخالفة لسنة النبي ﷺ مما قال فيه برأيه قال ولقد كتبت إليه في ذلك. [جامع بيان العلم وفضله ج۲/ ص۱٤۸].

امام ليث بن سعد رحمهما الله فرمايي چې: ما د امام مالک رحمه الله (۷۰) اويا داسې مسئلې رشمېرلې چې ټولې د رسول الله ﷺ د سنتو څخه مخالفې وې او امام مالک رحمه الله صرف د خپلې رأيې څخه ويلې وې.

امام ليث بن سعد رحمهما الله د صحاح ستة و مرکزي راوي دی او دا خبره يې د امام مالک رحمه الله پسې فقط په غياب کې نده کړې بلکې امام مالک رحمه الله ته يې په خط کې ليکلې ورليږلې وه او دا هم په ياد ولرئ چې د امام ليث بن سعد رحمهما الله د امام مالک رحمه الله سره ښه دوستي وه داسې نده چې دا خبره يې د تعصب او د حسد له وجې کړې ده.

علامه ذهبي رحمه الله فرمايي چې: كان الليث يصل مالكاً كل سنة بمائة دينار، وكتب مالك إليه ان عليّ ديناً فبعث إليه بخمس مائة دينار. [تذكرة ج۱/ ص۲۰۹].

امام ليث رحمه الله به امام مالک رحمه الله ته هر کال سل ديناره ورليږل او يو وخت ورته امام مالک رحمه الله وليکل چې په ما باندې قرض دی نو امام ليث رحمه الله ورته پنځه سوه ديناره ورولېږل.

لکن حافظ ابن عبد البر رحمه الله په علمي رنګ کې جواب ورکوي او ليکي چې: قال ابو عمر رحمه الله ليس لأحد من علماء الأمة يثبت حديثاً عن النبي ﷺ ثم يرده دون ادعاء نسخ عليه بأثر

مثله او باجماع او بعمل يجب على أصله الانقياد إليه أو طعن في سنده، ولو فعل ذلک أحد سقطت عدالته فضلاً عن أن يتخذ إماماً ولزمه إثم الفسق. [جامع بيان العلم وفضله ج٢/ ص ١٤٨].

امام ابوعمرو رحمه الله فرمايي چې: د امت په علماوو کې هيچاته دا حق نشته چې د رسول الله ﷺ حديث رد کړي بغير د دعوې د نسخې، يا بغير د اجماع، يا بغير د داسې عمل څخه د کوم په اصل چې عمل واجب وي، او يا بغير د طعن څخه په سند د دې حديث باندې، که څوک د دې وجوهو څخه بغير په حديث عمل ونکړي نو د ده عدالت ساقطيږي او په ده باندې د فسق ګناه لازميږي، امام خو بالکل نشي جوړيدلی.

٢- علامه ابن خزم رحمه الله په خپل کتاب مراتب الديانة کې ليکي چې: ما چې په مؤطأ الامام المالک کې مسند حديثونه وشمارل نو د هغوي تعداد د پنځوسو څخه زيات شو او چې مرسل حديثونه مې وشمارل نو د هغوی تعداد درې سوو څخه زيات شو، بيا مخکې ليکي چې: (وفيه نيف وسبعون حديثاً ترک مالک لنفسه العمل بها). [مقدمة التعليق الممجد ص٢٠].

يعنې په مؤطأ کې څه د پاسه او يا (٧٠) داسې حديثونه دي په کومو چې خپله امام مالک رحمه الله عمل ندی کړی.

د حضرت شاه ولي الله رحمه الله او د شاه عبد العزيز رحمه الله د بيان مطابق د تمامو کتبو د حديثو په څو طبقات دي چې په اوله طبقه کې بخاري، مسلم او مؤطأ الامام المالک رحمه الله دی. [حجة الله البالغة ج١/ ص١٣٣]، و [عجالة نافعة ص٥].

تعجب دی چې صرف طبقة اولی نده بلکې خپل کتاب يې دی او بيا يې هم په اويا وو احاديثو باندې عمل نکوي، لکن بيا هم هيڅوک د امام مالک رحمه الله د شان څخه انکار نه شي کولی.

٣- امام محمد بن عبد الله بن عبد الحکم المالکي رحمه الله المتوفی ٢٦٨ھ ډېر لوی امام، حافظ او ثقه وو. [تذکرة ج٢/ ص١١٥]. [و طبقات الشافعية الکبری ج١/ ص٢٢۴].

ده د امام شافعي رحمه الله په رد کې يو کتاب ليکلی دی صنف کتاباً سماه الرد على الشافعي فيما خالف فيه الکتاب والسنة. [طبقات الکبری ج١/ ص٢٢٤].

او د کتاب نوم یې دی (په امام شافعي رحمه الله باندې رد په هغو مسایلو کې چې د کتاب او د سنت څخه یې پکې مخالفت کړی دی).

۴- حضرت امیر المؤمنین في الحدیث امام بخاري رحمه الله د حدیثو د یو قوي قسم د حجیت څخه انکار کړی دی چې حسن ورته وایي، لکه څرنګه چې قاضي شوکاني او غیر مقلد نواب صدیق حسن خان لیکي چې: وكذا يجوز الاحتجاج بما صرح أحد الأيمة المعتبرين بحسنه، لأن الحسن يجوز العمل به عند الجمهور ولم يخالف في الجواز إلا البخاري وابن العربي، والحق ما قاله الجمهور لأن أدلة وجوب العمل بالآحاد وقبولها شاملة له. [نيل الأوطار ج١/ ص٢٢] [والجنة ص٦٥].

یعنې د جمهورو علماوو په نیز باندې حسن حدیث حجت دی خلافاً للبخاري وابن العربي، لکن حق مذهب د جمهورو دی، ځکه چې د خبر واحد د قبلولو دلایل د حسن حدیث لپاره هم شامل دي.

علامه صالح بن مهدي رحمه الله د امام بخاري رحمه الله ددې نظریې په باره کې لیکي چې: وهو قول بعيد عن الأدلة بل لو قيل خلاف ما عليه الأولون والآخرون لسانح ذلك. [رواح النوافخ لآثار الأباء والمشايخ ص٦٨٩].

د امام بخاري رحمه الله دا قول د دلایلو څخه ډېر لرې دی، بلکې که دا وویل شي چې دده دا قول د متقدمینو او د متأخرینو د مسلک څخه مخالف دی نو دا وینا به هم صحیح وي.

څوک چې د حدیثو په اقسامو خبر وي هغه پدې پوهیږي چې حسن حدیثونه سلګونه نه بلکې زرونه دي او صرف یو زر حسن حدیثونه د حماد بن سلمة څخه روایت شوي دي. [تهذيب التهذيب ج٢/ ص١٥].

نو که یو داسې احمق چې د میزان صرف سره بخاري شریف یو ځای وای دا اعتراض وکړي چې امام بخاري رحمه الله ددو مره، احادیثو څخه منکر دی دا به دده خپل حماقت وي. اهل حق د امام بخاري رحمه الله په شان کې د هیڅ قسم نقصاني وینا اورېدلو ته تیار ندي، بلکې هغوي دا وایي چې امام بخاري رحمه الله مجتهد وو، هغوی د خپل دیانت او صوابدید مطابق داسې وینا کړې ده.

## ۴۸ـ پوښتنه: د حدیثو څخه د مخالفت څه معنی ده؟ او داجتهادیاتو ثبوت

آیا یو سړی چې د حدیث په ظاهر باندې عمل نکوي بلکې د حدیث څخه د مستنبطې معنی اطاعت کوي کومه چې د ظاهري الفاظو څخه متبادره نوي، نو آیا دې سړي ته د حدیثو څخه مخالف ویلی شي؟ او آیا هره نهې د تحریم لپاره ده؟

**جواب**: مخکې د ۴۰ پوښتنې لاندې یو څه تفصیل وشو چې د حدیث په ظاهر باندې عمل نه کول هیڅکله د حدیث مخالفت نه دی.

۱- د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د خندق د غزا په موقع وفرمایل چې: فوراً د بنو قریظه وو په طرف روان شئ او ویې فرمایل چې: لا يصلين أحدٌ العصر إلا في بني قريظة، فأدرک بعضهم العصر في الطريق فقال بعضهم لانصلي حتى نأتيها، وقال بعضهم بل نصلي لم يرد منا ذلک وذکر ذلک للنبي ﷺ فلم يعنف واحداً منهم.[بخاري ج۲/ ص۵۹۱].

هیڅوک دې هم د مازدیگر مونځ نه کوي مگر په بنو قریظه وو کې دې وکړي، بیا په لاره کې د مازدیگر مانځه وخت راغلو نو بعضو صحابه و رضی الله عنهم وفرمایل چې: مونږ په لاره کې مونځ نه کوو بلکې بنو قریظه و ته یې رسوو او بعضو صحابه و رضی الله عنهم وفرمایل چې مونږ په همدې لاره کې مونځ کوو ځکه چې د رسول الله ﷺ مراد دا نه وو چې په لاره کې مونځ مه کوئ، نو هغوی مونځ وکړو، کله چې د رسول الله ﷺ په مخکې د دې واقعې ذکر وشو نو رسول الله ﷺ هیڅوک هم ملامته نه کړل. نو په دې صحابه وو کې یو ډلې د حدیث ظاهري الفاظو ته وکتل او د مازدیگر مونځ یې د ماخوستن څخه وروسته په بنو قریظه وو کې وکړو او بلې ډلې د صحابه وو د معنی مرادي لحاظ وکړو او د مازدیگر مونځ یې په خپل وخت کې په همدې لاره کې وکړو، حافظ ابن قیم رحمه الله لیکي چې دا دو همه ډله فقیهه وه او د دوو اجرونو مستحقه ده او اوله ډله معذوره لکن مأجوره وه او د یوه اجر مستحقه وه. [زاد المعاد ج۲/ ص۷۲].

حافظ ابن حجر رحمه الله د دې حدیث په تشریح کې لیکي چې: قال السهيلي وغيره في هذا الحديث من الفقه أنه لايعاب على من أخذ بظاهر حديث أو آية وعلى من استنبط من النص معنى يخصصه [پ۱٦ ص٦۷].

امام سهيلي رحمه الله او نور محدثين فرمايي چې ددې حديث څخه رامعلومه شوه چې هغه څوک قابل د ملامتيا نه دي چې د حديث او يا د آيت په ظاهر باندې عمل کوي، او هغه څوک هم قابل د ملامتيا ندي چې د آيت او يا د حديث څخه کومه معنی راوباسي چې د نص تخصيص ورباندې راولي، تعجب دی چې د رسول الله ﷺ نهې په نون تاکيده ثقيله باندې مؤکده ده، او د نهې څخه وروسته يې لفظ د أحد راوړی دی، چې د استغراق لپاره دی او هيڅ فرد ترينه هم مستثنی نه دی، لکن بيا هم يوه ډله د حديث د ظاهر په خلاف عمل کوي، او بيا هم د ملامتيا قابل نه دي بلکې د دوو اجرونو مستحق دي، او څوک چې په ظاهر عمل کوي هغه د يو اجر مستحق دی.

۲- د منافقينو يوې ډلې د رسول الله ﷺ په وينځه حضرت ماريه رضی الله عنها باندې د خپل تره زوی حضرت مأبور رضي الله عنه سره د زنا تهمت ولګولو، او دا خبره تر دومره اندازې پورې خوره شوه چې خپله د رسول الله ﷺ هم يقين راغلو، او څه قراين او شواهد هم داسې وو چې د هغوی په وجه يقين بې ځايه نه وو، نو رسول الله ﷺ په غيرت کې راغلو او حضرت علي رضي الله عنه ته يې امر وکړو چې ورشه مأبور رضي الله عنه چې دې په کوم ځای کې پيدا کړو قتل يې کړه، د رسول الله ﷺ الفاظ داسې و: اذهب فاضرب عنقه. [مسلم ج۲/ ص۳٦۸]. ورشه سريې کټ کړه. حضرت علي رضي الله عنه لاړو حضرت مابور يې پيدا کړو، حضرت علي رضي الله عنه چې راونيولو نو په کشمکش کې د حضرت مأبور رضي الله عنه لنګ خلاص شو، حضرت علي رضي الله عنه چې کله وليدلو نو معلومه شوه چې: لم يخلق الله له ما للرجال. [مستدرک ج٤/ ص۳۹].

الله تعالی فطرتاً دده آله د تناسل نوه پيدا کړې، او د مسلم الفاظ داسې دي چې: وإنه لمجبوب ماله ذکر. [مسلم ج۲/ ص۳٦۸] هغه نامرد دی د هغه بالکل آله د تناسل نه وه. حضرت علي رضي الله عنه چې کله دا محسوس کړه چې په ده کې هغه علت نه شته د کوم په وجه چې ده ته د رسالت د دربار څخه د وژلو حکم شوی وو، نو حضرت علي رضي الله عنه دا ظاهري حکم عملي نه کړو، بلکې بيرته راغلو او رسول الله ﷺ ته يې قيصه ذکر کړه، رسول الله ﷺ وفرمايل چې: الشاهد يری ما لا يری الغائب. [مسند أحمد ورجال أسناده ثقات. البداية والنهاية ج٥/ ص۳۰٤] و [روی أنس مثله وأسناده صحيح، الجامع الصغير ج۲/ ص٤].

رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته د حد او یا د تعزیر په باب کې صریح حکم وکړو چې د هیڅ نرمۍ کولو ګنجایش پکې پاتې نه شو، لکن حضرت علي رضي الله عنه د دې حکم د منلو څخه ځان عاجز حساب کړو، او د نبوت د دربار څخه ورته د ملامتیا په ځای باندې افرین حاصل شو، نو حضرت علي رضي الله عنه ته د دې حدیث د ظاهر څخه د مخالفت په وجه هیڅکله منکر د حدیث نه شي ویل کیدای، او نه کوم مسلمان د دې تصور کولی شي.

۳- د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چې : فان أمة لرسول الله ﷺ زنت فـأمرني أن أجلدها فخشيت ان أنا جلدتها أن أقتلها فذكرت ذلک للنبي ﷺ فقال: أحسنت. [مسلم ج۲/ ص۷۱].

د رسول الله ﷺ یوې وینځې زنا کړې وه نو ماته رسول الله ﷺ امر وکړو چې په دوروېې ووهم، نو ما ولیدله چې د هغې نوی بچی پیدا شوی وو، نو زه ودار شوم چې که دې ښځې ته سزا ورکړم نو مړه به شي، نو (د وهلو څخه بغیر راغلم) رسول الله ﷺ ته مې قیصه وکړه، رسول الله ﷺ راته وفرمایل چې تا ښه کار کړی دی.

د رسول الله ﷺ په حکم کې قیدونه او شرطونه نه وو، لکن حضرت علي رضي الله عنه چې د فقهاوو صحابه وو څخه وو په خپل اجتهاد باندې پدې پوه شو چې د رسول الله ﷺ حکم اګر چې په ظاهر کې مطلق دی لکن په حقیقت کې په دې شرط باندې مقید او مشروط دی، چې وینځه به نه مړه کیږي، او د نفاس په حالت کې سزا ورکول کیدای شي چې مرګ راولي. له دې وجې یې سزا ورنکړه.

٤- د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه یو اوږد حدیث دی په کوم کې چې د حدیبې د صلحې پوره حالات ذکر شوي دي، د حالاتو په مینځ کې دا مضمون هم راغلی دی چې کله د صلحې معاهده وشوه نو په صلح نامه کې کاتب (حضرت علي رضي الله عنه) دا الفاظ هم ولیکل چې : هذا ماقضى عليه محمد رسول الله ﷺ ...

د مشرکانو نماینده سهیل رضي الله عنه (چې بیا وروسته مسلمان شو) پدې باندې احتجاج وکړو او ویویل چې که مونږه دا منلی چې ته رسول الله یې نو بیا مو درسره اختلاف ولې کولو؟ لدې وجې د رسول الله ﷺ لفظ لرې کړئ او د دې په ځای د محمد بن عبد الله لفظ ولیکئ، رسول الله ﷺ وفرمایل چې: زه محمد رسول الله هم یم او محمد بن عبد الله هم یم لکن چې مشرکان یې نه مني نو د حالاتو د انتهایي

نژاکت له وجې يې وفرمايل چې: أُمْحُ رسول الله، قال: لا والله لا أمحوک أبداً. [بخاري ج۱ ص۳۷۲].
يعنې د رسول الله لفظ وران کړه حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل چې قسم مې دې په الله تعالی وي چې زه به يې هيڅکله هم وران نه کړم. او په يوه روايت کې داسې الفاظ دي چې فأمر علياً أن يمحاها فقال: علي رضي الله عنه والله لا أمحاها. [مسلم ج۲ ص۱۰۵]. يعنې رسول الله ﷺ علي رضي الله عنه ته امر وکړ چې دا الفاظ وران کړه لکن حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: قسم په الله تعالی چې زه به يې وران نه کړم.

ډېره د تعجب خبره ده چې رسول الله ﷺ د حضرت علي رضي الله عنه نوم اخلي، او حکم ورته کوي چې اې علي دا الفاظ وران کړه لکن حضرت علي رضی الله تعالی عنه د حُکم د منلو په ځای په قسم سره وايي چې نه يې ورانوم. دبصيرت خاوندان په دې پوهيږي چې د مشرکانو په مخ کې د حضرت علی رضی الله تعالی عنه ظاهري انکار هم د عشق محمدی ﷺ او د أدب محمدی ﷺ د سمندر پټې څپې دي. او د خال په ژبه باندې کافرانو ته دا ويل دي :د کوم پيغمبر په مينه کې چې مونږه د دنيا ټولې خوشحالۍ او مزې پريښې دي د هغه د نقش ايستل له زړه څخه خو محال ده، مونږ د کاغذ څخه هم د هغه د نوم ايستلو ته تيار نه يو.

امام نووي رحمه الله فرمايي چې: ( وهـذا الذی فعلـه علی رضی الله تعـالی عنـه مـن بـاب الادب المستحب، لانه لم يفهم من النبی صلی الله عليه وسلم تحتيم محو علی رضی الله تعالی عنـه بنفسـه ولهذا لم ينكر، ولو حتم محوه بنفسه لم يجز لعلی رضی الله تعالی عنه تركه و لما أقره النبی صلی الله عليه وسلم علی المخالفة). [شرح مسلم / ج ۲ / ص ۱۰٤].

دغه کار چې حضرت علی رضی الله تعالی عنه وکړو د مستحب ادب له باب څخه دی، ځکه چې حضرت علی رضی الله تعالی عنه د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم د امر څخه دا راوفهموله چې د دې امر منل خپله په حضرت علي رضی الله تعالی عنه باندې لازم نه دي او له همدې امله حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم په حضرت علي کرم الله تعالی وجهه باندې څه گرفت ونه کړو. که په حضرت علي رضی الله تعالی عنه باندې دده په لاس ورانول لازم وی نو بيا به نه حضرت علي رضی الله تعالی عنه ته انکار جايز وای او نه به حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې مخالفت باندې برقرار پريښی وای.

۵-له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما څخه روایت دی چې: له ده څخه حضرت رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم پوښتنه وکړه چې: ته په څومره وخت کې قرآن کریم ختموې؟ده(ﷺ) ورته وویل چې زه هره شپه کې یو وار د قرآن کریم ختم کوم! حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې: ( اقرأ فی کل سبع لیالٍ مرة ) [ بخاري / ج ۲ / ص ۷۵۵ ] یعنې په هره هفته کې یو وار ختم کوه. او په یو روایت کې الفاظ داسې دي: ( فاقرأ فی سبعٍ ولا تزِد علی ذلک ) [بخاري/ج۲ /ص ۷۵۶ ] یعنې په هفته کې یوائې یو وار ختم کوه او په دې باندې زیاتوالی مه کوه! امام بخاري رحمه الله تعالی د رِوایاتو اختلاف ذِکر کوي او فرمایي چې: قـال بعضـهم فی ثـلاث و فی خمس و اکثرهم علی سبع [ بخاري/ ج ۲/ ص ۷۵٦] یعنې ځینو په دریو، او ځینو په پنځو، او اکثرو په اوو ورځو کې یو وار د قرآن کریم ختم ذکر کړی دی.

د روایت په لحاظ امام بخاري رحمه الله د اوو ورځو روایت ته ترجیح ورکړې ده، که د دریو ورځو روایت راجح شي نو بیا هم د دریو ورځو څخه په کمو ورځو کې د قرآن کریم ختم کول په احادیثو کې په نظر نه راځي، مګر بیا هم په دې اُمتِ مرحومه کې ډېر داسې خلک تېر شوي دي چې یوائې په یوه شپه کې یې قرآن کریم ختم کړی دی. په صحابه کرامو کې چې چا په یوه شپه کې د قرآن کریم ختم کړی دی په هغو کې حضرت عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه، حضرت تمیم الداري رضی الله تعالی عنه او حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله تعالی عنهما په خاص طور سره د یادولو لایق دي. [ قیام اللیل/ص ٦۱ ،طبقات ابـن سـعد / ج ۳ / ص ۵۳ / طحـاوي / ج ۱ / ص ۲۵۰ / تهـذیب التهـذیب / ج ۱ / ص ۵۱۱/ طحاوی / ج ۱ / ۲۰۵ / قیام اللیل / ص ٦۳ ].

او په امامانو کې چې چا په یوه شپه کې د قرآن کریم ختم کړی دی له امام اعظم رحمه الله څخه ماسوا په هغوی کې دا لاندې کسان د یادولو قابل دي: امام شافعي رحمه الله به یوائې د روژې په میاشت کې اویا (۷۰) ختمونه کول. [ تذکرة الحفاظ / ج ۱ / ص ۳۲۹ ].

یو ځلې یې د اِجماع د مسئلې په تالاش کې په یوه ورځ کې درې او په دریو ورځو کې نهه ختمونه وکړل. [ مِفتاحُ الجنة / ص ۲۹ ].

امام الجرح والتعديل يحيى بن سعيد القطان به په يوه شپه او ورځ کې قرآن کريم ختماوه. [بغدادی /ج ۱۴/ ص ۱۴۱. /تهذيب الاسماء واللغات /ننووی /ج ۲/ ص ۱۵۴].

د تاريخ، اسماء الرجال، اود طبقاتو په کتابونو کې د امام بخاري رحمه الله په حالاتو کې راغلي دي:
(وکان يختم بالنهار فی کل يوم ختمةً و يکون ختمه عند الافطار کل ليلة و يقول عند کل ختم دعوة مستجابة) [ تاريخ بغداد / ج ۲ / ص ۱۲ / طبقات الکبری / ج ۲ / ص ۹ / الحطه / ص ۲۲ ].

امام وکيع بن الجراح رحمه الله به هم په يوه شپه کې قرآن کريم ختماوه. [بغدادی /ج ۳ /ص ۴۷۰ ].
داسې خلک په سلګونو او له سلګونو څخه زيات دي.

که د حديث ظاهري الفاظو ته ګورو نو د اهل ظواهرو په شان به دا فتوی ورکوو چې: د مذکورو ورځو څخه په کمو ورځو کې د قرآن کريم ختمول مکروهِ تحريمي دي. [حاشيه بخاري /ج ۲ /ص ۷۵۶] او معاذالله په دې اسلافو به دا فتوی لګوو چې: دوي مکروهِ تحريمي کار کړی دی. مګر اهلِ علم دا ښکلنه وايي او د دې حديث آسانه مطلب دا بيانوي چې د حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم دا ارشاد يوازې او يوازې په خپل اُمت باندې د شفقت او د ترحم له پاره وو.

۶- د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله تعالی عنه دا شکايت تر رسول الله صلی الله عليه وسلم پورې ورسيدو چې ده په ځان باندې د ( صيامُ الدّهر ) او همدا رنګه همېشه د ټولې شپې قيام لازم کړی دي، د کوم په وجهه چې د نورو جايزو کارونو څخه علاوه د زوجيت په حقوقو کې هم خِلل واقع شوی دی. حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: داسې مکوه بلکې تهجد کوه او په هره مياشت کې درې ورځې روژې نيسه! هغه ( رضي الله عنه ) د زيادت خواهش وکړ، نو حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: بيا يوه ورځ روژه نيسه او يوه ورځ يې افطار کوه. داد حضرت داود عليه السلام روژه ده او له ټولو څخه بهتره ده. او په يو روايت کې الفاظ داسې دي چې: ( قال النبی صلی الله عليه وسلم لا صامَ من صامَ الابد مرّتين ) [بخاری ج ۱ / ص ۲۶۵].

حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم دوه ځلي وفرمايل: څوک چې همېشه روژه نيسي د هغه روژه نه کېږي. لکن په دې مرحومه امت کې بې شماره داسې خلک تېر شوي دي چې ( صائمُ الدّهر ) وو.

حضرت امام شعبه بن الحجاج رحمه الله ، امام الوکیع بن الجراح رحمه الله ، امام بخاری رحمه الله صایم الدهري وو تاریخ بغداد / ج ۱ / ص ۴۷۰ / میزان الکبری / ج ۱ / ص ۵۰ / نتایج التقلید / ص ۳۰ ]. او همدا راز د غیر مقلدینو دوینا مطابق د دوي امام حافظ عبد الله روپړي هم صایم الدّهر وو. [ تحفة الاحوذي / ص ۲۲۲

۷- حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د فطرت په خصلتونو کې یو داهم وفرمایل چې: (ونتف الابط ) [ بخاري/ ج ۲ / ص ۸۷۵ / مسلم / ج ۱ / ص ۱۲۸ ] . د تخرګونو د وېښتانو اېستل په هیڅ صحیح حدیث کې د تخرګونو د خریېلو ذکر نه دی راغلی ، حالانکه جمهور اُمت په نتف باندې عمل نه کوي، نو آیا دا ټول اُمت تارکین د عمل بالحدیث دي ؟ . امام نووي رحمه الله او قاضي شوکاني د (نتف الابط ) په تشریح کې لیکي چې: (اَمّا نتفُ الابطِ فَسُنّةٌ بِالاتفاقِ والافضلُ فیه النّتفُ لِمن قَوِیَ علیه و یحصل ایضاً بالحلقِ و بالنّورةِ ، و حُکِيَ عن یونس بن عبدالاعلیٰ قال: دخلتُ علی الشافعي رحمه الله و عنده المزین یحلق ابطهُ فقال الشافعي رحمه الله علمتُ ان السّنةَ النّتفُ و لکن لا اقوی علی الوجع . ) [ شرح مسلم / ج ۱ / ص ۱۲۹ / نیل الاوطار / ج ۲ / ص ۱۲٤ ] . د تخرګونو څخه د وېښتانو ختمول اتفاقي سُنّت دي، او بهتره اېستل دي چې څوک یې کولای شي. او په کلولو او په چونه باندې په لرې کولو سره هم دا مقصد حاصلیږي. یونس بن عبدالاعلی رحمه الله فرمایي چې: زه امام شافعي رحمه الله ته ورغلم، نو د امام شافعي رحمه الله سره حجام ناست و چې د تخرګونو وېښتان یې ورته خریېل، امام شافعي رحمه الله وفرمایل چې: زه پوهېږم چې سُنّت طریقه د وېښتانو اېستل دي لکن زه د درد زور نه لرم. نو امام شافعي رحمه الله او نورو ائمه کرام چې د شریعت له روح څخه خبر دي او یوازې په پوستکي باندې اکتفاء نه کوي، په دې پوهیږي چې مقصود بالذات د وېښتانو ختمول دي، هغه که په هره طریقه سره وي.

۸- د حضرت انس بن مالک رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې: قال النبی صلی الله تعالی علیه وسلم لا یتمنیَّن أحدکم الموت من ضرٍّ أصابه فان کان لا بُدّ فاعلاً فلیقل أللّهُمَّ أحیني ما کانت الحیاة خیراً لي و توفني اذا کانت الوفاة خیراً لي . ) [ بخاري / ج ۲ /ص ۸٤۷ ].

حضرت رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فرمایلي دي چې: هیڅوک دې هېڅکله هم د تکلیف له امله مرګ نه غواړي، خو که خامخا د مرګ تمنا کوي نو داسې دې وایي چې: یا الله! که ژوند راته خیر وي نو ژوند راکړه او که مرګ راته خیر وي نو مرګ راکړه.

په دې حدیث کې د ضرر او د تکلیف لفظ مطلق ذکر شوی دی، چې که دیني تکلیف وي او که دنیاوي. او نهې هم د نونِ تاکید ثقیله سره راغلې ده. مګر د حدیثو شارحینو په دې ځای کې له ضرر څخه دنیوي ضرر مُراد کړی دی، لکه څرنګه چې حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمایي چې: ( والمُراد بالضررِ هٰهُنا ما یخص العبد فی بدنه و نحوه لا فی دِینه. ) [ البدایه والنهایه / ج ۱/ ص ۲۱۹ ]. یعنې له ضرر څخه بدني ضرر مراد دی، لکه مرض وغیره. له دې څخه دیني ضرر مراد نه دی.

د امام بخاري رحمه الله چې کله د خپل استاد امام محمد بن یحیی الذهلي رحمه الله سره په ځینو مسایلو کې اختلاف رامنځ ته شو، نو د بُخارا د حاکم او د نورو وطنوالو په سازش باندې له سمرقند څخه بهرت کولو ته مجبور شو، او دوه فرسخه لرې (خرتنګ) ته لاړو، امام عبد الجبار السمرقندی رحمه الله فرمایي چې: فسمعته لیلة من اللیالی و قد فرغ من صلوة اللیل یدعوا و یقول في دعائه: اللّٰهمّ انّه ضاقت علیّ الارضُ بما رحُبت فاقبضني الیک، قال فما تم الشهر حتی قبضه الله الیه. و قبره بـ (خرتنګ) [ تاریخ بغداد / ج ۲ / ص ۳٤/ طبقات الشافعیة الکبری / ج ۲/ ص ١٤ ].

ما یوه شپه له امام بخاري رحمه الله څخه واورېدل چې د تهجد و له لمانځه څخه وروسته یې داسې دُعا کوله چې: یا الله! ستا دا پراخه ځمکه نوره په ما تنګه شوې ده، نو ر ما خپل لوري ته در وغواړه. له دغه دعا کولو څخه وروسته یوه میاشت نه وه تېره شوې چې امام بخاري رحمه الله وفات شو. او قبر یې په (خرتنګ) کې دی.

۹- کله کله داسې هم وي چې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم له یو شي څخه منعه کړې وي مګر د حدیث الفاظ د دې د تشریح او د تفصیل څخه ساکت وي چې دا نهي په څه درجه کې ده؟ د حرامو په مرتبه کې ده او که د خلاف الاولی؟ مګر اهلِ علم د فراست او د تفقهه په ذریعه د دې حدیث مرتبه متعینه کوي. مثلاً: د حضرت ام عطیّه رضی الله عنها په حدیث کې راځي چې: نُهینا عن اتباع الجنائز

ولم يعزم علينا [ بخاري / ج ١ / ص ١٧٠ ] . مونږه ( زنانه ) په جنازو کې له شرکت کولو څخه منعه شوې وو ، لکن په مونږ باندې ددې تاکيد نه و شوی . اود دې ( رضی الله عنها ) په يو روايت کې داسې الفاظ راغلي دي چې : ( کُنّا ننهي عن اتباعِ الجنائزِ و لم يعزم علينا ) [ مسلم / ج ١ / ص ٣٠٤ ].

مونږه ( زنانه ) د جنازو پسې له تللو څخه منعه شوې وو ، ليکن په مونږ باندې ددې تاکيد نه وو شوی . امام نووي رحمه الله ددې په تشريح کې ليکي چې: معناه نهانا رسول الله صلى الله عليه وسلم عن ذلک نهى کراهةٍ تنزيهيةٍ لا نهى عزيمةٍ و تحريم. [ نووی / ج ١ / ص ٣٠٤ ] . ددې معنا داده چې مونږه ( زنانه ) رسول الله صلى الله عليه وسلم په جنازو کې د شريکېدلو څخه منعه کړې وو ، لکن دا نهى د تنزيه په مرتبه کې وه ، د تحريم اود تاکيد په مرتبه کې نه وه.

له دې څخه معلومه شوه چې: ام عطيّه رضی الله عنها د خپل اجتهاد او د تفقهه په ذريعه دا معلومه کړه چې ددې نهيې مرتبه د تحريم مرتبه نه ده، حالانکه په الفاظو کې دا تقسيم نشته ، خو بيا هم دې بي بي رضی الله عنها د حديث له منع څخه د کراهت تنزيهي معنا را ايستلې ده.

١٠-کله کله داسې هم شوي دي چې: حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم يو حُکم يوازې د مشورې په طريقه ورکړی وي او د هغې منل او نه منل دواړه جايز وي. او د دې حکم د منلو څخه انکار نافرماني نه وي. مثلاً: کله چې حضرت بريره رضی الله عنها آزاده شوه نو د شرعي حکم مطابق دې بي بي ته خيارِ عتق ثابت شو، چې د خپل پخواني مېړه ( حضرت مغيث رضی الله عنه ) سره په هماغه نکاح کې پاتې کېږي او که نکاح فسخ کوي. نو حضرت بريرې رضی الله تعالى عنها له حضرت مغيث رضی الله تعالى عنه څخه جُدايي خوښه کړه. حضرت مغيث رضی الله تعالى عنه به په کوڅو کې ګرځيده او په ژړا ژړا سره به يې بېړه لنده شوه او دې بي بي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته به يې سوال او زاری کولې چې له ما څخه مه جدا کېږه! حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت بريرې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمايل چې: په حضرت مغيث رضی الله عنه باندې رحم وکړه ! هغې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته وفرمايل چې: يارسول الله ! تأمرني ؟ قال : انما أنا أشفع ! قالت : فلا حاجة لي فيه . [ بخاری / ج ٢ / ص ٧٩٥ / مشکوة / ج ٢ / ص ٢٧٦ ]. يعنې يارسول الله ! ته ماته امر

کوې؟ رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل: زه سفارش کوم! حضرت بریرې رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا وفرمایل چې: بیا نو زما ده رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا ته ضرورت نشته.

حضرت بریرې رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا په خپل تفقهه او اجتهاد سره د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د حُکم مرتبه متعینه کړه، چې که دا حکم او امر وي نو په ما باندې یې منل واجب دي، نو بیا یې له منلو څخه پرته بل علاج نشته. او که یوائې مشوره وي نو بیا ماته د منلو او د نه منلو حق حاصل دی.

۱۱- کله کله داسې وي چې د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د ظاهري حُکم منل غټ جُرم او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له رضا څخه مخالفت وي، او د ظاهري حُکم نه منل د رِسالت د مُراد او د نبوت له منشأ سره موافقت وي. که یقین مو نه راځي نو لاندې روایت وګورئ!

حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د اودس ماتي د مسائلو په بیان کې وفرمایل چې: تاسو د کعبې شریفې لوري ته مه مخ اړوئ او مه ورته شا اړوئ! بلکې: (شرِّقوا) او (غرِّبوا) [بخاری/ج ۱/ ص ۲۶]. یعنې د مشرق او یا د مغرب طرف ته مخامخ کښېنئ! او په یو روایت کې الفاظ داسې دي: (ولکن شرّقوا او غرِّبوا) [مسلم/ج ۱/ص ۱۳۰] او لکن د مشرق او یا د مغرب په طرف مخ کړئ!

امام نووي رحمه الله فرمایي چې: دا حُکم د اهل مدینه وو او د هغه چا له پاره دی چې د هغوي قبله شمال او یا جنوب طرف ته وي. [نووي/ج ۱/ ۱۳۰].

اوس که په (بر صغیر افغانستان، پاکستان او هندوستان) او ددې سَمت په نورو هیوادونو کې څوک د (شرِّقوا) او (غرِّبوا) په ظاهره بَاندې عمل وکړي نو دا به د قبلې توهین وي. او د نبوت د مراد څخه به مخالفت وي. او د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د خفګان سبب به وي.

۱۲- کله کله داسې وي چې: د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حُکم د حقیقت معلومول ممکن نه وي، نو په داسې ځای کې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم مُجتهد ته امر کوي چې د الله تعالی جل جلاله د حُکم څخه صَرفِ نظر شي او په خپل اجتهادي حُکم باندې عمل وکړئ. نو دلته د الله تعالی جل جلاله د حُکم څخه صَرفِ نظر او په خپل اجتهاد باندې عمل کول عینِ د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د حُکم منل دي.

لکه څرنګه چې یو لوی حدیث مبارک دی، په هغې کې راغلي دي چې: کله به چې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د دښمن په لوري کوم لښکر لیږلو نو د لښکر امیر ته به یې ضروري او مُفید وصیتونه او نصیحتونه کول او په دغو نصحیتونو کې دا هم راغلي دي چې: واذا حاصرتَ اهل حصنٍ فأرادوک ان تنزلهم علی حُکم الله فلا تنزلهم علی حُکم الله ولکن أنزلهم علی حُکمک فانک لا تدری اتصیب حکم الله فیهم ام لا ؟ . [مسلم/ ج ۲ / ص ۸۲ / ابو داود / ج۱/ ص۳۵۲/ ترمذی/ج۱/ص۱۹۷/ ابن ماجه/ ص۲۱۰ ].

یعنې چې کله مو د یوې قلا والا محاصره کړل او هغوی د صُلحې په غرض دا اراده وکړه چې تاسو هغوي د الله جل جلاله په حُکم باندې را کوز کړئ نو تاسو هغوي ته د الله جل جلاله په حُکم باندې پناه مه ورکوئ! بلکې په خپل (اجتهادي حُکم) باندې پناه ورکړئ! ځکه چې تاسې په دې نه پوهېږئ چې تاسې به په دې کې د الله جل جلاله حُکم ته ورسېږئ او کنه؟

نو یو طرف ته د الله جل جلاله دا حُکم دی چې (اِنِ الحُکمُ الاّ لله) یعنې د الله جل جلاله څخه بغیر د بل هیچا له پاره حُکم نشته. او بل طرف ته حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې صحیح حدیث کې د لښکر امراوو ته فرمایي چې: (فلا تنزلهم علی حُکم الله) یعنې دوي دا الله جل جلاله په حکم مه را کوزوئ! بلکې په خپل حُکم یې دې ته تیار کړئ! ځکه چې ممکنه ده چې د الله جل جلاله د حُکم د حقیقت پورې ستاسو رسېدل ونه شي.

له دې څخه دا مسئله هم را معلومه شوه چې: که په دې ځای کې مجتهد خطا شي، نو بیا هم مأجور دی. او د امام نووي رحمه الله له تشریح څخه یوه بله مسئله هم را معلومیږي، او هغه دا چې: کله نهی د تنزیه له پاره وي، هغه (رحمه الله) فرمایي چې: هذ النهی ایضاً علی التنزیه والاحتیاط، و فیه حجة لمن یقول: لیس کل مجتهدٍ مصیباً، بل المصیبُ واحدُ و هو الموافق لِحُکم الله تعالی فی نفس الامر.. الخ [ نووی شرح مسلم / ج ۲ / ص ۸۲ ].

دا نهيې د تنزيه او د احتياط له پاره ده او په دې کې د هغو خلکو له پاره هم دليل دی چې هغوی وايي چې هر مجتهد مُصِيب نه دی. بلکې مصيب يوائې هغه دی د کوم فيصله چې په نفس الامر کې د الله جل جلاله حُکم سره مطابقه وي.

ددې مسئلې نور ډېر مثالونه دي، مونږ به يوائې په همدې اکتفاء وکړو.

د منصف سړي له پاره دا کافي ده او له دې څخه په آساني سره ځان په دې پوهولی شي چې د حديث د ظاهري الفاظو څخه علاوه کله ددې حديث په منځ کې قيد او شرط پټ وي. او کله پکې کوم لِم او عِلت پټ پروت وي. او کله د ظاهري الفاظو په عکس کې ادب پروت وي. کله په صيغې د امر کې اباحت، استحباب او نُدب مضمر وي. او کله په نهي کې احتياط او تنزيه وي. کله پکې ترحُم او ترفُق وي، او کله امر او نهي صِرف د مشورې په طريقه وي. او کله د ظاهري لفظ څخه يو شی را معلوميږي، لکن له هغې څخه مستنبطه معنا بل څه وي. چې مجتهد يې را معلومولای شي.

لطيفه: له دې هر څه څخه وروسته د اهلِ ظواهرو د لفظ پرستی يوائې يو مثال وړاندې کوو، چې په هغه کې يې د حضرت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بليغې جُملې د څو مره حماقتونو څخه قربان کړې دي.

د حضرت جابر رضی الله تعالی عنه، او د حضرت ابو هريره رضي الله عنه، او نورو صحابه وو رضی الله عنهم څخه روايت دی چې: عن رسول الله صلى الله عليه وسلم انه نَهَى ان يُبال فى الماء الرّاكـدِ. و عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: لايبولنّ أحدُكُم فى الماء الدّائم ثم يغتسل منه [مسلم/ج ۱/ ص ۱۳۸]. حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم په ولاړو اوبو کې له متيازو کولو څخه منعه کړې ده. او په يو روايت کې داسې راځي چې حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې: په تاسو کې دې هيڅوک هم په ولاړو اوبو کې مُتيازې نه کوي، چې بيا ترېنه غسل هم کوي.

جمهور اُمت فرمايي چې: لکه څرنګه چې په اوبو کې تشې مُتيازې کول منعه دي، نو همدا رنګه پکې غټې متيازې کول هم منعه دي، او د حيواناتو د متيازو هم همدا حُکم دی. او د اوبو په څنګ کې په داسې ځای کې هم او دس ماتی ممنوع دی چې د هغه ځای څخه اوبو ته ورځي. او په بل داسې لوښي کې هم ممنوع دي چې هغه په اوبو کې ور اړولی شي. ځکه چې علت د منعِ د اوبو نجس والی دی او هغه په

دې ټولو صورتونو کې متحقق کېږي. مګر مشهور ظاهري مُحدِّث داود ظاهري المتوفى (۲۷۰هـ) او بعضې نور اهل ظواهر په الفاظو باندې د جمود ښکار شوي دي. لکه څرنګه چې امام نووي رحمه الله فرمايي چې: حُكي عن داود بن على الظاهرى ان النهى مختص ببول الانسان بِنفسِه و ان الغائط ليس كالبول، و كذا اذا بال فى اناءٍ ثم صبه فى الماء او بال بقرب الماء وهذ الذى ذهب اليه خلاف الاجماع وهو من أقبح ما نقل عنه فى الجمود على الظاهر. والله اعلم [ نووى / ج ۱ / ص ۱۳۸ ].

له داود ظاهري څخه حکايت دی چې په حديث کې دا نهی يوازې د انسان تر هغو تشو مُتيازو پورې خاصه ده چې په خپله يې پکې وکړي، د حيواناتو مُتيازې په دې حُکم کې نه دي داخلې. او همدارنګه د انسان غټې مُتيازې هم په دې حُکم کې نه دي داخلې، يعنې د غُولو کول په ولاړو اوبو کې روا دي. او همدارنګه دا هم روا دي چې د اوبو په څنګ کې په داسې ځای کې مُتيازې وکړې چې د هغې ځای څخه اوبو ته راځي. او همدارنګه په داسې لوښي کې هم مُتيازې کول روا دي چې د هغه لوښي څخه مُتيازې په اوبو کې واړولی شي. د داود ظاهري دا مذهب د اِجماع څخه مخالف دی او د (جمود على الظاهر) بدترين مثال دی، همدې ته ورته الفاظ ابن دقيق العيد هم ويلي دي. هغه فرمايي چې: مما يعلم قطعاء بطلان ـ ذهب اليه الظاهرية الجامدة من ان الحكم مخصوص بالبول فى الماء، حتى لو بال فى كوز و صبه فى الماء لم يضر عندهم او لو بال خارج الماء فجرى البول الى الماء لم يضر عندهم ايضاً، والعلم القطعى حاصل ببطلان قولهم لاستواء الامرين فى الحصول فى الماء، فان المقصود اجتناب ما وقعت فيـه النجاسـة من الماء وليس هذا من محال الظنون بل هو مقطوع به ) [ احكام الاحكام / ج ۱ / ص ۸ ].

د اهل ظواهرو د دې بې ځايه جمود باطل والی په يقيني ډول معلوم دی، کوم چې وايي چې: دا حُکم په اوبو کې د مُتيازو د کولو پورې خاص دی، حتی که کوم سړي په کوزه کې مُتيازې وکړې او په اوبو کې يې واړوي نو د دوي په نزد ضرر نه رسوي. او همدارنګه دا هم پروا نه لري چې يو سړی له اوبو څخه بهر مُتيازې وکړي او هغه اوبو ته راشي. او د قطعي علم څخه د اخبره را معلومېږي چې د دوي دا قول باطل دی، ځکه چې د اوبو د نجس والي له پاره دا دواړه خبرې يو برابر دي، ځکه چې مقصود دا دی چې اوبه له نجاست څخه وساتلی شي. او دا د ګمان خبره نه ده، بلکې قطعي ده.

تعجب دی چې ظاهر بینان شپه او ورځ دا ډول ډنګوي چې فلان فلان له حدیثو څخه منکر دي او د اهلِ حدیثو له ډلې څخه خارج دي او یوازې مونږه عاملین بالحدیث یو ، نور هېڅوک هم دا حق نه لري چې ځان ته (عامل بالحدیث) ووایي. و الی الله المشتکی.

امام سبکي رحمه الله د اهلِ ظواهرو د اختلاف په باره کې درې مذهبونه رانقل کړي دي.

اول: ددوي اختلاف مطلقاً نه دی معتبر.

دوهم: مطلقاً معتبر دی.

دریم: که ددوي قول د قیاسِ جلي څخه مخالف وو نو بیا نه دی معتبر ، او که مخالف نه و نو بیا معتبر دی. او د قاضی ابوبکر رحمه الله په حواله لیکي چې: ان اصحاب الظاهر لیسوا من علماء الشریعة وانما هم نقلة ان ظهرت الثقة [ طبقات / ج ۲ / ص ٤٥ ]. اهل ظواهر د دین علماء نه دي، بلکې یوازې ناقلین دي که ثقه والی یې ښکاره شي.

## ٤٩۔ پوښتنه آیا هره رأیه مذمومه ده ؟

**جواب :** دبعضي احادیثو او اثارو څخه د رائې مذمت رامعلومېږي، نو ددې له وجه بعضي متعصب او خودغرضه خلک بغیر دتفصیل څخه هری رائې ته مذمومه وائې، حالانکه رأیه په دوه قسمه ده یوه مذمومه رأیه ده او بله ممدوحه رأیه ده.

مذمومه رأیه هغه ده چې د کتاب او دسنت په مقابله کې وي او یا ئې بنیاد په کتاب او په سنت او په اجماع باندی نه وی کیښودل شوي، او یا د غیر مجتهد رأیه وي او ممدوحه رأیه هغه ده چې په کتاب الله، یا په سنت، او یا په اجماع باندي مبني وي او د کتاب او دسنت په مقابله کې نه وي .

## په أحادیثو او په أثاروکې مذمومه رایهٔ

(۱) په یو روایت کې راځي چې : ومن قال في القرآن برأیه فلیتبوأ مقعده من النار. ترمذي ج ۲ ص ۱۱۹ مشکوة ج ۱ ص۳۵]. چاچې په خپله رأیه باندي په قرآن کریم کې خبرې وکړې نو ځان ته دې په اور کې ځاي تیار کړي او په یو بل روایت کې راځي چې : من قال في القرآن برأیه فأصاب فقد أخطأ، ترمذي ج ۲ ص ۱۱۹ مشکوة ج ۱ ص ۳۵ )

چاچې د قرآن تفسیر د خپلې رائې مطابق وکړو او دده خبره صحیح را و وتله نو بیا هم خطاء شو.

ددې روایت په سند کې سهیل بن عبد الله متکلم فیه راوي دی او همدارنګه په دې کې هغه رأیه ذکر شو یده چې د قرآن او دسنت د اصل روح څخه مخالفه وي.

(۲) رسول الله ﷺ فرمایي چې زما أمت به د دوه اویا فرقو څخه زیات شي او په دې ټولو کې به سخت فتنه ګره فرقه هغه وي چې: یقیسون الأمور برأیهم فیحلون الحرام ویحرمون الحلال. مستدرك حاکم ج٤ ص٤٣٠]. په خپله رأیه باندې به د شیانو قیاس کوي حرام به حلالوي او حلال به حراموي.

ددې حدیث په باره کې یحیی بن معین رحمه الله فرمائي چې لا اصل له: بغدادي ج ۱۳ ص ۳۰۷ میزان ج ۲ ص ۵۳۵ تهذیب التهذیب ج ۱۰ ۴۶۰ ددې حدیث په سند کې نُعیم بن حماد راغلی دی چې کذاب او وضاع دی، امام حاکم رحمه الله ورته صحیح ویلي دي، لیکن علامه ذهبي رحمه الله ورته موضوعي ویلي دي، د حاکم تساهل مشهور دي، علامه خطیب بغدادي رحمه الله په دې حدیث باندې تقریباً څلور صفحې بحث کړی دی، او په آخر کښې یې خپله فیصله داسې لیکلې ده چې "فقال کل من حدث به عن عیسی بن یونس غیرنعیم بن حماد فانما اخذه عن نعیم" ج۱۳ ص۳۱۱ د عیسی بن یونس څخه چې د نعیم بن حماد څخه علاوه هرچا دا روایت راخستی دی نو هغه د نعیم بن حماد له طریقه دي، همدارنګه په دې موضوعي حدیث کې د هغې رائې مذمت دي چې د هغې په وجه حلالو ته حرام او یا حراموته حلال ویلی شي بغیر د کوم شرعي ثبوت څخه، او دا خبره ظاهره ده چې حل او حرمت د نص څخه ثابتیږي نو دا رأیه خامخا د نص په مقابل کې شوه.

(۳) حضرت ابوهریرة رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې بنی اسرائیل څکه هلاک شول چې په دوي کې دوه رګي خلک پیدا شول. فوضعوا الرأی فضلوا، دراقطني ج ۲ ص ٤٨٦

ددي حدیث په سند کې کلبي دي او کلبي ضعیف دی، وقیل کذاب دی، تعلیق المغني ج ۲ ص ۴۸۶ تهذیب التهذیب ج۹ ص ۱۸۰

(۳) د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما موقوف او مرفوع روایت دی چې: فافتوابالرأي فضلوا واضلوا. لیکن د موقوف روایت په سند کې قیس بن ابی الربیع دی، اکثر محدثین ورته ضعیف وائي امام وکیع رحمه الله ورته ضعیف وائي، ابن معین رحمه الله فرمائي چې: ضعیف لا یساوي شیئا. ابن مدیني رحمه الله او

ابوذرعه رحمه الله او يعقوب بن ابی شيبه رحمه الله ورته ضعيف وايي، نسائي رحمه الله ورته متروک الحديث وايي، او امام احمد رحمه الله ورته شيعه وايي، ابن سعد رحمه الله عجلي رحمه الله دارقطني رحمه الله اوابواحمد الحاكم رحمه الله ورته ضعيف وائي، تهذيب التهذيب ج۱ ص ۳۹۳ تا ص ۳۹۵

اودمرفوع روايت په سند کې په مجمع الزوايد کې همدا قيس بن ربيع دی، اودابن ماجه په سند کې سويدبن سعيد رحمه الله دی چې محدثينو پرې جرحې کړې دي، وګوره، تهذيب التهذيب ج ۴ ص ۲۷۳ علاوه لا داچې دمذمومې رائې په قباحت کې هيڅ خبره نه شته.

(۴)حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي چي: اِيَّاكُمْ وأَصْحَابُ الرَّأي فإنهم أَعْدَاء السنن أعيتهم الأحاديث أن يحفظوها فقالوا بالرأي فضلوا واضلوا. [دارقطني ج ۲ ص ٤٨٦].

داصحاب الرائ څخه ځان وساتی، ځکه چي هغوي دسنتو دشمنان دي، داحاديثو يادول ددوي دطاقت څخه بهر وو، له دې وجه ئې په رأيه باندې عمل شروع کړو، نو خپله هم ګمراهان وو نور خلک ئې هم ګمراهان کړل، ددې اثر په سند کې مجالد بن سعيد رحمه الله متكلم فيه راوی وی اكثر محدثين ورته ضعيف وائي، لکه يحيی بن سعيد رحمه الله، ابن مهدي رحمه الله، امام احمد رحمه الله، ابن معين رحمه الله، داودي رحمه الله، نسائي رحمه الله، ابن حبان رحمه الله وغيره. تهذيب التهذيب ج ۱۰ ص ۴۱

(۵)په بخاري کې روايت دي حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه فرمائي چي (ياايها الناس اتهموارايكم علىٰ دينكم). بخاري ج ۲ ص ۱۰۸۷ مسلم ج ۲ ص ۱۰٦

ای خلکو! ددين په مقابل کې خپله رأيه بی اعتباره وشميرئ! امام بخاري رحمه الله ددې مطلب داسې بيانوي چي: قال أبوعبدالله اتهموارايكم يقول مالم يكن فيه كتاب ولا سنة ولا ينبغي ان يفتي. بخاري ج ۲ ص ۱۰۸۷].

يعني داسې رايه بې اعتباره وشميرې دکومې بنياد چې په کتاب او په سنت باندې نوي ايښودل شوی دصحيح بخاري محشي ليکي چي: اي لا تعملوا في امر الدين بالراي المجرد الذي لا يستند الي اصل من الدين، هامش بخاري ج ۲ ص ۱۰۸۷ په هغه رأيه باندې عمل مه کوئ چي دکوم شرعي دليل طرفته منسوبه نه وي.

(۶) او امام بخاري رحمه الله په خپل صحيح بخاري کې يو مستقل باب پدې قائم کړی دی: باب ماينکر من ذم الراي وتکلف القياس: ج ۲ ص ۱۰۸٦ ).

يعني دا باب دی په بيان او ذکر د رائ مذمومې او په تکلف سره د قياس کولو کې. ددې لاندې شارحينو داسې بيان کړی دی.

اي الذي يکون على غير اصل من الكتاب والسنة والاجماع واما الرأي الذي يکون على أصل من هذه الثلاثة فهو محمود وهو الاجتهاد، وقوله وتکلف القياس أي الذي لا يکون على هذه الاصول لانه ظن والظن رد، واما القياس الذي يکون علي هذه الاصول فغير مذموم، وهو الاعتبار، والاعتبار مامور به فالقياس مامور به، وذالك لقوله تعالي فاعتبروا يا أولي الأبصار فتکون حجة، هامش ج ۲ ص ۱۰۸٦

يعني هغه رايه مذمومه ده چې په کتاب او په سنت او په اجماع باندې نوې بنا شوی او د کومې رائ مبنی او مأخذ چې يو اصل د دغه اصول ثلاثة وو څخه وي نو هغه ممدوحه او مقبوله ده، او ديته اجتهاد وائې، او د تکلفي قياس څخه مراد هغه قياس دی چې په يو اصل د دغه اصول ثلاثو باندې متفرع نه وي، او ظن ورته وائې، او ظن مردود دی او کوم قياس چې په دغه اصولو باندې مبني او متفرع وي هغه ته اعتبار وائې، او دا غير مذموم دی او دا اعتبار چې قياس ورته هم وائې مامور به دی څرنګه چې الله تعالى فرمائې چې (فاعتبروا يا اولي الابصار) ای د نظر او د بصيرت خاوندانو تاسو اعتبار او قياس وکړئ نو ددې قول لوجه قياس حجة شرعي دي.

(۷) حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائې چې:

من احدث رأيا ليس في كتاب الله ولم تمض به سنة من رسول الله ﷺ لم يدر ماهو منه اذا لقي الله عزوجل) (دارمي ج۱ ص۵۷ طبع دمشق).

يعني چا چې داسې رايه قائمه کړه چې د کتاب الله او د سنت د رسول الله ﷺ څخه نه وه، نو معلومه نه ده چې دده به د الله تعالى سره په کوم حال ملاقات کيږي او څنګه حشر به يې کيږي؟

امام شعبي رحمه الله د مذمومې رأې په باره کښې فرمائې چې: .(وماقالوا برائهم فالقه في الحشيش)

يعني هغه څوک چې د خپلو مذمومو رأيو څخه ويناوې کوي د هغوي رايه په ډيران کې ګزار کړئ.

(۷) حضرت عمربن عبد العزيز رحمه الله خپلو حکامو ته په يو خط کې داسې ليکنه کړې وه ( لا رأي لاحدفي كتاب وانما رأي الائمة فيما لم ينزل فيه كتاب ولم تمض فيـه سـنة سنهارسـول الله ﷺ ولا رأي لاحدفي سنة رسول الله ﷺ ( درامي ج ۱ ص ۱۱٤ طبع دمشق وطبع هندص ٦٢ .

يعني په کتاب الله کې دهيچا رائې ته اعتبار نشته، اما دائمه وومجتهدينو رايه په هغه اشياؤ کې معتبره ده چې د کتاب الله او د سنت رسول الله ﷺ څخه پکې تصريح نه وي ارغلې او کوم شيان چې پيغمبر ﷺ سنت گرځولي دي په هغه کې هم دهيچا رايه قابل داعتبار نه ده.

(۸) حضرت امام ابوبکراحمدبن الحسيني البيهقي الشافعي رحمه الله المتوفى سـ ۴۵۸ هجري حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې هغه په منبر باندې وفرمايل چې اي خلکو! جناب رسول الله ﷺ چې کومه رايه قائم کړې ده نو په هغه باندې وحی نازليږی هغه رايه ځکه معتبره ده، او زمونږه رايه خو ظن او تکلف دی، مذکور امام ددې قول تشريح داسې تشريح کړې ده ، وانما ارادبه والله اعلم الرأي الذي لا يكون مشبها باصل وفي معناه ورد ما روى عنه وعن غيره في ذم الراي فقدروينا عن اكثرهم اجتهادالراي في غيرموضع النص والله اعلم. (سنن کبري ج ۱۰ ص ۱۱۷۰ طبع دائرة المعارف حيدرآباد دکن)

يعني والله اعلم خود حضرت عمررضی الله عنه مرادهغه رايه ده چې دکوم اصل داصولوثلاثه وو ره مشابهه نه وي، او نه په کوم اصل باندې بناء وي، او همدا دهغو خلکو مراد هم دی چې دهغوي څخه رائې مذمت رانقل شوی دی، ځکه چې مونږ ددغو اکثرو صحابه وو وغير هم څخه په غير منصوصي ايونو کې اجتهادي رائې رانقل کړي دي.

(۹) دحضرت علی رضي الله عنه څخه روايت دی ، هغه فرمايلي دي چې قاضيان په درې قسمه دي يو قسم جنت والا دي، دا هغه قاضيان دي چې حق پيژني او ددوي اجتهاد دحق مطابق واقع وي، دوهم دوزخيان ي دا هغه قاضيان دي چې عمداً قصداً دحق خلاف فيصلي کوي، او دريم قسم هغه دي چې اجتهدرأيه فاخطاء) دخپلي رائې څخه اجتهاد وکړي خو پکې خطا شي.

امام بيهقي رحمه الله ددې تفسير دحضرت ابو العالية المتوفى ص ۹۳ هجري څخه رانقل کړی دی رداسې تشريح يې کړې ده چې:

ان الخبر ورد فيمن اجتهدرايه وهو من غيراهل الاجتهاد فان كان من اهل الاجتهاد فاخطاء فيما يسوغ فيه الاجتهاد رفع عنه خطاءه ان شاء الله تعالي بحكم النبي ﷺ في حديث عمروبن العاص رضي الله عنه وابي هريرة رضي الله عنه ( السنن الكبرى ج ۱ ص ۱۱۷

ددغه حديث څخه مراد هغه شخص دى چي دخپلې رائې څخه اجتهاد وکړي، او حال دا چي دار اجتهاد اهل نوي، او كه چرته داهل الاجتهاد څخه وو او بيا په هغه اشياؤ كې خطاء شو چي پكې داجتهاد گنجايش وو نو دنبى اكرم ﷺ په حكم چي دحضرت عمروبن العاص رضي الله عنه او حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دى گناه ترينه بالكل مرفوع ده.

(۱۰) دحضرت عمروبن العاص رضي الله عنه المتوفى ۴۳ هجرى روايت داسې دى حضرت رسول الله ﷺ فرمائلي دي چي: اذا حكم الحاكم فاجتهدفاصاب فله اجران واذا حكم الحاكم فاجتهدفاخطاء فله اجر، بخاري ج ۲ ص ۱۰۹۲ مسلم ج ۲ ص ۷۶ سنن الكبري ج ۱۰ ص ۱۱۸.

يعني كله چي يو فيصله كونكى اجتهاد وكړي او حق ته پكي ورسيږي نو هغه ته دوه اجره دي، او كه اجتهاد ئې وكړو او پكې خطا شو نو هغه لره يو اجر دى.

په همدې الفاظو باندى مرفوعاً روايت دحضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه په مذكور كتابونو كې او په سنن كبرى ج ۱۰ ص ۱۱۸ كې راغلې دى.

(۱۱) مشهور غيرمقلد عالم قاضي شوكاني المتوفي سنه ۱۲۵۵ هجري د محمودې او مذمومې رائې بحث كړى دى او دمحمودي رائې په باره كې يئ داسې بيان كړى دى " فالعمل بالزاي في مسائل الشرع ان كان لعدم وجودالدليل في الكتاب والسنة فقد رخص فيه النبي ﷺ كما في قوله ﷺ لمعاذ رضي الله عنه لمابعثه قاضياً بم تقضي؟ قال: بكتاب الله. قال فان لم تجد؟ قال: اجتهد رأيي وهو حديث صالح لاحتجاج به كما اوضحنا ذالك في بحث مفردة، تفسيرفتح القديرج ۳ ص ۲۱۹ طبع مصر]

يعني دشريعت په مسئلو كې چي كله دكتاب اودسنت څخه دليل پيدا نه شي، نو عمل بالرائ جائز ده، او نبي كريم ﷺ دداسې رائې په باره كې رخصت او اجازت وركړى دى، دا دنبى أكرم ﷺ ددغه قول څخه ثابت دى چي حضرت معاذ رضي الله عنه ته ئې فرمائلى وو چي كله ئې دقضاء دپاره ليږلو ورته ئې وفرمائل چي ته به په څه باندې فيصلې كوئ؟ هغه ورته وفرمايل چي دالله تعالى په كتاب، بيا نبى اكرم ﷺ ورته

فرمايل چي که چرته ئې په کتاب کې پيدا نه کړې؟ هغه ورته او فرمايل چي په سنت الرسول ﷺ باندې به فيصله کوم. نبي اکرم ﷺ ورته بيا او فرمايل چي که په سنت کې ئې پيدا نه کړې؟ هغه ورته او فرمايل چي بيا به په خپله رايه باندې اجتهاد کوم، په اخير کې شوکاني وائي چې دا حديث د استدلال او د اجتهاد لپاره صالح دی.

## د تقليد مختلف درجات

تر دې ځايه مطلقا د تقليد اثبات وو، البته د مقلد د علمي صلاحيت په لحاظ سره د تقليد مختلفې درجې دي، په دغه درجاتو باندې د نه پوهيدو په بنآء بعضې اوقات افراط او تفريط کيږي او د غير مقلدينو ډير اعتراضات په دغه مراتبو د فرق د نه پوهيدو نتيجه ده، نو دا ياد ساتل پکار دي چې د تقليد څلور درجات دی د کوم احکام چې جدا جدا دي.

**(۱) د عوامو تقليد:** تر ټولو څخه وړومبی درجه د عوامو د تقليد ده، له عوامه څخه مراد زمونږه درې نسمه خلق دی، يو خو هغه خلق چې د عربی او اسلامي علومو څخه بالکل خبر نه دي، برابره ده چې په بل کوم فن کې هغوي هر څومره ماهر وي، بل هغه خلق دي چې د عربی ژبې څخه په ښهٔ توګه خبر وي ليکن اسلامي علوم هغوي باقاعده نه وي لوستلي، دريم هغه خلک دي چې په رسمي ډول باندې فارغ التحصيل وي ليکن په اسلامي علوموکې هغوي ته بصيرت، او مهارت حاصل نه وي، د دغه دريو اړو حکم دا دی چې په هغوي باندې په هر حال کې تقليد واجب دی، او د خپل مفتي او د امام د قول څخه ورته خروج جائز نه دی، اګر چې د خپل امام کوم قول ورته په ظاهر کې د حديث څخه مخالف معلوميږي، دا خبره عجيبه معلوميږي چې دا انسان په وړاندې يو حديث وي او هغه دغه حديث پريږدي او د خپل مفتي او د امام په قول باندې عمل کوي، ليکن د کوم عوامو چې مونږه خبره کوو د هغوي لپاره د دې څخه بغير بله کومه چاره نشته دی، ځکه چې دا خلق د قرآن او د حديث په دلائلو باندې د غور او د محاکمې اهل نه دي، ځينې اوقات د قرآن او د حديث متبادره معنی بل څه وي ليکن د نورو دلائلو په رڼا کې د هغو محمل کوم بل امر وي.

لکه څرنګه چې د (۴۸) پوښتنې په جواب کې يې تفصيل ذکر شو.

په دغه صورت کې که چيرته دا سې عوامو ته د دې خبرې اجازت ورکړی شي چې هغوی کوم حديث

سیوا بل څه نه وي، لکه چې بې شمیره خلق ددې څخه ګمراه شوي دي، مثلاً ځینی خلقو ددې آیت قرآني (ولله المشرق والمغرب فاینما تولـوافثم وجـه الله) څخه استدلال کړی دی، اوپه لمانځه کې ئی دفرضیت داستقبال دقبلې څخه انکار کړی دی، یا مثلاً په حدیث کې (لاوضوء الامن صوت اوریح) که یو عام انسان ددې په متبادره معنی باندې عمل کوي او دائمه وقول ترک کړي، نو په اجماع سره به ګمراه شي، او لکه چې امام ابویوسف رحمه الله فرمایي که چرې کوم شخص د روژې په حالت کې احتجام اوکړي، او دافطر الحاجم والمحجوم د حدیث په لیدو روژه ماته کړي، نو په هغه باندې کفاره واجب ده، او که کوم مفتي هغه ته غلط مسئله اوښائی چې په حجامت سره روژه ماتیږي او ددې په بناء باندې هغه خوراک څښاک اوکړي، نو په هغه باندې کفاره واجب نه ده او ددې وجه هغه بیانوی اولیکی، لان علی العـامی الاقتـداء بالفقهـاء لعدم الاهتداء فی حقه الی معرفة الاحادیث کذا فی الهدایة (ج ۱ ص ۲۲۶) باب مایوجب والکفاره.

**(۲) دمتبحر عالم تقلید:** دویمه درجه دمتبحر عالم دتقلید ده، دمتبحر عالم څخه زمونږه مراد هغه شخص دی چې داجتهاد درجې ته نه وي رسیدلې لیکن دقرآن او دحدیث په علومو کې هغه ته ښه مهارت حاصل وي، او کم نه کم دخپل مذهب په مسائلو کې هغه ته استحضار او ملکه پیدا شوې وي، ددې شخص تقلید د عوامو دتقلید څخه مختلف وي، یعنې داسې شخص په لاندې امورو کې ممتاز وی.

۱- دخپل امام په مذهب کې که له یو څخه زیات اقوال وي نو په هغې کې د ترجیح او یاد تطبیق اهل وی.

۲- په کومو مسائلو کې چې له امام څخه کوم صراحت منقول نه وي، په هغو کې دامام داصولو مطابق د احکامو استنباط کولی شي، ۳- په عامه ابتلاء او دشدید ضرورت په مواقعو کې بعض اوقات دکوم بل مجتهد په قول باندې فتوی ورکولی شي، دکومو شرائط چې داصول فتاوی په کتابونو کې مذکور دي.

داسې شخص ته که دامام کوم قول دکوم صحیح او صریح حدیث څخه خلاف معلوم شي، او ددې معارض کوم بل حدیث هم نه وي، او دامام په قول باندې دهغه شرح صدر و نشي، نو په داسې صورت کې هغه دامام قول ترک کولی شي او په حدیث باندې عمل کولی شي، مثلاً امام صاحب فرمایي چې:

دخمرو، نبیذ التمر، نبیذ الزبیب او د مثلث څخه بغیر نور شربتونه د مقدار مسکر څخه کم څکل د قوي کیدو دپاره جائز دي، لیکن حنفي مشائخو د صریح احادیثو په بناء باندې د هغه قول ترک کړی دی.

**(۳) د مجتهد فی المذهب تقلید:** د تقلید دریمه درجه د مجتهد فی المذهب ده، مجتهد فی المذهب هغه شخص ته وئیل کیږي کوم چې د اجتهاد مطلق په منصب باندې خو فائز نهٔ وي، یعنی اصول استدلال خو په خپله نشي وضع کولې، لیکن د استدلال د اصولو په رڼا کې د احکامو په استنباط باندې قادر وي، داسې شخص په اصولو، کې مقلد وي او په فروعو کې مجتهد لکه امام ابو یوسف رحمه الله امام محمد رحمه الله امام زفر رحمه الله او په شافعیو کې امام ابو ثور رحمه الله، مزنی رحمه الله، او په مالیکهٔ و کې سحنون بن قاسم رحمه الله، او په حنابلهٔ و کې خرقي او ابو بکر الاثرم وغیره.

**(۴) د مجتهد مطلق تقلید:** د تقلید د ټولو نه آخری درجه د مجتهد مطلق ده، هغه اګر چې مجتهد وی لیکن په ځینو ځایونو کې په هغه هم تقلید کول لازمیږي، یعنی په کومو مقاماتو کې چې قرآن مجید او حدیث موجود نه وي، هلته ائمهٔ مجتهدین حضرات عموما داسې کوی چې په خپل قیاس او رأې باندې د عمل کولو په ځای باندې له خپلو اسلافو څخه کوم قول اختیاروی، امام ابو حنیفه رحمه الله عموما د ابراهیم نخعي رحمه الله پیروي کوي، امام شافعی رحمه الله اکثر د جریج رحمه الله په قول باندې عمل کوي، امام مالک رحمه الله د فقهاو د مدینې څخه د کومو یو پیروي کوي.

## دلامذهبه وکټوري اهل حدیثو دعوی

دغیر مقلدینو په کتابونو کې یو موقف وي په ممبر یې بل موقف وي او د مناظرې په میدان کې یې بیا بل موقف وي.

غیر مقلدین په کتابونو کې داسې دعوه لیکي چې تقلید کفر، شرک، او بدعت دی، نواب صدیق حسن خان لیکي: د ټولو درغڼو حیلو، مکرونو، او فریبونو، سرچشمه علم رایه ده، د ټولو خرابیانو بول یعنی فقهاء او مقلدین دي، او د ټولو خرابیو اچونکی هغه ملایان دي چې د تقلید په دام کې ګرفتار دي، او د بدعت او د شرک په نشه باندې سرشار دي. (ترجمان وهابیه ص(۲۴)

مولوي محمد ینس په اشعار الحق کې لیکي چې: تمام مقلدین دیزید ورونه دي، پلید رافضیان دي، شیطانان او کافران دي.

نو مسلم مولوي محی الدین لاهوري کتب فروش په الظفر المبین مطبوعه (۷) رمضان (سنه ۱۲۹۷ه) ص(۱۸۹) و ص(۲۳۲) کې لیکي: دائمه وو تقلید حرام او شرک دی. خو د مناظري په میدان کي به دا درته و نه لیکي، بالفرض که ډیر زور پرې ولګوئ نو داسې به ولیکي چې تقلید بدعت دی، نو مونږ به اول له دوي څخه تشریح د مفرداتو وغواړو، نو د تقلید او د بدعت تعریفونه د قرآن یا د حدیث څخه صراحةً پیش کړئ او د قرآن او د حدیث څخه خو ئې صراحةً نشي پېش کولی که ډیر زور پرې ولګوئ نو دوي به و وائي چې بدعت نوي شي ته وائي نور تعریف نشي کولی. نو ته به ورته ووائي چې نوی شی خو د حضرت عثمان رضي الله عنه اذان وو نو ایا دا بدعت شولو؟ او د قرآن تدوین نوی وو نو ایا دا بدعت شولو؟ بهر حال دوي تعریف نشي کولی، نه د بدعت او نه هم د تقلید، زمونږ د عوه دا وه چې ۱-په اجتهادي مسائلو کې ۲-په غیر مجتهد باندې ۳-د مجتهد تقلید ۴-واجب دی، غیر مقلد ته پکار دي چې جواب دعوه داسې ولیکي چې د غیر مجتهد لپاره په اجتهادي مسائلو کې د مجتهد تقلید حرام یا بدعت او یا شرک دی، ځکه چې جواب د دعوې، د دعوې جواب وي، نو دا جواب نه شي کیدلی چې داسې ولیکي چې په تقلید باندې هیڅ دلیل نشته، اکثر وابیان داسې لیکي چې تقلید ثابت ندی نو دا هم جواب دعوه نه شي کیدلی خو بیا هم یو څو تنقیحات په دې جواب دعوه کې ذکر کوو.

۱-په کومو مسایلو کې تقلید ندی ثابت او یا په کومو مسایلو کې تقلید شرک یا بدعت یا حرام دی؟ په دې کې فائده داده چې دوي چې کوم دلایل پیش کوي نو هغه د مسایلو اجتهادیه وو په باره کې نه وي، بلکې هغه د عقائدو باطله وو په باره کې دی، نو ته به ورته جواب ورکوې چې په عقائدو باطله وو کې زه هم د تقلید قایل نه یم، زه په اجتهادي مسایلو کې د تقلید قایل یم، لهذا دا زما په خلاف دلیل نه شي کیدلی.

۲-تاسو حکم لګوی چې ثابت ندی، نو غیر ثابت کله شرک وي کله بدعت وي کله حرام، نو چې تقلید غیر ثابت دی نو په ضمن د شرک کې او که په ضمن د بدعت کې او که په ضمن د حرام کې؟ که د هر یو

انتخاب یې وکړونو بیا به د همغه لپاره دلیل پیش کوي، د شرک لپاره به نه حرام په دلیل کې پیش کوي او نه بدعت، همدارنګه به د بدعت لپاره په دلیل کې نه هغه ایتونه پیش کوي چې په هغې کې شرک ذکر شوي دی او نه به هغه دلایل پیش کوي چې په هغې حرمت ذکر شوی وي، کله غیر مقلدین وایي چې ثابت ندی په ضمن د بدعت کې، یعنې تقلید بدعت دی او بیا هغه ایتونه پیش کوي چې د هغوي څخه شرک لازمیږي لکه: اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابا من دون الله.

۳- همدارنګه: قالوا ربّنا انا اطعنا سادتنا وکبراء نا، همدارنګه که تقلید ته یې شرک یا بدعت وویلو نو ته ترینه پوښتنه وکړه چې مطلق تقلید شرک یا بدعت دی او که تقلید شخصي؟ که شرک یې لیکلي وو نو په دلیل کې ترینه د شرک لفظ غواړه او که بدعت یې لیکلی وو نو په دلیل کې ترینه د بدعت لفظ غواړه.

۴- د چا لپاره حرام یا بدعت او یا شرک دی؟ د مجتهد لپاره او که د غیر مجتهد (عامي) لپاره؟ که د مجتهد انتخاب یې وکړو نو ته به ورته ووایې چې په مجتهد خو مونږ هم تقلید لازم نه ګڼو او که د عامي انتخاب یې وکړو، نو بیا به په دلیل کې ترینه د عامي قید غواړې.

۵- د چا تقلید حرام دی؟ د مسلمان او که د کافر؟ بیا په مسلمانانو کې د مجهتد او که د غیر مجتهد؟ دا ځکه چې که په دلیل کې یې د کفارو د تقلید ایتونه پیش کړل نو دا به د دده د دعوې دلیل نه وي ځکه چې د کفارو تقلید ته خو څوک واجب نه وایي بلکې، مونږ د مجتهد تقلید ته واجب وایو او که د مجتهد انتخاب یې وکړو نو ته به بیا په دلیل کې ترینه د مسلمان مجتهد قید غواړې، دوي په هیڅ دلیل باندې هم د مسلمان مجتهد د تقلید حرمت یا بدعت یا شرک نه شي ثابتولی، د دوي په دلایلو کې د کافرانو د تقلید ذکر دی.

۶- مونږ په دعوه کې واجب لیکلي وو، د واجب ضد حرام یا شرک یا ګمراهي ده، نو پکار دی چې غیر مقلد ولیکي چې د غیر مجتهد لپاره په اجتهادي مسائلو کې د مجتهد تقلید حرام دی یا شرک دی یا ګمراهي ده، مبهمه جواب دعوه به نه ذکر کوي چې واجب ندی ځکه چې واجب ندی، دا مبهم

حکم دی، ځکه چې کوم شی چې واجب نه وي هغه د فرض، سنت، مستحب، مباح، مکروه، حرام وغیره ډیر احتمالات لري.

۷- کله غیر مقلد تا ته وايي چې په دعوه کې ولیکه چې خاص د امام صاحب تقلید واجب دی، نو ته ورته ووایه چې ما کله دا دعوه کړې چې فقط د امام صاحب تقلید واجب دی او دنورو حرام دی، زه وایم چې په اجتهادي مسائلو کې په غیر مجتهد د مجتهد تقلید واجب دی که نه نو ته به بیا په جواب دعوه کې لیکي چې د مجتهد تقلید جایز دی، لکن خاص د امام صاحب تقلید حرام دی، او بیا به په دلیل کې هم د امام صاحب نوم ښایي.

۸- کله غیر مقلد وايي چې د تقلید لپاره ډیر مراتب دي او د هریو حکم جدا دی کله شرک وي او کله بدعت وي او کله حرام وي، نو ته دا ټول مراتب وربانديې بیان کړه چې کوم کوم دی؟ او د هریو حکم هم جدا جدا وربانديې بیان کړه، (یعني کوم تقلید حرام دی؟ کوم شرک دی؟ کوم بدعت دی؟) ځکه چې بیا به په هریو جدا جدا دلیل پیش کوې.

۹- د تقلید شخصي حکم جدا بیان کړه او د مطلق تقلید حکم جدا بیان کړه او بیا په هریو جدا دلیل پیش کړه.

۱۰- لامذهبان کله تقلید ته بدعت او کله ورته شرک وايي نو که بدعت یې ورته ویلو نو ورته ووایه چې ستا کوم مشران چې ورته شرک وايي د هغوي څخه حکم څه دی؟ بیا ورته هغه حوالې پیش کړه په کومو کې چې د دوي مشرانو تقلید ته شرک ویلی دی، همدا رنګه ورته ووایه چې بدعت ته شرک ویل او شرک ته بدعت ویل څه حکم لري؟ او که شرک یې ولیکل نو بیا ته ورته هغه حوالې پیش کړه په کومو کې چې د دوي مشرانو ورته بدعت ویلی دی.

۱۱- کوم خلک چې په اجتهادي مسایلو کې د مجتهد تقلید ته جایز وايي او کوي یې نو د هغوي څه حکم دی؟ نو که هره درجه یې ورکړه نو ته به د مشهورو ایمه وو محدیثنو او مفسرینو مقلدینو حوالې ذکر کړې او بیا به ورته ووایې چې د دوي څه حکم دی؟ ایا دا مشرکان او بدعتیان دي؟

۱۲- غیر مقلدین د تقلید او د اتباع په مابین کې فرق کوي، لهذا که په دلیل کې د اتباع لفظ راغلی وو نو ته به ورته ووایئ چې تقریب دې تام ندی.

## دلامذهبو ددلائلو څخه اجمالي جوابات

دالاندې جوابات زده کړه ددې څخه به ددوی یو دلیل هم نه بچ کیږي:

**اول:** دوی چې کوم دلیل پیش کړي چې دچا د پیروی څخه پکې منعه راغلې وه، نو تاسو به سوچ پکې کوئ چې په دې کې دچا له پیروی څخه منع ده، دمجتهد دپیروی څخه پکې منع راغلې ده او که دغیر مجتهد؟ که دغیر مجتهد له پیروی څخه پکې منعه وه نو تاسی به ورته جواب ورکړئ چې داخو تقلید مذموم دی او زمونږ خبره په تقلید ممدوح کې ده، چې زمونږ په نیز باندې تقلید ممدوح واجب دی او په تقلید ممدوح کې دمجتهد پیروي کیږي.

مثال [وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ]. په دې روایت کې د تقلید مذموم خبره ده، چې دغیر مجتهد پیروي ده دمشرکانو اباء او اجداد مجتهدین نه وو او مونږ تقلید ممدوح ته واجب وایو.

**دویم:** تاسې به سوچ کوئ چې ددوي په دلیل کې په کومو مسائلو کې د پیروی څخه منعه ده؟ که چیرې د واضحو مسائلو یعنې دعقائدو د مسائلو ذکر پکې راغلی وو، نو تاسي به جواب ورکړئ چې تقلید په غیر واضحو مسائلو کې کیږي، یعنې په اجتهادي مسائلو کې کیږي، په غیر اجتهادي مسائلو کې تقلید نه دی واجب، مثلا لامذهبان یو اثر پیش کوي چې (لا يقلدن احدكم دينه رجلا ان امن آمن وان كفر كفر... ) نو پدې حدیث کې ایمانیات او عقاید ذکر شویدي بدلیل قوله ان امن آمن وان كفر.

**دریم:** تاسو به سوچ کوئ چې ددوي په دلیل کې لفظ د اتباع راغلی ده او که لفظ د تقلید؟ په قران کې خو د تقلید لفظ نشته نو چې څومره آیاتونه ئي در ته پیش کول نو تاسی به ورته وائي چې په دې ایت کې خو د اتباع لفظ راغلی دی او تاسو خو د تقلید او د اتباع په مابین کې فرق کوئ (دا به الزامي رد وي)

**څلورم:** تاسی به په دې خبره کې سوچ کوئ چې له امام صاحب رحمه الله څخه خو به ئي شارع نه وي جوړ کړی که شارع ئي ترینه جوړ کړی وو، د الله او د پیغمبر په مقابله کې یې درولی وو، نو تاسی به ورته جواب

ورکړئ چی اما صاحب رحمه الله شارح دی شارع نه دی. لکه دوي يو دليل وائي چې په حديث کې راځي چې (لو کان موسی حياً ما وسعه الا اتباعي) يعني که موسی عليه السلام ژوندی وی نو زما اتباع به ئي کوله، نو که دا پيغمبر ژوندی وی نو ده پسې به تلل نا روا وو نو د امام پسې تلل څرنګه روا شو؟ نو تاسې به ورته وائي چې صحيح ده که هغه ژوندی وو هغه پسې تلل نا روا وو خو د شارع په صفت، نه د شارح په صفت. د شارح په صفت خو به حضرت عيسی عليه السلام پسې ځو، خو د شارع په صفت به نه ورپسې ځو.

**پنځم:** د دوي په دليل کې به ديته ګورئ چې د امتي رأيه خو به ئي نه وي پيش کړي، که د امتي رأيه ئي پيش کړی وه، نو سمدستي به ورته ووائي چی کار غه ګندګي خوري او مېنو که څنډي، د امتي قول خو ستا په نيز تقليد دی، نو ته د أمتي قول د تقليد په خلاف څرنګه پيش کوئ؟ په داسې حال کې چې تقليد ستا په نيز کفر او شرک دی، نو په خپله فتوی کافر شوې او که نه ؟

**شپږم** : دوي چې هر عبارت درته پيش کولو نو تاسو به ورباندې اعتماد نه کوئ، ځکه چې دوي خامخا قطع اوبريد کوي، ځکه چې لامذهبه خلک ديهودو څخه زيات بی اعتماده دي، نو اصل کتاب به ګورئ مثلاً ټول غير مقلدين د تقليد په خلاف دا آيت ليکي چې: قالوا بل نتبع ما الفينا عليه آباءنا نو دا آيت د و مره ندی بلکې ورپسې تقليد مذموم ته اشاره ده چې: (او لو کان آباهم لايعقلون شيئا ولايهتدون) لکن دوي آيت نيم را نقلوي د لامذهو دومره يتيم مسلک دی چې تحريف او کتمان ونه کړي نو يوه خبره يې هم نه ثابتېږي.

**اووم** : به تاسې د دوي دليل ته ګورئ، چې هر دليل دوی پيش کولو چې په هغه کې د الله تعالی او د رسول الله ﷺ د پيروی امر وو، نو تاسو به دوه جوابه ورکړئ. ۱- چې دا دليل خو د تقليد په خلاف نه دی، مقلد د مجتهد په راهنمائي کې د الله تعالی او د رسول ﷺ پيروي کوي، لکه تاسو چې د الله تعالی او د رسول ﷺ د پيروئ دعوه کوئ ليکن د دې زمانې د ملايانو په رهنمايي کې. مثلاً دوي وايي چې الله تعالی فرمايي : اتبعوا ما انزل اليکم من ربکم (الايه) همدارنګه اطيعوا الله والرسول (الايه) وغيره. نو ته به ورته ووايې چې زه په دې ايتونو عمل کوم، زمونږ په ټولو کتابونو کې دا شته. چې زمونږ اول دليل کتاب الله دی. دوهم دليل مو سنة رسول الله دی. دريم دليل مو اجماع ده. څلورم دليل مو قياس

دی، خو زموږه او د ستاسو په منځ کې فرق دا دی چې زموږ رهنما مجتهد دی او ستاسو رهنما غیر مجتهد یعنې د دې زمانې کوم ملا دی. ۲- قرآن او حدیث خو منصوصات دي پدې خو اختلاف نشته، اختلاف په اجتهادیاتو کې دی په اجتهادیاتو کې وکتوزیان څه کوي؟

**اتم:** به ددوي د دلیل او د دعوې په مینځ کې مطابقت نه ګوري، مثلا دوي وایي چې تقلید شرک او بدعت دی، بیا په دلیل کې هغه ایاتونه او حدیثونه پیش کوي چې په هغه کې دالله تعالی او دنبي ﷺ داطاعت ذکر دی، نو ته به ورته ووایې چې په دې ایاتونو او حدیثونو کې خو دتقلید دشرک او دبدعت نه لفظ شته او نه معنی، نو په دې ایاتونو کې خو بالکل دتقلید ذکر ندی راغلی، نو څرنګه یې دخپلې دعوی لپاره دلیل ګرزوې همدارنګه به ورته ووایې چې په دې ایاتونو کې خو دتقلید اثبات دی ځکه چې مونږ دالله تعالی او دنبي ﷺ پیروي کوو، دیو اجماعي مجتهد په راهنمایي کې او همدا دالله تعالی او دپیغمبر ﷺ صحیح پیروي ده. ۳- همدارنګه د الله تعالی او دنبي کریم ﷺ خبرې خو منصوصات دي په اجتهادیاتو کې څه کوي؟.

**نهم:** وابیان تقریبا یوولس ایتونه پیش کوي چې په هغوي کې د اتباع څخه منعه ده، نو ددې ټولو جوابات دادي چې په دې ایتونو کې ستاسو جواب دعوې ته اشاره هم نده شوې ځکه چې ستاسو جواب دعوه داده چې په اجتهادي مسایلو کې په غیر مجتهد باندې د مجتهد تقلید حرام یا شرک او یا کفر دی ۱- او پدې ایتونو کې دې ته اشاره هم نده شوې ۲- پدې ایتونو کې خو دکفارو دپیروی مذمت دی او کفار خو مجتهدین نه وو الله تعالی دهغوي په باره کې لایعقلون او لایهتدون ویلي دي او مجتهدین یعقلون ویهتدون دي، ۳-پدې ایتونو کې داتباع څخه منعه ده او په واتبع سبیل من اناب الیّ کې داتباع حکم دی، نو پدې ایتونو کې مذمومه اتباع او تقلید ذکر شوی دی او په واتبع سبیل من أناب کې ممدوح اتباع او تقلید ذکر شوی دی ۴-پدې ایتونو کې خو داتباع مذمت راغلی دی او تاسو داتباع او دتقلید په مابین کې د فرق قایل یې ومذمة احد المتغائرین لایستلزم مذمة الاخر ۵- په دې ایتونو کې خو دا ندي راغلي چې تقلید بدعت دی د ابو جهل پیروان خو بدعتیان نه وو بلکې کافران وو هغوي خو مالیس من الدین المحمدي دین محمدي نه ګڼلو بلکې د دین محمدي مطلقا دشمنان وو. ۶-مجتهد ته د خطاء په صورة کې یو اجر وي او د صواب په صورت کې ورته دوه اجره وي او په دې ایتونو کې چې دچا پیروي شوې ده هغوي ته خو اجرونه نشته هغوي خو کافران وو، ۷-ددوي په پیروي خو د نص په مقابل کې وه او

دمجتهد پيروي د نص په مقابل کې نه وي ۸- پدې ايتونو کې په کفر او نورو عقائدو کې د پيروی ذکر دی او زموږه تقليد په اجتهادياتو کې دی ۹- پدې ايتونو کې خو دهغه چا ذکر دی چې خپل مشران يې د دين په مقابل کې شارعان ګڼل او امامان د دين شارحان دی ۱۰-په يو معتمد تفسير حواله ورکړه چې ددې ايتونو په تشريح کې يې ويلي وي چې په اجتهادي مسائلو کې دغير مجتهد لپاره دمجتهد پيروي حرامه يا شرک اويا کفر دی ۱۱- دمقلد دتفسير څخه به حواله نه پيش کوی، ځکه چې مقلد ستاپه نيز مشرک دی، نو دمشرک تفسير ستا لپاره څرنګه دليل دی؟

## د لامذهبو ددلايلو څخه تفصيلي جوابونه

**(۱) دغيرمقلدينو اول دليل:** -اِتَّخَذُوْا اَحْبَارَهمْ وَرُهبَانَهمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللهِ(الاية. په۱۰ ع۱۰)

يعنې نيولي دي دغو (يهودو او نصاراوو) عالمان خپل او عابدان خپل خدايان بې له الله ﷻ.

طريقه استدلال يې داده چې لکه يهودو او نصاراوو به خپل عالمان او عابدان په خدايي نيول، ځکه چې دهغوئ متابعت به يې کولو، په تحليل او په تحريم کې، همدارنګه مقلدين هم دي چې خپل ائمه يې په خدايي نيولي دي، ځکه چې دهمدوي متابعت کوي په تحليل او تحريم کې. (سبيل الرسول ص (۲۰۵) وص(۲۰۶)

**جواب (۱):** پەدې ايت کې خو په هغه چا باندې رد دی چې خپل احبار او رهبان يې شارعان ګڼل او اهل سنت والجماعت خپل امامان شارحان ګڼي، يا داسې ووايه چې (۱):پدې آيت کې په هغو خلکو باندې رد دی چې خپل علماء او مشائخ يې ارباب (خدايان) جوړکړيدي. نه په هغه چاچې دمجتهدينو په راهنمائی کې په دين باندې عمل کوي.

الشاه ولی الله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې:وسرّ ذلک أن التحليل و التحريم عبارة عن تکوين نافذ فى الملکوت أن الشئ الفلانى يؤاخذبه او لا يؤاخذبه فيکون هذالتکوين سببًا للمؤاخذة و ترکها و هذا من صفات الله ﷻ تعالى و اما نسبة التحليل و التحريم الى النبي ﷺ فبمعنى أن قوله أمارة قطعية لتحليل الله ﷻ و تحريمه و اما نسبتها الى المجتهدين من أمته فبمعنى روايتهم ذلک عن الشرع من نص الشارع أو استنباط معنى من کلامه (حجة الله البالغة ص ٤٩).

او ددې راز دا دی چې تحليل او تحريم د هغه تکوين نوم دی کوم چې په عالم الملکوت کې نافذوي چې په فلان شي به مؤاخذه وي او يا به نه وي، نو همدغه تکوين سبب دی لپاره د مؤاخذې او ترک د مؤاخذې.او دا تکوين د الله ﷻ د صفاتو څخه دی او د تحليل او تحريم نسبت رسول الله ﷺ ته،نو هغه په دې معنی سره دی چې د رسول الله ﷺ قول د

الله ﷻ د تحلیل او تحریم قطعي علامه ده او د تحلیل او تحریم نسبت مجتهد ته په دې معنی سره دی چې هغوي دا د نص د شارع څخه روایتوي، یا د کلام د شارع څخه استنباط کوي- انتهی.

د شاه صاحب د عبارت څخه یو څو مسائل را معلومیږي:

۱-شرعي احکام د الله ﷻ صفت د تکوین ته راجع دی او د الله ﷻ د نورو صفاتو په شان د تکوین په صفت کې هم د الله ﷻ سره شریک نه شته.

۲-نبي کریم ﷺ ته د تحلیل او تحریم نسبت په دې معنی سره کیږي چې نبي کریم ﷺ مبلغ دی، او د رسول الله ﷺ تحلیل او تحریم د دې علامه ده چې الله ﷻ دا شی حلال یا حرام کړی دی.

۳-مجتهدینو ته چې د تحلیل او تحریم نسبت کیږي، نو د هغې معنی دا ده چې مجتهدین د نص یا د نص څخه د استنباط په وجه تحلیل او تحریم بیانوي د خپل ځان څخه یو شي ته حلال او یا حرام نه وایي، خلاصه دا چې اهل کتابو د منصوصاتو په مقابل کې او هم همدارنګه په عقایدو باطله و کې د خپلو مشرانو پیروي کوله او مقلدین په اجتهادیاتو کې د امامانو په راهنمایي کې د الله تعالی او د نبي کریم صلی ﷺ پیروي کوي.

(۲) او بل دا چې رب جوړ لکه چې د علماؤ او د مشائخو منع دي نو همدارنګه د انبیاء و علیهم السلام هم منع دي، یعنی د علماو او د مشائخو تخصیص نشته، له همدې وجهې پدې ایت کې (والمسیح بن مریم) هم شته یعنې دوي خپل نبي عیسی ﷺ هم په خدایي نیولی وو، لکن لامذهبان د قرآن کریم دا الفاظ نه را نقل کوي، د آیت په نقل کولو کې خیانت کوي چې دا خیانت سبیل الرسول نه بلکې سبیل الیهود دی.

(۳) لامذهبان وایي چې دوي خپل علماء په خدایي نیولي دی، ځکه چې د دوي متابعت کوي یعنې د دوي خبره مني، نو معلومیږي چې د لامذهبانو په نیز د چا خبره منل هغه په خدایي نیول دي.

نوزه وایم، چې دا آیت خو بیا د منکرینو د حدیث لپاره دلیل دی، ځکه هغوي به وایي چې لکه څرنګه چې د علماؤ او د مشائخو د خبرې منل هغوي په خدایي نیول دي، همدارنګه د پیغمبر خبره منل هغه په خدایي نیول دي، نو د دې استدلال مطابق د نبي ﷺ خبره منل هم ناجائز پکار دي، نو غیر ملقدینو دا استدلال د منکرینو د حدیثو څخه زده کړی دی او د انکار د حدیث لپاره دروازه خلاصوي.

(۴): لامذهبانو ائمه اربعه رحمهم الله قیاس کړیدي دیهود په علماؤ او په مشائخو باندې.

حالانکه الله تعالی دیهود و د علماؤ او د مشائخو په باره کې فرمایي: سَمّٰعُوْنَ لِلْکَذِبِ اَکّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ، او یَکْتُبُوْنَ الْکِتٰبَ بِاَیْدِیْهِمْ ثُمَّ یَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ.

او ائمه اربعه رحمهم الله مجتهدین دي، سماعون للحق دی، مجتنبون عن المشتبهات دي او شارحون للقرءان والحدیث دی، نو مجتهدین یې قیاس کړیدي په دروغژنو حرام خورو، د دین پوهان یې قیاس کړیدي د دین په

دښمنانو باندې، مجتهدین یې قیاس کړیدي په مجرمینو باندې، کاشفین د وحی یې قیاس کړیدي په کاتبینو د وحی، عسل په ګندګۍ قیاسوي، شیدې په متیازو قیاسوي، اوبیا خپل دې قیاس ته د قرآن او د حدیث نوم هم ورکوي.

(۵) لا مذهبان دې دا ثابته کړي چې دیهودو علماء او مشائخ مجتهدین وو او بیا ددې مجتهدینو د پیروۍ څخه منع راغلې ده.

(۶): د مجتهد په باره کې د بخاري او د مسلم په متفق علیه حدیث کې دي چې د خطایې په صورت کې ورته یو اجر دی او حق ته د رسېدلو په صورت کې ورته دوه اجره دي. بخاري ج (۲) ص(۹۲).

لامذهبان چې مجتهدین دیهوو او دنصارا او دعلماوو سره یو شان کړل نو آیا لامذهبان دیهودو او د نصارا او د علماؤ او د مشائخو په باره کې هم دا عقیده لري، چې دوي ته په بعضو مسائلو کې یو اجر دی او بعضو کې ورته دوه اجره دي؟

(۷): غیر مقلدین ددې آیت په تشرح کې د ترمذي ج(۲) ابواب التفسیر حدیث رانقلوي چې دیهودو او نصارا او علماؤ او مشائخو به دځان نه یو شی ته حلال او حرام ویل او کله به یې دالله ﷻ حراموته حلال ویل او حلالو ته به یې حرام ویل، او بیا مجتهدینو ته هم دا نسبت کوي، چې دوي هم نعوذ بالله منها دخپل ځان څخه نه یو شي ته حلال او حرام وایي. سبیل الرسول ص(۲۶۵)

مګر امام ترمذي چې ددې حدیث په باره کې کوم فیصله کړېده هغه یو غیر مقلد هم نه رانقلوي. امام ترمذي دهمدې حدیث په آخر کې فیصله کوي چې دا حدیث حسن غریب دی. دعبدالله بن حرب څخه پرته په بله طریقه ندی معلوم، او ددې حدیث دوهم راوي غطیف بن أعین په حدیثو کې معروف ندی. ترمذي ص(۴۴۱)

ددې حدیث اول راوي حسین بن یزید کوفي دی ابوحاتم ده ته لین الحدیث وایي. میزان الاعتدال ج(۱) ص(۵۵)

دوهم راوي غطیف ته هم امام دار قطني ضعیف ویلي دي [میزان الاعتدال ج(۳) ص(۳۳۶)] غیر مقلدین حدیث نقلوي لکن دحدیث حال نه بیانوي چې دا کتمان دی او سبیل الیهود دی نه سبیل الرسول.

(۸): ددې حدیث مصداق خو مجتهدین ندي، ټول غیر مقلدین دې را ټول شي او په اصول فقه کې دی صرف یوه حواله وړاندې کړي چې دمجتهد تعریف یې داسې کړی وي، چې مجتهد ده ته وایي چې دځان څخه یو شي ته حلال یا حرام ووایي، یا مجتهد ده ته وایي چې دالله ﷻ حرام کړي شیان حلالوي او دالله ﷻ حلال کړي شیان حراموي.

داهل سنت والجماعت په نیز مجتهد قانون ساز ندی بلکې قانون دان دی. اهل سنت اعلان کوي چې (القیاس مظهر لا مثبت) یعنې قیاس شرعي دالله ﷻ او درسول ﷺ مراد ظاهروي خپله مسائل نه ثابتوي.

نو مجتهد خو دالله ﷻ دحلالو او دحرامو توضیح کوي لامذهبه نیاز محمد دلته هم یو عظیم خیانت کوي د تفسیر کبیر دا عبارت رانقلوي چې الاكثرون من المفسرين ،قالوا ليس المراد من الارباب انهم اعتقدوا فيهم انهم الهة العالم بل المرا دانهم اطاعوهم فى اوامرهم ونواهيهم الخ) (التحقيق السديد ص ١٣٤ دریم چاپ) او د تفسیر کبیر دا عبارت نه رانقلوي چې (قال الربيع قلت لابى العاليه: كيف

کانت تلك الربوبيه فی بنی اسرائيل فقال انهم ربما وجدوا فی کتاب الله ما يخالف اقوال الاحبار والرهبان فكانوا ياخذون باقوالهم وماکانوايقبلون حکم کتاب الله (تفسیرکبیرج ۱۰ ص ۳۷ دارالکتب العلمیه طهران).

(۹) دغیرمقلدینو دا دلیل ددوي ددعوې سره مطابق نه دی ځکه چې پدې ایت کې نه دتقلید لفظ شته او نه یې معنی شته، همدارنګه پکې دشرک او دبدعت نه لفظ شته او نه معنی، نو ددې ایت څخه څرنګه خپله دعوی (التقلید بدعة یاشرک) ثابتوي؟

## ۲. دغیرمقلدینو دوهم دلیل:

الله ﷻ فرمایي: وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَآ اَلْفَيْنَا عَلَيْهِ اٰبَاءَنَا، پاره (۲) رکوع (۸) سبیل الرسول ص (۳۵۶).

اوکله چې وویل شي دوي ته چې پیروي کوئ تاسې دهغه حکم چې نازل کړی دی الله (چې قرآن دی، په تحلیل او تحریم کې) نو وایي (چې دقرآن پیروي نه کوو) بلکې پیروي کوو دهغه حکم چې موندلی دی مونږ په هغه باندې پلرونه خپل.

په بل ځای کې فرمایي: وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَاءَنَا [پاره (۷) رکوع (٤)] سبیل الرسول ص (۳۵۷)

اوکله چې وویل شي دوي ته چې راشئ تاسې هغه شي ته چې نازل کړی دی الله تعالی، او (راشئ) په لوري (دحکم) درسول (دالله) نو وایي دوي چې بس دی مونږ ته هغه دین چې موندلی دي مونږ په هغه دین پلرونه خپل).

طریقه داستدلال داده چې دغه کافرانو دخپلو پلرونو تقلید کولو، همدارنګه مقلدین، هم دائمه ئې اربعه وو تقلید کوي.

(۱) قلنا الزاما: چې پدې ایت کې خو داتباع دپلرونو نفی ده، دتقلید دپلرونو نفی خو نشته، اوغیرمقلدین اتباع او تقلید ته متغائرین وائی، ومذمة احد المغايرين لایستلزم مذمة الاخر، دلته غیرمقلدینو خپل مسلک ((مغایرت دتقلید او داتباع) پریښنودلو او د اتباع ترجمه ئې په تقلید وکړه.

(۲) جواب مخکې مونږ وويل چې تقليد په دوه قسمه دی اول جائز چې په اجتهادي مسائلو کې دمجتهدينو تقليد او اتباع ده ،دوهم ناجائز چې هغه دغير مجتهدينو تقليد او اتباع ده. نو په دې آيتونو کې دوهم قسم تقليد او اتباع ذکرشوی ده ځکه چې د کافرانو پلرونه او نيکونه مجتهدين نه وو.

نو دناجائز تقليد او اتباع له جهې جائز تقليد او اتباع ته حرام ويل داسې دي لکه دسپی دشيدو له وجهې چې دغوا شيدو ته حرام ووايي. غيرمقلدين دې داثابته کړي چې د کافرانو آباء او اجداد مجتهدين وو او دقرآن او حديث شارحان وو او ددوي مذاهب مدون مرتب وو ،لکه د ائمه اربعه وو په شان.

(۳) پدې ايت کې په واضحو مسايلو (عقايدو) کې دبل چا دپيروی څخه منع ده او تقليد په غير واضحو مسايلو کې کيږي.

(۴): پوره آيت داسې دی:

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ﴿أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾(البقره/۱۷۰)

دويم آيت: ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ قَالُوا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا (أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾(المائده /۱۰٤)

داپه قوسونو کې جملې غيرمقلدين نه رانقلوي، نوتقليدته شرک او حرام ويل دومره سخت دي چې دالله جل جلاله د آيتونو په نقل کولو کې هم خيانت ورته کوي.

غير مقلد عبدالسلام رستمي ليکي چې دا (لو) وصليه ده، نو نقيض دشرط ته به په طريق اولی حکم ثابت وي؟

قلنا: د (لو) وصليه مفاد استمرار وي چې د لايعقلون ولايهتدون او د يعقلون ويهتدون دواړو تقليد وکړي او استمرار مذموم دی.

(۵) په دې ايت کې چې نظر وکړ ی شي دائمه مجتهدينو د تقليد سره يې د لرې څخه هم تعلق نشته.

(الف):د کومو مسائلو څخه چې مشرکینو د مکې انکار کولو هغه ټولې اعتقادي مسئلې وې یوه مسئله پکې هم اجتهادي نوه. او د ائمه وو تقلید په اجتهادي مسائلو کې دی

(ب) :د دوئ آبآء او اجداد د الله ﷻ څخه باغیان وو، او دوي یې تقلید او اتباع کوله ،او ائمه مجتهدین د الله ﷻ او د رسول الله ﷺ په طریقو تلونکي دي او د دوي د طریقو ښود ونکي دي.

(ج):د مشرکانو آبآء او اجداد اول درجه بې عقل خلک وو، بالعکس ائمه اربعه اول درجه عاقلان او نابغه گان دامت وو.

(و):د مشرکانو آبآء او اجداد د علم څخه بالکل ړانده وو او ائمه مجتهدین د علم غرونه وو

(ه) : د مشرکانو آبآء او اجداد خپله هم گمراهان وو او نوریې هم گمراه کول، او ائمه مجتهدین خپله هم په هدایت دي او نورو ته هم د هدایت چراغونه دي. حاصل دا چې : قرآن کریم په واضحو مسایلو کې د مشرکانو جاهلانو گمراهانو پلرونو د تقلید او د اتباع څخه منع کړې ده د مجتهد د تقلید څخه پکې منع نشته.

غیر مقلدین دومره خیانت کوي چې د مشرکانو د آباؤ او اجدادو صفات نه ذکر کوي. چې د اکتمان دحق دی او دیهودو تقلید دی، غیر مقلدین ټول کوشش پدې کې مصرفوي چې خلک د ائمۂ اربعه وو د تقلید څخه واړوي او دیهودو مقلدین یې کړي.

د لامذهبانو خصوصاً د نیاز محمد عرف امین الله پشاوري یو بې نظیره خیانت ، لامذهبه نیاز محمد د دې ایتونو د رانقلولو څخه وروسته داسې لیکي چې علامه قرطبي فرمایي مسالة: قال علماءنا وقوة الفاظ هذه الایة تعطی ابطال التقلید) یعنې زمونږ علماو ویلي دي چې د دې ایت د الفاظو طاقت تقلید لره باطلوی (التحقیق السدید ص ۱۳۰ دوریم چاپ د نیاز محمد کتاب).

حلانکه علامه قرطبي وروسته داسې لیکلي دي:وفی هذه الأیة ردعلی التقلید المذموم ای تقلید الاباء فی المعصیة واتباع الهوی بمقابلة القرآن والسنة واماتقلید المجتهدفلیس بمذموم بل محمود لانه تقلیدفی الحق والتقلیدفی الحق اصل من اصول الدین، یعنې پدې ایت کې په تقلید مذموم باندې رددی په تقلید د مجتهد باندې رد نه دی ځکه دا تقلید په حق کې دی او تقلید کول په حق کې اصل د دی

داصولو ددين څخه. (الجامع الاحكام القرآن: ج ۲/ ص ۱۴۱ احياء التراث العربی) قاضی بيضاوي فرمايي :واما اتباع الغير فی الدين اذاعلم بدليل ما انه محق کا لانبياء والمجتهدين فی الاحکام فهوفی الحقيقة ليس بتقليد مذموم بل اتباع لماانزل الله(بيضاوی ص ۸۵ مصطفی البابی الحلبی مصر) اوعلامه الوسي فرمائي: اتباع الغير فی الدين بعد العلم بدليل مانه الحق اتباع لماانزل الله وليس من التقليد المذموم بشئ (روح المعانی ج ۲/ ص ۵۹۹ رشيديه)

## وضاحتونه

(۱) - دغيرمقلدينو داسې مثال دی چې مثلاً الله تعالی امرکړی دی چې (باطل خدای مه منی). غيرمقلد دباطل ټکی ترې لرې کړي او داسې و وايي چې الله تعالی امرکړی دی چې (خدای مه منی) يامثلاً الله تعالی امرکړی دی چې(کاذب نبي مه منئ) او غيرمقلد ترينه دکاذب لفظ کټ کړي او ووايي چې الله ﷻ امرکړی وي چې(نبي مه منئ) يامثلاً الله جل جلاله فرمائي چې (لا تقربوالصلوة وانتم سکاری) اوغيرمقلد ترينه دوانتم سکاری لفظ لرې کړي او ووائي چې الله ﷻ فرمائي چې لاتقربوا الصلوة. دلته هم الله تعالی په واضحو مسايلو کې د مشرکينو جاهلو او ګمراهو پلرونو دتقليد څخه منع کړېده.

اوغيرمقلدين ترينه نورټول صفات کټ کوي او وايي چې په دې آيت کې الله تعالی دپلرونو دتقليد څخه منع کړېده. افسوس چې دومره تحريفونو او خيانتونو ته عمل بالحديث ويل کېږي.

### ۳- دغيرمقلدينو دريم دليل:

الله تعالی فرمايي: اتَّبِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ (الاعراف /۳) غيرمقلدين يې داسې ترجمه کوي: اتباع کوئ صرف دهغه څه چې الله ﷻ نازل کړيدي چې قرآن اوحديث دي.

اوتقليد مه کوئ دده څخه ماسوا دنورو اولياؤ چې ائمه او فقهاء دي (۱) قلنا اولاً الزماً چې غيرمقلدينو پخپلو ټولو کتابونو کې ليکلي دي چې چې دتقليد او داتباع په مينځ کې فرق دی، نوبيا خوپدې ايت کې داتباع نفی ده (لاتتبعوا) دتقليد نفی نده (لاتقلدوا) ئی ندي ويلي ونفی احد المتغايرين لايستلزم نفی الاخر

(۲) قلنا الزاماً ثانیا :چې ای غیر مقلدینو ستاسو مشران ورونه (منکرین حدیث) چې ځانونه اهل قرآن وایي.

دستاسو په شان په همدې ایت باندې استدلال کوي چې (ما انزل الله) صرف قرآن دی، صحاح سته ما انزل الله ندي بلکې په (من دونه اولیاء) کې شامل دي هغوي ته تاسو څه جواب ورکوئ؟

که دا جواب ورکوئ چې رسول الله ﷺ دځان څخه څه ندي ویلي ځکه چې (وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُوْحٰى) رسول الله ﷺ چې څه ویلي دالله تعالی له طرفه یې ویلي دي، نو لدې وجهې احادیث په (ما انزل الله) کې داخل دي. نو همدا رنګه اهل سنت والجماعت هم همدا جواب کوي چې مجتهدینو دځان څخه څه نه دي ویلي بلکې دالله تعالی او دالله دنبي ﷺ مراد یې را ښکاره کړی دی ځکه مجتهدینو اعلان کړیدی چې (القیاس مظهر لا مثبت).

مجتهدین هیڅ خبره دځان څخه نه کوي بلکې دقرآن او دحدیث څخه اخذ او استنباط کوي. نو دقرآن او حدیث څخه راوتلی حکم په ما انزل الله کې داخل دی.

وقلنا ثالثا : چې مجتهدین دالله ﷻ اولیاء دي او پدې ایت کې دمن دونه اولیاء داتباع نفی ده، داولیاء ورونه، دوي ددې آیت نه رانده دي چې ﴿وَاتَّبِعْ سَبِيْلَ مَنْ اَنَابَ﴾ مَنْ جنس دی، یو مجتهد ته هم شامل دی او زیاتو ته هم، نو دتقلید شخصي او دمطلق تقلید دواړو وجوب په دې آیت کې ذکر دی کما مرّ.

## د نیاز محمد عُرف امین الله پشاوري یوځو دلائل

لامذهبه خناس لیکي چې:

## اول دلیل

وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝. الآیة

اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ۝ . الآیة

او وائي چې پدې آيتونو کښې الله تعالی هدايت او فلاح د قرآن او سنت په اتباع موقوفه کړې دہ، د کوم امام يا مجتهد په تقليد باندې الله تعالی څه هدايت يا کاميابي نده فرمايلې. التحقيق السديد ص ۱۲۹ طبع دوهم ص ۲۱ طبع ۲۰۱۱ وص ۱۷ طبع اول]

(۱) جواب: لامذهبه! دا دليل دی د خپلو مشرانو ورونو اهل قرأنو څخه راپټ کړې دی، هغوی وايي چې ماانزل اليک صرف قرأن دی او احاديث عجمي سازش دی، فماهو جوابک فهو جوابنا.

(۲) لامذهبه! تا په ترجمه کښې د (اوسنت په اتباع) لفظ ذکر کړی دی، نو دا د ايت د کوم لفظ ترجمه ده؟ آيا دا تحريف معنوي ندی؟

(۳) لامذهبان د امامانو مذهبونه د قرآن او د حديث په مقابله کښې يو جدا دين ګڼي، او ددې څه سترګی پټوي چې مجتهدين امامان د هر څه نه مخکې مسئله په قرآن کښې ګوري، که هلته ئې پيدا نه کړه بيائې په سنت نبوی ﷺ کښې ګوري، که هلته يې پيدا نه کړه بيائې په اجماع کښې ګوري، او که هلته يې هم پيدا نه کړه بيا د حضرت معاذ رضي الله عنه د حديث مطابق اجتهاد او قياس کوي.

د قرآن کريم او د سنت په مقابل کښې قياس کول او خپله رائه پيش کول ديو ادنی مسلمان د شان سره هم ندي مناسب دامامانو مرتبه خو ډيره اوچته ده.

(۴) دا دليل د دعوی سره څرنګه مطابق کوئ؟ پدې کې خو د تقليد نه لفظ شته او نه معنی، بلکې دا ايت خو د تقليد لپاره دليل دی ځکه چې مقلدين د مجتهدينو په راهنمايي کې په (ما انزل اليكم من ربكم) باندې کما حقه عمل کوي.

لامذهبه ليکی چې:

## دويم دليل

دا قول د الله تعالی دی ﴿وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾

ترجمه: مه راونیږه دهغه څه پسې چې ستا پرې علم نشته: او تقلید په اتفاق دعلماوو سره علم ندی او نه مقلد په علماءو کښې حساب دی، نو دتقلید په طور چاپسې تلل منع شول. ص ۱۳۱ طبع دوم، وص ۲۴ طبع ۲۰۱۱]

(۱)الجواب: علامه الوسي رحمه الله فرمايلي دي: په اجتهاديا وکې د مجتهد په راهنمايي کې د الله تعالی او دنبي کريم ﷺ پسې تلل بې دليله تلل نه دي، لان دليلَ المقلَّد دليل المقلِّد (روح المعاني تحت قوله تعالی قل هاتوا برهانكم) بقره

(۲)الجواب: لامذهبه! دا ووايه چې دا اتفاق او اجماع کله شويده؟ او ماخذيې څه دي؟ ځکه چې ستا په نيز خو داجماع لپاره دکتاب اودسنت ماخذ والی ضروري دی، لکه تا چې ذهمذی کتاب په (ص ۱۵۸ طبع دوم، ص ۴۸ طبع اول، ص ۵۲ طبع ۲۰۱۱ ) کښې ليکليي دي.

(۳)جواب :تا په (ص ۱۶۶ طبع دوم، ص ۵۵ طبع اول ص ۶۰ طبع ۲۰۱۱ ) کښی ليکلي ذي چي دعلماوو قول حجت ندی نو دلته يې څرنګه حجت ګڼې ؟

(۴)جواب: لامذهبه دقرطبي حواله ذکر کړيده ليکن پوره عبارت يې ندی ذکر کړی چی حقيقت ترې معلوم شي پوره عبارت دادی : التقليدليس طريقاً للعلم ولا موصلاً له لا في الاصول ولا في الفروع وهو قول جمهور العقلاء والعلماء خلافاً لمايحكي من جهال الحشوية والثعلبية من انه طريق الي معرفة الحق (وان ذالك هو الواجب وان النظروالبحث حرام( ج م ص ۲۱۲ )

يعنی تقليد دعلم لا رنده نه په اصولو کښی او نه په فروعو کښی اودا دعامو عقلمندو او علماوو قول دی، سوی دبعضو غلطو فرقو څخه چی هغوی وائی چی دا دحق طرفته لاره ده او صرف همدا واجبه ده. او (په کتاب او سنت باندي) نظر کول او (ددیلائلو او مسئلو) لټون حرام دی، نو لامذهبه دقوس په مينځ کښې عبارة پريښی دی مطلب يې دادی چي په مطلق تقليد باندی رد اوکړي، حالانکه دا په هغه چا رد دی چی هغوی دعلم حصول او په کتاب او سنت باندې ځان پوهولو ته حرام وايي او صرف په تقليد باندې اکتفاء کوي، او که څوک دعلم حصول ته حرام نه وائی ليکن دبحث اودلټون قابليت نلري نو دا سې خلک ترينه ندي مراد لامذهبه دلته دعلماوو اقوال په دليل کښې پيش کوي او په (ص ۵۵ طبع اول ص ۱۶۶ طبع دويم ص ۲۴ طبع ۲۰۱۱ ) باندې ليکي چی ددوي قول حجت ندی؟

(۵)لامذهبه خناسه! دا ابن قيم قول دقرآن آيت دی؟ او که درسول الله تعالی حديث دی؟ تا خو عنوان لګولی وو چی (آيتونه دتقليد په بدی کښی) اولاندې کله دا ابن قيم قول پيش کوی او کله دزيدي شيعه شوکاني قولونه پيش کوی او کله دنورو مقلدينو.

(۶) تقلید د اجتهاد لاره نه ده د علم څخه اجتهاد مراد دی، یا د علم نه یقین مراد دی او تقلید په اجتهادیاتو کې کیږي او په اجتهادیاتو کې دیو امام قول، نه یقیني صواب وي او نه یقیني خطاء وي.

## دلامذهبو په نيز دشوكاني مقام

لامذهبه د شوکاني قول رانقلوي چی کوم کتابونه چی مقلدینو په مسئلو کښی لیکلي دي دا دین ندی. [ص ۱۳۲ طبع دویم ص ۲۰ طبع اول ص ۲۰ طبع ۲۰۱۱]

یعني شوکاني زیدي شیعه چي څه شي ته دین ووائی نو هغه به دین وي او چی څه شي ته دین نه وایي هغه به دین نه وي، لامذهبه خناسه! شوکاني ته دا سند الله تعالی ورکړی دی او که رسول الله ﷺ ورکړی دی؟ چی د شوکاني قول د حق معیار دی.

لامذهبه خناس د نواب صدیق حسن خان قول را نقلوي حالانکه صدیق حسن خان هم ستا په شان غیر مقلد دی او د ترجمان وهابیه په نوم کتاب یې هم لیکلی دی، په هغی کښی یې دانگریزانو دنمک دحلالولو پوره حق ادا کړی دی، په اخر کښې لامذهبه د زمحشري معتزلي قول رانقل کړی دی (ص ۱۳۳ طبع دویم ص ۲۱ طبع اول ص ۲۶ طبع ۲۰۱۱ زمحشري معتزلي دی خو لامذهبه خناس یې بیا هم تقلد کوي څکه چی وائی.

شعر: اخوند له خو چې پې وی که د خرې وي او که د سپې وي

عدم تقلید د معتزله وو مذهب دی او لامذهبان هم اعتزال خوښوي.

لامذهبه لیکي چي:

## پنځم دلیل:

[ام حسبتم ان تدخلوا الجنة ولما يعلم الله الذين جٰهدوا منكم ولم يتخذوا من دون ولا رسوله ولا المؤمنين وليجة: ص ۱۳۷ طبع دويم ص ۲۵ طبع اول ص ۳۰ طبع ۲۰۱۱.

لامذهبه په دي آیت کښي هم لفظي غلطي کړیده او هم معنوي: لفظي غلطي یې دا کړی ده چی په سورة التربة کښي دا آیت داسې ندی بلکه داسې دي چې " ام حسبتم ان تتركوا ولما يعلم الله الذين جٰهدوا منكم " په دویمه طبع کښې یې تصحیح کړیده. او معنوي غلطي یې دا کړې ده چې د " وليجة " څخه دا ابن قیم رحمه الله په رړوند تقلید کښي په تقلید باندې رد کوي.

د(وليجة) لفظ په سورة التوبه کښې دى او مراد ترينه پټه دوستي ده، چې دخپل زړه او د مسلمانانو راز کفارو ته ښکاره کوى، لکه ستا اکابرو اوستاذ ډلګۍ بانينو نذيرحسين دهلوى، نواب صديق حسن خان، اومحمد حسين بټالوي چې کوله، لامذهبه نذيرحسين به انګريزان د الله تعالى رحمت ګڼلو. لامذهبه نواب صديق حسن خان د انګريزانو دنمک دحلالولو لپاره يو کتاب وليکلو په نامه د ترجمان وهابيه او د انګريزانو په خلاف جهاد ته يې حرام وويلو، لامذهبه محمد حسن بټالوي بل کتاب وليکلو په نامه د الاقتصاد في مسايل الجهاد او د انګريزانو په خلاف جهاد کولو ته يې غدر او خيانت وويلو.

(۲) لامذهبه خناسه! په دې آيت کښې خو يو ائې الله تعالى او رسول ﷺ نه دى ذکر شوى، بلکه مؤمنان هم ذکر شوي دي، او په مؤمنانو کښې ائمه هم داخل دى، نو د مقلدينو دوستي هم د الله تعالى سره ده، او هم د رسول الله ﷺ سره ده او هم د مومنانو سره ده. ځکه چې مقلدين اول عمل په قرآن کريم باندې کوي، چې دا ئې د الله تعالى سره دوستي ده، که هلته د مسئلې حکم پيدا نه شو نو بيا عمل په سنت د رسول الله ﷺ کوى چې دا يې د رسول الله ﷺ سره دوستي ده، او که هلته هم حکم پيدا نشو نو بيا په اجماع او د مجتهد په اجتهاد باندې عمل کوي چې دا ئې د مومنانو سره دوستي ده.

(۳) لامذهبه خناسه! مونږ چې د امام صاحب په اجتهاد باندې عمل کوؤ نو دا خو صرف لدى وجه کوو چې امام صاحب په غير واضحو (اجتهادي) مسائلو کښې د الله تعالى او د رسول الله ﷺ مراد رابنکاره کړى دى، دخپل ځان ځخه يې څه نه دي ويلي کما يقال (القياس مظهر لا مثبت) لکه کوهى ويستونکى چې د الله تعالى اوبه رابنکاره کوي دخپل طرفنه اوبه نه راپيدا کوي.

(۴) لامذهبه خناسه! ائمه مجتهدين د الله تعالى او د رسول الله ﷺ د حکم مقابله نه کوى. بلکه په واضحو مسئلو کښې بغير د چون او چرا څخه په مسئله عمل کوي، او په منصوصي متعارضو مسئلو کښې دفع د تعارض کوي، او که دفع تعارض نوه ممکنه نو بيا په راجح نص باندې عمل کوي، د نص څخه نه ووزي. او په منصوصي غير متعارض لکن محتمل التاويل مسئلو کښې د نص په راجح احتمال باندې عمل کوي او په غير منصوصي مسئلو کښې قياس کوي. يعني غير منصوصي مسئلې قياسوي په منصوصو مسئلو باندې او په غير منصوص مسئله باندې د نص مطابق عمل کوي، نو د ايمه وو ټول عمل په نص يعني په قرآن او په سنت باندې شو.

لامذهبه خناسه! ته خو مجتهد نه يې ځکه چي تا ته لا تراوسه پورې د اجتهاد تعريف ندی ياد او نه به ستا په دله کښي څوک د خپلو اصولو مطابق د اجتهاد جامع او مانع تعريف وکړی شي، نو چي ته مجتهد نه شوې نو ته په متعارضو آيتونو او يا په متعارضو حديثونو څرنګه عمل کوئ؟

او يا يو آيت او يو حديث چي محتمل التاويل وي يعني د دوه درېو معناګانو احتمال لري په هغې به څرنګه عمل کوئ؟ او همدارنګه په غير منصوصي حکم څرنګه عمل کوئ؟. مونږ خو پدې درې واړو د مجتهد په راهنمائي کښي عمل کوو او ته خو نه مجتهد يې او نه د بل مجتهد خبره منې نو ته به څه کوئ؟

لامذهبه خناس يوه قيصه را نقل کړې ده، چي يو ځل يو مولوي صاحب وويل چي په هدايه کښي نېې مسئلې هم شته ليکن خرافات پکښې هم شته، نو يو بل حنفي سپين ګيرې ملا په مخ څپېړه ورکړه چي ته په هدايه کتاب پوري خبرې کوې، هغه خو د قرآن پشان کتاب دی (ص ۱۳۸ طبع دويم ص ۲۷ طبع اول ص ۳۱ طبع ۲۰۱۱) بيائې د چاپخانو والاؤ نه يو شعر را نقل کړې دی چي احناف وائې چي :

ان الهداية كالقرآن قد نسخت ماصنفوا قبلها في الشرع من كتب

اقول : لامذهبه خناسه! د حنفي سپين ګيري ملا غصه بې ځايه نه وه ځکه چي اول خو ستا دې بې ادبه نام نهاد مولوي پدې حديث باندې عمل نه وو کړی چې (ان لا تنازع الامر اهله) نسائې ج ۲/ص۱۰۹)

يعنې چي مونږ به د کوم کار د اهل سره د هغه په کار کښې لانجه نه کوو، د ا اصل ټولې دنيا منلی دی د ټولې دنيا پدې اتفاق دی چي د قاضي سره هغه څوک اختلاف کولی شي چي په قانون پوهيږي نااهله ملزم ته هيڅکله د احق نشته چي هغه د قاضي سره اختلاف في الرايه وکړي، د ډاکټر سره اختلاف في الرايه صرف ډاکټر کولی شي نااهله مريض ورسره اختلاف نشي کولی، همدارنګه د محدث سره اختلاف في الرائ صرف محدث کولی شي نو همدارنګه د مجتهد سره اختلاف في الرايه صرف د مجتهد حق دی.

هر ملا ،هر ډيرور، او هر کلينډر، او هر دوکاندار ته دا حق نشته چي د مجتهدينو سره اختلاف في الرايه وکړي، نو ستا دا بې ادبه ورور به يا ستا په شان ملا وو چي د "ساق" په ترجمه کښي دی فرج ذکر کړی دی کمافی کتابک هذا ص ۲۴۳ طبع دويم ص ۱۲۳ طبع اول وص ۱۴۱ طبع ۲۰۱۱ د ۱۲۳، اعتراض لاندي

اويا به كوم كلركر، اويا به كوم دوكاندار، اويا كلينډر وو نو ده ته هيڅكله دا حق نه وو چي په مجتهد باندې اعتراض وكړي، په هدايه باندې پوهيدل علم غوارې او ستا په ډلګۍ كې د علم قحطي ده.

او دوهم دا چي ستا ددې بې ادبه ورور لهجه داسې ده چي څپيړه نه بلكه د راكټ مرمۍ ورسره مناسبه ده، ځكه چي ستا دې بې ادبه ورور داسې هم ويلي شو چي په هدايه كښې ښې مسئلې هم شته او ضعيف اقوال پكښې هم شته او دا څه عيب نه دى، ځكه د الله تعالى د كتاب څخه علاوه په بل هر كتاب كښې صحيح او ضعيف وي حتى چې په بخارى او په مسلم كښې هم شته، لكه څرنګه چي مونږ په را روان بحث كې دلامذهبو داعتراضونو او د حنفي جوابونو د ۴۷ اعتراض لاندې تفصيل كړى دى.

اوباتي شو دا شعر چي: ان الهدايه كالقرآن: نو پدې شعر كښي كه ته د (صنفوا) په معنى باندې پوهيدلى نو هيڅكله به دې اعتراض نه وو كړى، ځكه چې ددې لفظ مصدر تصنيف دى، نو ددې څخه نه كتابونه مراد دي چي د هغوي تصنيف شوى دى او په هغوي كښى قرآن نه دى داخل ځكه چي قرآن تصنيف نه دى بلكه تنزيل دى.

او د احاديثو كتابونه هم پكښې نه دي داخل ځكه هغه هم تصنيفات نه دي بلكه تاليفات دي، البته د فقهي كتابونه تصنيفات دي همدارنګه تا د شعر ترجمه هم غلطه كړې ده ځكه چې تا د كالقرآن لفظ خبر جوړ كړى دى حالانكې كالقرآن خبر نه دى بلكې قد نسخت خبر دى او كالقرآن حال دى، نو د شعر معنى دا ده چي بې شكه هدايې خلک د هغو كتابونو څخه بې پرواكړل كوم كتابونه چي فقهاوو مخكښې ليكلي وو لكه قرآن كريم چي مخكني كتابونه منسوخ كړل.

## شپږم دليل

لامذهبه خناس ليكي چي: فان تنازعتم في شئ فردوه الي الله والرسول ان كنتم تؤمنون بالله واليوم الاخر الايه. لامذهبه ليكي چي تقليد د الله تعالى او د رسول الله ﷺ نه ماسوى بل چاته د مسئلې وړلو ته وائى. [ص ۱۳۹ طبع دويم ص ۲۸ طبع اول ص ۳۲ طبع ۲۰۱۱].

لامذهبه! ددې څخه مخكى الله تعالى د تقليد امر كړى دى الله تعالى فرمائى چى (ياايها الذين امنوا اطيعوالله واطيعوالرسول واولي الامر منكم) او اولوالامر د الله تعالى او د رسول الله ﷺ څخه

ماسوی دي او په " فان تنازعتم " کښې مجتهدينو ته خطاب دی کما فی احکام القرآن للجصاص نو مجتهد اجتهاد په هغه وخت کښ کوي چې په يوه مسئله کښ صريحي نص نوي موجود، نو چې په يوه مسئله کښ چې صراحةً نص موجود وي نو په هغې کښ به د کتاب الله او د سنت الرسول ﷺ صريح نص ته رجوع کولې شي او که پدې دواړو کښ مسئله پيدا نشوه نوبيا به په اجتهاد د مجتهد عمل کولې شي.

علامه امدی رحمه الله فرمايي چې :

ولقائل ان يقول لانسلم ان قوله تعالي ( فردوه الي الله والرسول) يدل على الوجـوب على ماسبق تقريره، فالردالى مذهب الصحابي لايكون تركاً للواجب، وان سلمنا انه للوجوب ولكن عندامكان الرد، وهو ان يكون حكم المختلف فيه مبينافي الكتاب والسنة، وامابتقـديران لا يكـون فيهما فلا، ونحن انما نقول باتباع مذهب الصحابي مع عدم الظفر بما يدل علي الواقع من الكتاب والسنة. الاحكام في اصول الاحكام ج ٤ / ص۲۰۲ )

(۲) لا مذهبه خناسه! په اجتهادي مسئله کښ د مجتهد په راهنمايي کښ عمل کول هم د الله تعالى او د رسول الله ﷺ طرفته رجوع وي، ځکه چې مجتهد په اجتهاد سره نوې مسئله نه راپيدا کوي بلکه د قرآن او د سنت په بيخ کښ پټه مسئله پرې راظاهر وي کما يقال القياس مظهر لا مثبت زمانږ لامذهبيت ته چلينج دی چې د فقهې حنفي صرف يوه داسې مسئله دی راوښائې چې د غير متعارض آيت اويا د غير متعارض حديث ځخه مخالفه وي.

## اووم دليل

لامذهبه خناس ليکي چې: يوم تقلب وجوههم في النار يقولون ياليتنا اطعنـا الله واطعناالرسـول وقالواربنا انا اطعنا سادتنا وكبرا نا] (ص ١٣٩ طبع دويم ص ٢٨ طبع اول ص ٣٢ طبع ٢٠١١ )

(۱) لامذهبـه خناسـه! پـدې آيـت کـښ خـو د الله تعـالى او د رسـول الله ﷺ پـه مقابـل کـښ د مشرانو د تقليد ذکر شوې دي ،او د امامانو مقلدين ټول پدې متفق دي چې د نص په مقابل کښ مونږ د هيچا تقليد نه کوو او د امام صاحب رحمه الله هيڅ قول هم د غير متعارض نص ځخه ندی مخالف.

لامذهبـه خناسـه! تا امامـان د الله تعـالى او د رسـول الله ﷺ سـره مقابلـه کـونکي وګـرزول حالانکه امامان د الله تعالى او د رسول الله ﷺ د حکمونو پابند او د هغې تشريح کونکي دي.

(۲)لامذهبه خناسه! پدي آیت کریمه کې خو تقلید مذموم ذکر شوی دی چې هغه د نص په مقابل کې دبل چا تقلید وي او همدارنګه د غیر مجتهد تقلید دی، لکه ته چې د ابن القیم او د شوکاني پسې روان یئ.

(۳)لامذهبان خناس دی دا ثابته کړي چې د کفارو مشران مجتهدین وو. نور تفصیل د دوهم دلیل لاندې تیر شوی دی. (دلامذهبه خناس خبط، کما یتخبطه الشیطن من المس)

لامذهبه په اول چاپ کې داسې لیکلي دي چې: نو دا مقلد که په قرآن او حدیث نه پوهیږي او تابعداري کوي نو هدایت والا شو، نو بیا مقلد نه شو، او که په قرآن او په حدیث نه پوهیږي نو بیا دا جاهل دی ګمراه دی، دده په خپل اقرار سره. [التحقیق السدید ص ۲۹ طبع اول].

(۱)لامذهبه خناس د هغې سړي په باره کې چې په قرآن او په حدیث نه پوهیږي یو ځلې وایي چې د هدایت والا شو او بل ځلی وائې چې دا جاهل دی ګمراه دی.

(۲)لامذهبه خناس لیکي چې (که په قرآن او حدیث نه پوهیږي او تابعداري کوي نو دا هدیات والا شو نو بیا مقلد نشو) نو چې تابعداري کوي دا څرنګه مقلد نه شو؟ تقلید خو همدې ته وایې چې ناپوهه سړی د پوهه سړي تابعداري وکړي او تا لیکلي دي چې مقلد نشو.

(۳)لامذهبه خناس لیکلي دي چې (او که په قرآن او په حدیث نه پوهیږي نو بیا دا جاهل دی ګمراه دی) لامذهبه خناس جاهل او ګمراه مترادفین کړه، نو ټولو امیانو ته یې ګمراهان وویل لامذهبه خناسه! هر امتي ضال او ګمراه ندی بلکه ګمراه هغه څوک دی چې نه په خپله پوهیږي او نه د بل پوهه پسې ځي لکه ته او ستا ډله.

(۴)لامذهبه خناسه! داسې لیکل پکار وو چې که په قرآن او سنت په خپله پوهیږي یعني مجتهد وي او یا په خپله نه پوهیږي لکن د بل پوهه پسې روان وي، نو دا دواړه د هدایت والا شو، او که نه په خپله پوهیږي او نه د بل پوهه پسې روانیږي لکه ته او ستا ډلګی نو دا جاهل او ګمراه دي.

(۵)لامذهبه خناس په دویم چاپ کې عبارت بدل کړی دی او په اوله جمله کې یې د (نه) لفظ وران کړی دی او داسې ئې لیکلي دي چې: (نو دا مقلد که په قرآن او حدیث پوهیږي او تابعداري کوی نو هدایت والا شو او بیا مقلد نشو).

نو لامذهبه! مقلد یعنې د تابعداري والا څرنګه مقلد نشو؟ همدارنګه چې په قرآن او په حدیث پوهیږي نو ستا د مزاج مطابق، تابعداري ولې کوي؟ همدارنګه که یو سړی په قرآن او په حدیث پوهیږي

او يو ايت اويا يو غير معارض حديث ورته ملاو شو نوپدي کې خو تقليد ته ضرورت نشته لکن که په قرآن اوپه حديث پوهيږي ليکن پدوي کښې صراحةً حکم ملاو نشو نودا به بيا څه کوي؟

## اتم دليل

لامذهبه خناس ليکي چي ( اذتبرالذين اتبعوامن الذين اتبعوا. الايه)

(۱) لامذهبه خناسه! تاخو ليکلي دي چي داتباع او دتقليد په مينځ کښې فرق دی ص ۱۷۹ دريم چاپ) اوپدې آيت کريمه کښې تقليد ندی ذکر شوی بلکه اتباع ذکر شوی ده، نو دا آيت کريمه خوپه تقليد باندې رد ندی بلکه په اتباع باندې رد دی.

(۲) پدي آيت کې دغير مجتهد په تقليد باندې رد دی.

(۳) پدي آيت کې په هغه تقليد باندې رد دی چې په عقايدو کې وي، او نور تفصيل د دوهم دليل لاندې تير شوی دی.

(۴) لامذهبه خناس دلته د ابن قيم رحمه الله حنبلي مقلد او د ابن عبد البر مالکي رحمه الله مقلد اقوال رانقلوي حالانکه دا دواړه په خپله مقلدين دي.

(۵) لامذهبه خناسه! ددې دواړو دخبرې منل تقليد دی او که نه؟

## نهم دليل

لامذهبه خناس ليکي چي : واذا قيل لهم تعالوا الى ماانزل الله والى الرسول رأيت المنافقين يصدون عنك صدوداً .{ص ۱٤۳ طبع دويم ص ۳۰ طبه اول ص ۳۵ طبع اول ۲۰۱۱}

لا مذهبه خناسه! دا آيت په مونږ باندې رد ندی ځکه چي زمونږ امامان او دامامانو په راهنمايي دامامانو مقلدين دټولو څخه مخکې همدا چغه وهي چې ( تعالوالي ماانزل الله ) او که هلته حکم پيدا نشو نو بيا داسې چغه وهي چې (تعالواالي الرسول ) او که پدي دواړو کې حکم پيدا نشو نو بيا د حضرت معاذ رضي الله عنه او دنورو متواترو احاديثو مطابق داسې چغې وهی چي (تعالواالي الاجماع والقياس)

۲-ما انزل الله ،او، الى الرسول ، منصوصات دي او اختلاف په اجتهادياتو کې دی.

## لسم دليل

لامذهبه خناس ليکي " افلا يتدبرون القرآن ام علي قلوب اقفالها"ص ۱٤۳ طبع دويم ص ۳۱ طبع اول ص ۳٦ طبع ۲۰۱۱

(۱)لامذهبه ! دادلیل دی دخپلو مشرانو ورونړو اهل قرآنو څخه راپټ کړی دی ځکه چې هغوي دانکاردحدیثولپاره همدا آیت په دلیل کې پیش کوي.

(۲)لامذهبه خناس لیکي چي پدیکې دمجتهد څه تخصیص نشته، مطلب یې دا شو چي په عامي باندي هم استنباط لازم دی حالانکه دا تکلیف بما لا یطاق دی.

## دغیر مقلدینو بل دلیل:

لامذهبه خناس (نیازمحمد) لیکي دریم دلیل عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه لایقلدن احدکم دینه رجلاً ان امن امن وان کفر کفر الخ (عبدالله بن مسعود فرمائی چې یو کس دی په تاسو کې پخپل دین کې تقلید نکوي دسړو که هغه مؤمن شي نو دی هم مؤمن کیږی او که هغه کافر شي نو دی هم کافر کیږی. (التحقیق السدید ص ۱۴۹ دوهمه چپائی].

**اول جواب :** (بی نظیره یهودیت)

لامذهبه داحدیث دومره ندی څومره چې تا رانقل کړو بلکه پدې حدیث کې دا الفاظ هم شته چې (وان کنتم لا بدمقتدین فاقتدوا بالمیت فان الحی لایؤمن علیه الفتنة) (مجمع الزواید،باب فی القیاس والتقلید ج/۱ ص ۱۸۰ دارالفکر.

**دوهم جواب:** پدې حدیث کې دایمانیاتو ذکردی (ان امن امن و ان کفر کفر) اوتقلید په غیرواضحو مسایلو کې کیږي ایمانیات خوټول منصوصي غیر متعارض او غیر محتمل التاویل یعنې واضح مسایل دي

## وهابیت

وهابیت د دولسمې صدی فتنه ده ، ددې فتنې باني محمدبن عبدالوهاب النجدي دی، چې په (1111) هجري کې پیدا شوی دی، دده تعلق دبني تمیم دقبیلې سره دی، ده په حرمینو کې علم حاصل کړی دی، دده په استاذانو کې شیخ محمدبن السلیمان الکردي الشافعي اوشیخ محمدحیات السندي هم شامل دي، احمدبن زیني الدحلان فرمایي: وکان الشیخان المذکوران وغیرهما من أشیاخه یتفرسون فیه الالحاد والضلال، ویقولون: سیضل هذا ویضل الله به من ابعده و اشقاه، فکان الأمر کذلک وما اخطأت فیه فراستهم .یعنې دې دواړو استاذانو په محمدبن عبدالوهاب نجدي کې الحاد

او گمراهي ليدله وفرمایل به يې چې زړدی چې دی به پخپله هم گمراه شي او ډېر بدبخته به نوږهم دده په لاس گمراه شي، چې بيدا همداسې وشول، او ددوی فراست دده په باره کې خطا نشو، همدارنگه فرمايي: وكان والده عبدالوهاب من العلماء الصالحين فكان ايضا يتفرس فی ولده المذكور الالحاد ويذمه كثيرا ويحذرالناس منه ، همدارنگه دمحمدبن عبدالوهاب نجدي پلار عبدالوهاب دنیکو علماؤ نه ؤ، ده به هم دخپل زوی په باره کې د الحاد پیش گوئي کوله او خلک به يې دده نه وېرول، همدارنگه ليکي چې اخوه سليمان بن عبدالوهاب فكان ينكر ما احدثه من البدع والضلال والعقائد الزائغه وقد الف كتابا فی الرد عليه ، دده ورور سليمان هم دده بدعت او گمراهي خوښ نه گڼل او ددده په خلاف يې يو كتاب هم ليكلی دی. (الدرر السنية ص ۴۲) ددې فرقې دباني نوم محمد دی، ليکن نسبت يې پلار يعنې عبدالوهاب ته کېږي، اگر چې پلار يې ډېر نېک او صالح سړی ؤ، لکه دامام بخاري نسبت چې جعفي ته کېږي، ځکه چې دامام بخاري پلار اسماعيل ؤ او داسماعيل پلار ابراهيم نوميدو او ابراهيم پلار مغيره دجعفي په لاس مسلمان شوی، دې فرقې به ځانونو ته حنابله ويلې، لكن دحنابله وو په خلاف يې ډېر شاذ او خطرناک عقايد لرل، لکه :

۱- زيارة النبي يې شرک گڼلو.

۲- استشفاع بالنبي يې شرک گڼلو.

۳- دسماع النبي عندالقبر عقيده يې شرک گڼله.

۴- دتجسيم عقيده يې لرله.

۵- ددين په امورو کې يې دعقل طرف ته رجوع نه منله.

۶- داجماع او دقياس څخه منکر وو.

۷- خپلو مخالفينو ته به يې کافران او مرتدين ويلې.

۸- له ايصال الثواب څخه منکر وو.

۹- خلک به يې د درود څخه منع کول.

۱۰- د دلائل الخيرات وغيره د درود د کتابونو څخه به يې خلک منع کول.

۱۱- خپله ډله به یې د تفاسیرو او د امامانو دکتابونو د مطالعې څخه منع کوله.

۱۲- رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به یې صرف ډاکي (پوسته رسان) ګڼلو.

وغیره... (شواهد الحق ص ۱۵۶، ص ۱۸۹، الدرر السنیة ص ۴۰، الفجر الصادق ص ۱۶.

## دمحمدبن عبدالوهاب دحکمرانۍ مختصر تاریخ

محمدبن عبدالوهاب دخپلې بدعتي عقیدې دترویج لپاره یوڅو کسان د ځان سره ملګري کړل او کوشش یې کولو چې داسلحې په زور په خلکو باندې خپل عقاید و مني، د ډېرو جنګونو څخه وروسته په ډېرو قبایلو دده حکومت راغی، تردې چې دشام ترحدودو پورې ورسید، په سنه (۱۱۶۵ھ) کې یې دخپلې عقیدې یوڅو علماء حرمینو شریفینو ته ولېږل چې هلته هم دخپلو عقایدو اشاعت وکړي، لېکن هلته ورسره دحرمینو علمآؤ بحث او مناظرې وکړې، وهابیانو یې په دلایلو ملامته کړل، په هغه وخت کې به مکه مکرمه باندې دشریف مسعود امارت ؤ، شریف مسعود ددې خلکو دنیولو حکم صادر کړو، بعضې یې ونیول او بعضې وتښتیدل، کله چې وهابیان ددې واقعې څخه خبره شول، نو سرکشي یې نوره هم زیاته شوه او دمکې مکرمې په خوا او شا قبایلو باندې یې حملې شروع کړې، په سنه (۱۲۰۵ھ) کې یې دمکې مکرمې د امیر شریف غالب سره هم جنګ وکړو چې ډېر خلک په کې مړه شول، بیا په سنه (۱۲۰۶) هجري کې محمد بن عبدالوهاب مړ شو، لېکن تر دغه وخته پورې یې غټه ډله جوړه کړې وه او په ډېرو خلکو کې دده دبدعاتو زهر ننوتي ؤ، وهابیانو په (۱۲۱۷ھ) کې طایف محاصره کړو بیا یې ښځې او ماشومان قتل کړل، مالونه یې ورته لوټ کړل، ډېر لږ خلک تر ښه بچ شول، کله چې دمکې مکرمې امیر ددوی دمقابلې څخه عاجز شو، نو مکه مکرمه یې پرېښوده او جدې ته وتښتید، وهابیان په (۱۲۱۸ھ) کې مکې ته داخل شول، پوره څوارلس ورځې یې په خلکو باندې توبې وېستلې او دایمان تجدید یې ورباندې کولو او په زور باندې یې خپلې عقیدې پرې منلې. شریف غالب په جده کې یو څلي ځان تیار کړو مکې ته راغلو او د اته ورځې جنګ څخه وروسته یې شکست وخوړلو او واپس جدې ته لاړ، یوه میاشت وروسته بیا د ډېر زور سره راغی او وهابیان یې دمکې څخه وشړل، وهابیان چې دمکې څخه وتښتېدل، نو دهغو قبایلو سره یې جنګونه شروع کړل چې دحکومت په قبضه کې ؤ، تر دې چې طایف یې ونیولو، بیا یې په سنه (۱۲۲۰ھ) کې د بل ځل لپاره په مکه مکرمه حمله وکړه تر ډېرو ورځو پورې یې مکه

مکرمه محاصره کړې وه، تردې پورې چې خلکو به د ولږې څخه دسپيو غوښې خوړلې، دمکې مکرمې امير مجبور شو او صلحه يې ورسره وکړه، دصلحې په وخت کې يې شريف غالب په خپل امارت باندې پرېښود، بيايې په مدينه منوره باندې هم قبضه وکړه، هلته يې مبارک ابن سفيان اميرکړو، تر اوو کلونو پورې يې په حرمينو باندې حکومت وکړو، په دې وختونو کې يې دشام او مصر خلک دحج څخه منع کړل، دقبرونو ګنبدې يې ونړولې...

داهغه وخت ؤ چې عثماني خلافت دنصاراوو سره په جنګ مصروف ؤ، وهابيت ددې مصروفيت څخه استفاده کوله او داخلي مشکلات يې جوړول، کله چې عثماني دولت دعيسايانو سره دجنګ نه فارغ شول، نو په سنه (۱۲۲۶ھ) کې سلطان محمدعلي باشاه دوهابيانو دمقابلې دپاره دخپل زوی طوسو باشاه په قيادت کې ولېږلو لکن دا لښکر اکثر قتل شو او شکست يې وخوړلو، بيا په سنه(۱۲۲۷ھ) کې خپله محمد باشاه ديو لوی لښکر سره راغلو مدينه اوجده يې او ډېر قبايل يې بې جنګه فتحه کړل.

او دا ټوله فتح دشريف مکه دتدبير نتيجه وه چې دوهابيانو سالار ته يې يولک رياله او ورو افسرانو ته يې اتلس زره رياله ورکړي وو، کله چې دا لښکر جدې ته ورسدلو، نو دمکې دمعظمې څخه دوهابيانو لښکر پخپله وتښتيدلو، محمدعلی مکې ته راغلو دمکې امير شريف غالب يې ونيولو مصرته يې ولېږلو، او دمدينې منورې وهابي اميريې قسطنطنې ته بوتلو او هلته يې قتل کړو، همدارنګه يې دطايف وهابي امير هم قتل کړو، شريف غالب يې په پوره حترام سره پرېښودلو، چې بيا په سنه(۱۲۳۰ھ) کې وفات شو.

بيامحمدعلي دوهابيانو تعقيب لپاره لښکر تيارکړو، په تربت، بلاغامد، زهران، کې ډېر وهابيان ووژل شول، محمدعلي تريوکال او اوو مياشتو پورې په حرمينو کې پاتې شو کله چې حالات برابر شول نو په (۱۲۳۰ھ) کې بېرته مصر ته راغلو.

پدغه وخت کې صرف په (دريمه) کې دوهابيانو امير پاتې ؤ چې عبدالله بن مسعود نومېدلو، لکن په سنه (۱۲۳۲ھ) کې ابراهيم باشاه چې دمحمدعلي باشاه زوی ؤ، پدې حمله وکړه.اوعبدالله بن مسعود ته يې شکست ورکړو. (الدرر السنية ص ۴۳، ۴۴ لاحمد بن زينی دحلان محمد عبدبن عبدالوهاب) د ابن تيميداو ابن الجوزي څخه ډېر متأثره ؤ او دهمدوی دعقيدو اشاعت يې کولو.

د ابن تیمیه اصل نوم ابوالعباس احمد بن عبدالحلیم بن عبدالسلام ابن تیمیه دی په (۶۶۱ھ) کې پیدا شوی دی او په (۷۳۸ھ) کې وفات شوی دی، الفواید البهیة ص۱۸ و ابن تیمیه هم عصر د علامه تقي الدین سبکي دی چې اصلي نوم يې علي بن عبدالکافي دی، علامه سبکي په ابن تیمیه ډېر ردونه کړي، مولانا عبدالحي رحمه الله فرمایي: د سبکي ردونه صحیح وو (الفواید البهیه ص ۷۰)

محمد بن عبدالوهاب نجدي د اهل سنت والجماعت څخه وتلی وو او د خوارجو څخه وو د مسلمانانو وژل يې مباح ګڼل او د مسلمانانو مالونو ته يې غنیمت ویلو، علامه شامی فرمایي: کما وقع فی زماننا فی اتباع محمد بن عبدالوهاب الذین خرجوا من نجد وتغلوا علی الحرمین الشریفین، وکانو ینتحلون مذهب الحنابلة، لکنهم اعتقدوا انهم هم المسلمون، والمخالف منهم مشرک، واستباحوا قتل اهل السنة والجماعت وقتل علمائهم حتی کسر الله شوکتهم الخ.

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَاۤءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ. [الآية].

# لامذهبه اهل حديث که شیعه گان او قادیانیان

[illegible]

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لانبی بعده

امابعد!

دتحریک اهل حدیث ابتداء دهندوستان څخه شوې ده او دهغې ځای څخه پاکستان او افغانستان ته رسیدلې ده، په دې ملکونو کې اهل حدیث درفض او دتشیع څخه بغیربل حقیقت نه لري.

دوي چې ځان ته اهلحدیث وائي نود دې بل هیڅ حقیقت نه شته سوی ددینه چې دوي دفقهې څخه منکردي، دفقهې څخه انکار ته اهلحدیث وائي لکه. ددوي مشران ورونه چې د حدیثو څخه منکر دي اوحدیثو څخه انکار ته اهل قرءان وائي په هندوستان کې د اهلحدیثو دتحریک باني عبد الحق بنارسي اونذیر حسین دي دټولو څخه مخکې ددوي حدود اربعه مطالعه کړی.

**مولوی عبدالحق بنارسي اوقاضي شوکاني:** عبد الحق دهندوستان اوسیدونکی وو، اودهندوستان دعلماؤ څخه علاوه یمن ته هم تللی وو، اودقاضي شوکاني څخه یې علم حاصل کړی وو قاضي شوکاني زیدي شیعه وو.

دقاضي شوکانی دشیعه والي ثبوت دده دتفسیرفتح القدیرپه مقدمه کې داسې درج دی: ( تفقـه علي مذهب الامام زيدوبرع فيه والف وافتي حتي صارقدوة فيه وطلب الحديث وفاق فيه اهل زمانه حتي خلع ربقة التقليدوتحلي بمنصب الاجتهاد) [فتح القديرللشوكانى ص٥].

یعنې ده دامام زید دمذهب مطابق فقهه ولوستله، تردې پورې چې په دې کې پوره امام شو، بیا یې تالیفات شروع کړل، اوفتوی یې ورکولې، تردې چې یوه نمونه ترینه جوړه شوه، اودعلم الحدیث طلب

يې وکړو، او په خپلو همزولو ورته فوقيت حاصل شو، تردې چې دخپلې غاړې څخه يې دتقليد رسۍ لرې کړه. اوداجتهاد په منصب باندې بناپسته شو.

په مقدمه کې يو ځوليكي لاندې داسې عنوان ليكل شوى دى چې: (بعض تلاميذه الذين اخذواعنه العلم) ددې عنوان لاندې يې ليكلي دي. اخذعنه العلم ... الشيخ عبدالحق ابن فضل الهندى. (مقدمه فتح القدير مصرى، ص ۵).

يعنې ددې زيدى شيعه څخه عبدالحق هم علم حاصل كړى دى، دبل لوى غيرمقلد شيخ الكل عندهم نذيرحسين دهلوي خوسرميا عبدالخالق دعبدالحق بنارسني په باره كې داسې ليكي چې (عبدالحق بنارسي چې دغيرمقلدينو دفرقې باني دى دخپل عمرپه مينځنى حصه كې شيعه شوى وو) (تنبيه الضالين، ص ۳)

لوى غيرمقلد نواب صديق حسن خان ليكلي دي چې: در اوسط عمر بعض عقايد ايشان وميل بسوى تشيع وجزءان معروف است. (سلسة العسجد).

## دعبدالحق بنارسی علی الاعلان شیعه والی:

دشاه محمداسحق رحمه الله شاګرد قاري عبدالرحمن رحمه الله محدث پاني پتي فرمائي: مولوي عبدالحق ډيروخت وروسته مولوي ګلشن علي شيعه ته ورغلو، اوورته وي ويل چې زه شيعه يم، اونن په ښكاره شيعه يم، مادعمل بالحديث دپردې لاندې ډيرخلك دمذهب قيد څخه ازاد كړل. اوس دهغوى شيعه والې ډيراسان دى. بيامولوى ګلشن على ورته دمياشتې ديرش روپې تنخوا مقرره كړه. (كشف الحجاب ص ۲۱)

نومحترمو! دلامذهبو په رافضي والى او شيعه والې كې دفكراودتامل ضرورت نه شته، ځكه ذدوي دفرقې دباني شيعه والى على الاعلان ثابت شو، دكومې ډلې باني چې شيعه وي هغه ډله به څرنګه اهل سنت شي؟

## د غیرمقلدیت د باني عبدالحق بنارسي دشیعه والي یوبل ثبوت:

دشاه محمد اسحق رحمه الله شاگرد محدث پاني پتي لیکي :

مولوی عبدالحق زما په مخکې وویل چې عایشه رضی الله عنها د حضرت علی ﷺ سره جنگیدلې ده که توبه یې نوي ایستلې نو مرتده مړه شوې ده، (معاذالله) او په بل مجلس کې یې وویل: چې د صحابه وو علم زما د علم څخه ډیر کم وو، ځکه چې په هغوي کې هریوته پنځه پنځه حدیثونه یادوو او ماته د دوي ټول حدیثونه یاد دي. (کشف الحجاب، ص ۲۱)

## دمشهورغیرمقلدمولوی عبد الاحدخانپوري تبصره

ددې زمانې دروغژن اهلحدیث، بدعتیان، دسلفوصالحینو مخالفین، دشیعه گانو اود روافضو وارثین دي. لکه څرنگه چې مخکې شیعه گان دکفراو دمنافقت لپاره دروازې وې، همدارنگه ددې زمانې جاهله بدعتي اهلحدیث دکفر اود الحاد دروازې دي. (کتاب التوحید والسنة فی رداهل الالحادوالبدعة، ص ۲٦۲ قاضی عبدالاحد خانپوری).

## دمشهورغیرمقلدعالم نواب صدیق حسن خان تبصره

کوم کسان چې داخرت علماء دي نو هرڅوک چې ددوي غیبت کوي، په دوي باندې لعن او طعن وائي دادرافضیت بوي دی، داهل سنت والجماعت مذهب هیڅکله نه دی. (ماثرصدیقی ،ج ۴ص ۲۳)

## دقصص الاکابر اقتباس چې غیر مقلدین واړه رافضیان دی

دسیداحمدشهید رحمه الله په قافله کې دامشهوره وه چې غیر مقلدین واړه روافض دي. (قصص اکابر،ص ۲٦).

## دغیرمقلدینو دشیخ الکل میانذیرحسین فتوی چې غیرمقلدین روافض دي:

څوک چې داامامانو ددین بی ادبي کوي هغه روافض یعنې دشیعه ګانو څخه دي. (تاریخ اهلحدیث، ص ۷۳ ازمولوی ابراهیم السیالکوتي) دایمه وودډین توهین خصوصاً په امام ابوحنیفه پسې بدردویل دغیرمقلدینو وظیفه ده.

## دمحدث پاني پتي مولنا قاری عبدالرحمن تبصره

### دروافضو ټولې علامې پدې فرقه کې موجوددي:

(۱) روافض دشلورکعتوتراویحو څخه انکارکوي، اوبدعت ورته وائي، دغیرمقلدینوهم همدا مشن دی.

(۲) دضادمعجمه په ځای ظاویل دایران دروافضومشن دی، چې غیرمقلدین یې هم چلوي.

(۳) کله چې دغیرمقلدینو څخه پوښتنه وشي چې په کوم مذهب یې؟ هغه ورته وائي چې محمدی یم، همدا قول دروافضوهم دی، چې مذهب اودین یوګڼي، حالانکه دین دټولو مسلمانانو یودی اومذاهب مختلف دی، لکه دڅلوروکسانو په مینځ کې چې یوکورمشترک وي او لارې ورته څلوروي، نوهریوبه بیله لاره همدې کورته راځي، څوک دمشرق څخه، اوڅوک دمغرب څخه، او څوک دشمال څخه، اوڅوک دجنوب څخه.

دمذهب معنی لاره ده اولارې مختلفي کیدلی شي مګرمنزل یووي، نومحمدي مذهب نه دی، بلکه منزل دی، اوس ددین معروفې اومشهورې لارې څلوردي، حنفي، مالکي، شافعي اوحنبلي، څوک چې ددې مشهورولاروڅخه بغیرپه بله غیر مشهوره لاره ځي نود هغه رسیدل ترمنزل مقصودته پورې یقیني ندي، شاه عبدالعزیزرحمه الله فرمائی (نبی علیه السلام صاحب شریعت است نه صاحب مذهب، زیراکه مذهب نامی راهی است که بعض امتیان رادرفهم شریعت کشاده شود، وبعض خودچندقواعد مقرر کنند، که موافق ان قواعداستنباط مسائل شرعیه ازماخذان نمایند

ولهذا محتمل صواب و خطامی باشد. ولهذا مذهب رابسوی خدا وجبرئیل ودیگرملایکه نسبت کردن کمالی بی خردي است. [تحفة اثناعشریه،ص۱۰۹].

نو داسې به ویلی شي چې دا د الله دین دی او داسې ویل چې دا د الله ، یاد رسول الله، یاد جبرئیل علیه السلام مذهب دی کمال حماقت دی، ځکه مذهب دهغې لارې نوم دی چې د شریعت د فهم لپاره بعضې امتیانو ته مکشوفه شوي وي .

چې امتیـان پخپـل عقـل یو څو قواعـد مقرر کړي او د دې قواعـد و مطابق شرعي مسـائل د دوي مأخذ یعنې د قران او د سنت او د اجماع او د قیاس څخه را وباسي، فلهذا د دې مسایلو په را ایستلو کې د خطاء او د ثواب دواړو احتمال شته، لـه همدې وجهې الله تعالی، او رسـول الله ﷺ او جبرئیـل علیه السلام ته د مذهب نسبت کول ډیر سخت جهالت دی .

(۴) اهل سنتو ته دحنفي، یاشافعي، یامالکي، یاحنبلي کیدلو په وجه مشرک ویل عین د روافضو قول دی [تحفة اثناعشریه ص:۱۰۹]

(۵) دسنن ماثوره وو پریښودل عین د روافضو قول دی .

(٦) بلاعذره جمع بین الصلواتین عین د روافضو مذهب دی .

(۷) دامین بالجهر دیو حدیث لـه وجهی د قرءان پریښـودل عین د روافضو قول دی ، چې دا ټول دلامذهبو اقوال هم دي . (کشف الحجاب ص ۲۱ و ص ۲۲) .

(۸) دشیعه ګانو په نیز متعه حلاله ده او د غیرمقلدینو لوی مصنف او محدث وحید الزمان هم ورته حلاله وائي . (نزل الابرار، ج ۲ص ۳۳) (هدیة المهدی ،ص ۱۱۲ ج ۱ مصنف وحید الزمان )

(۹) لوی غیرمقلد وحید الزمان د شیعه ګانو په شان په پښو باندې د مسح قایل دی . (نزل الابرار ج ۱ص ۱۳) او داسې یې لیکلي دي .

وهو المنقول عن عکرمه ووجدنافي کتب الزيدية والامامية الراويات المتواترة عن ائمة اهل البيت تشعر بجوازالمسح . (نزل الابرار، ص ۱۳ ، ج ۱)

اوپه پښو باندې مسح کول د حضرت عکرمه ﷺ څخه نقل دي او مونږ د زيدي او امامي شيعه ګانو په کتابونو کې د اهل بيتو څخه متواتر روايات موندلي دي چې د پښو د مسح جواز ترينه ثابتيږي.

(۱۰) وحيدالزمان ليکي چې د (حی علی الفلاح) څخه وروسته د (حی علی خيرالعمل) ويل جايز دي.

ولوزادبعدالحيعلتين حي علي خيرالعمل فلاباس به . (نزل الابرار، ج ۱ ص ۵۹)

(۱۱) - غيرمقلد وحيدالزمان ليکي : لا يفسد ماءالبيرولوکان صغيراً والماء فيه قليلا بوقوع النجاسة . (نزل الابرار، ج ۱ص ۳۱ ) يعنې د کوهي اوبه د نجاست د غورزيدلو په وجه نه نجسيږي اګرچې کوهي وړوکې وي او اوبه هم په کې کمې وي او شيعه ګان ليکي :

(فان وقع في البيرزنبيل من عذرة رطبة اويابسة اوزنبيل من سرقين فلاباس بالوضوء منهاولا ينزع منهاشئ (من لا يحضره الفقه ص ۵) يعنې که يوه ټوکرې نجاست وچ وي يا لوند چې په کوهي کې وغورزيدلو کوهي نه نجسيږي .

(۱۲) شيعه ګان ليکي : وعن ابي جعفرعليه السلام انه قال في رجل زنابام امرأته اوبابنتهااوباختهاالا يحرم ذلک عليه امرته . (فروع کافی ،ج ۲ص ۱۷٤ ) يعنې د خواښې سره په زناکولو ښځه نه حراميږي. اوغيرمقلد ليکي : (وکذلک لوجامع ام امراته لا تحرم عليه امرأته.(نزل الابرار،ج ۲ص ۲۸ ) يعنې د خواښې سره په زناکولو ښځه نه حراميږي .

(۱۳) شيعه ليکي : عن ابي عبدالله عليه السلام سالته عن الدلک قال ناکح نفسه لاشئ عليه)(فروع کافی ج ۲ص ۲۳٤). يعنې موټک (مشت زنی) جائزه ده .

غيرمقلد ليکي : ( وبالجمله استنزال منی بکف ... مباح است. (عرف الجادی ص ۲۰۷)

(۱۴) شیعه لیکي : دخنزیردویښتانو څخه په جوړې شوې رسۍ باندې دکوهي څخه اوبه راویستل جایزدي . غیرمقلدلیکي : وشعرالمیتة والخنزیروکذاعظمهاوعصبها وحافرها وقرنها. (نزل الابرارج اص ۳) یعنې دمردارحیوان ویښته او دخنزیرهډوکي اوپلې اوسومان او ښکرونه پاک دي .

(۱۵) په جمع بین الصلوتین کې دغیرمقلدینو او شیعه گانو موافقت ، لوی غیرمقلدوحیدالزمان په هدیة المهدی کې لیکي : الجمع بین الصلوتین عن غیرعذرولاسفرولامطرجایزٌعنداهل الحدیث والتفریق افضل واشترط بعضهم ان لایتخذوه عادة ورواه امامیة في کتبهم عن العترة الطاهرة .(هدیة المهدی ،ج ۱ص ۱۰۹)

یعنې دغیرمقلدینوپه نیزبغیردعذر،بغیردسفر،اوبغیردباران څخه دوولمونځونویوځای کول جایزدي اوتفریق افضل دی . او بعضوداشرط لګولی دی چې خلک به ددې څخه عادت نه جوړوي . اوهمدغه جمع بین الصلوتین امامیة وو شیعه گانوهم په خپلو کتابونو کې د اهل بیت څخه روایت کړی ده .

(۱٦) په وطی فی الدبرکې دشیعه گانو او دغیرمقلدینو موافقت

شیعه گانو لیکلي دي: سالت اباعبدالله علیه السلام عن الرجل یاتي المراة في ذلک الموضع ... فقال لاباس به . (الاستبصار،ج۲ ص ۱۳۰) یعنې دخپلې ښځې سره وطی فی الدبرجایزه ده.

او غیرمقلد وحیدالزمان دبخاری شریف ،ج ۲ص ۳۸ وص ۳۷ ) باندې د(نِسَاءُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ)په حاشیه باندې لیکي چې: په روایت کې ددې صراحت موجوددی چې داایت دوطی فی الدبرپه باره کې نازل شوی دی .دابن عمرﷺ څخه ددې اباحت منقول دی ...اوامام مالک اوامام شافعی هم ددې قایل دي ...داایت دوطی فی الدبرپه باره کې نازل شوی دی ...د اهلحدیثو یو جماعت لکه بخاري، زیلعي،بزاز،نسائي،اوبوعلي نیشابوري په دې طرف دي چې دوطی فی الدبرممانعت په هیڅ حدیث کې ندی ثابت. غیرمقلدپه نزل الابرار،ص ۱۲۳ ،کې هم ددې دجواز فتوی ورکړی ده .

(۱۷) سپي ته غیرمقلدین او شیعه ګان پاک وائي. (نزل الابرار، ج ۱ص ۳۰، دغیرمقلد کتاب) (فروع کافی، ج ۱ص ۴ دشیعه وو کتاب)

(۱۸) په یو وخت کې درې طلاقه یو حسابیږي دا دغیرمقلدینو او شیعه وو مشترک مسلک دی.

(۱۹) درجعت په مسئله کې موافقت: شیعه ګان وائي چې امام مهدی به ابوبکر ﷺ او عمر ﷺ اوددوی ملګري او حضرت عایشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راژوندي کړي، اوددوي په مقابل کې به حضرت علی ﷺ حسنین رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او شیعه ګان هم راژوندي کړي، بیابه دا ابوبکر ﷺ، عمر ﷺ اوددوي داتباعو اوداز اوجو جنډونه په ونو کې رازوړند کړي، او قسما قسم عذابونه به ورکړي، چې ددغې انتقامي منظرپه لیدلو به دشیعه ګانو زړه باغ باغ شي او غیرمقلد عالم ملامعین په خپل کتاب دراسات اللبیب، ص ۲۱۹ کې لیکلي دي: من مات علي الحب الصادق لامام العصر۔ المهدی علیه السلام ولم یدرک زمانه اذن الله ان یحیه فیفوز فوزا عظیمافي حضوره وهذه رجعته في عهده.

یعنې څوک چې دامام مهدی په محبت کې مړشي اوددهٔ زمانې ته ونه رسیږي نوالله به امام مهدی ته اجازت ورکړي چې دا راژوندي کړي پخپل دیداربه یې خوشحاله کړي، او دا دغه په زمانه کې رجعت دی.

(۲۰) دعصمت په عقیده کې دشیعه ګانو او غیرمقلدینو موافقت، حضرت شاه عبدالعزیز په تحفه اثناعشریه، ص ۳۵۸ مطبعه استنبول کې دشیعه ګانو عقیده داسې رانقلوي، شیعه خصوصا امامیه واسماعیلیه ګویند که عصمت از خطادرعلم واز ګناه درعمل یعنې امتناع صدور که خاصه انبیاء است شرط امام است.

یعنې امام دخطاء او ګناه څخه معصوم وي. او غیرمقلد ملامعین لیکي: دولس امامان اوفاطمة الزهراء معصوم دي [درساة اللبیب ، ص ۲۱۳]

(۲۱) داجماع اودقیاس څخه په انکار کې دغیرمقلدینو او شیعه ګانو موافقت

دحضرت ابوبکر صدیق ﷛ خلافت په اجماع ثابت دی لکن شیعه ګان ترینه منکر دي، دحضرت عمر ﷛ او دحضرت عثمان ﷛ خلافتونه په اجماع ثابت دي لکن شیعه ګان يې نه مني، نوشیعه ګان داجماع دامت څخه منکر دي.

همدارنګه شل رکعته تراویح په احادیثو او دحضرت عمر ﷛ په زمانه کې په اجماع ثابتې دي، لکن غیرمقلدین اوشیعه ګان يې نه مني، دحضرت عمر ﷛ په زمانه کې دقران او داحادیثو په رڼا کې په دې اجماع وشوه چې درې طلاقه درې دي، لکن غیر مقلدین اوشیعه ګان يې نه مني.

په نریو جرابو باندې په اجماع دټول امت مسحه کول حرام دي. (بدایع الصنایع، ج۱ ص ۸۳) لکن غیر مقلدین يې نه مني.

داجماع څخه دانکار په وجه مونږ شیعه ګانو ته ضال او مضل، جهنمي او حتی چې کافر وایو، لکن تراوسه دغیر مقلدینو سره داحتیاط څخه کار اخیستل کیږي، لکن که ددوي دسر زورې او دبې واګۍ همدا حال وي نو یو وخت به راشي چې دوي به هم په داسې ځای و دریږي لکه څرنګه چې دحق نواز شهید رحمه الله په کوششونو باندې نن شیعه ګان ولاړ دي.

(۲۲) د شرعي قیاس څخه غیر مقلدین او شیعه ګان منکر دي

علامه ابن تیمیه رحمه الله پخپل بې نظیر کتاب (منهاج السنة) کې د روافضو لاندیني اعتراض رانقل کړی دی کوم چې شیعه ګان په ډیر فخر سره رانقلوي (قال الرافضی وذهب الجمیع منهم الی القول بالقیاس، والأخذ بالرأی فادخلوا فی دین الله مالیس منه وحرفوا احکام الشریعة، واتخذوا مذاهبا اربعة لم تکن فی زمن النبی ﷺ .... قالوا ان اول من قاس ابلیس.) [منهاج السنة، ج۱ ص ۸۹]

یعنې روافض وایي چې ټول اهل سنت والجماعت دقیاس او عمل بالرأی قایل دي او په دې باندې دعمل کولو په وجه دوي دالله ﷻ په دین کې داسې خبرې داخلې کړې دي، چې مخکې په کې نه وې او دوی

دشریعت احکام بدل کړي دي، او څلور مذاهب يې جوړ کړي دي، چې نه د رسول اللهﷺ په زمانه کې وو، او نه د صحابه وو په زمانه کې ...او اول قیاس ابلیس کړی وو، بعینه همدا اعتراض غیر مقلدین هم کوي.

## دغیرمقلدینو مجتهد وحید الزمان:

بعضې صحابه وو ته يې فاسقان ويلي دي: ومنه تعلم ان من الصحابة من هوفاسق كالوليد ومثله يقال في حق معاوية وعمرو ومغيره وسمرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ يعني داپنځه صحابه فاسقان وو (معاذالله). (نزل الابرار، ج۳ص ۹۴ الحاشيه). د رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کلمې مونږ ليکلي دي، دوحيد الزمان بدبخته په کتاب کې نشته.

## وحیدالزمان دشیخینو دفضیلت قایل نه دی:

والامام الحق بعدرسول الله ﷺ ابوبكرثم عمرثم عثمان ثم علي ثـم الحسـن بـن علي ولا نـدري ايهم افضل عندالله.

يعنـې د رسـول اللهﷺ څخـه وروسـته امـام برحـق ابـوبكر دی، بيـا عمر﷛ دی، بيا عثمـان﷛ دی، بيـا علی﷛ دی، بيا حسـن بـن علـی﷛ دی، لکـن مونږ نـه پـوهيږو چـې پـه دوي کـې کـوم يو افضل دی . (نزل الابرار، ج ۱ص ۷).

## دوحید الزمان دمعاویة سره دشمني:

وحيـد الزمان دبخـاری شـريف متـرجم، ج ۵ص ۹۰(کـې ليکـي :چې دامير معاويـه) پـه زړه کې داهل بيتو سره هيڅ مينه او محبت نه وو، دده پلار ابوسفيان ټول عمر د نبي عليه السلام سره جنګيدلی وو.

په بل ځای کې يې ليکلي دي، چې تر قيامته پورې چې په اسلام کې څومره ضعف راځي دا د معاوية دلاسه دی. [حاشيه بخاری مترجم، ج٦ص٦١]

## دلامذهبومحدث وحیدالزمان اقراري شیعه دی

وحیدالزمان دبخاری په حاشیه ،ج٦ص ۱۹۳ دسورة حجرددې ایت: [صراط علی مستقیما](په حاشیه کې لیکي : ددې څخه مراد دي دعلی شیعه ګان او دده دوستان، او دده سره محبت کونکي، یاالله دقیامت په ورځ مونږ دشیعه ګانو په ډله کې راپورته کړې، همدارنګه دنزل الابرار په ،ج۱ص۷ باندې لیکي :اهل حدیث شیعه ګان دعلي دي. بعضې تقیه کونکي غیرمقلدین ساده مسلمانانو ته وائي چې مونږ داخبرې نه منو حالانکه ددې وحیدالزمان کتابونه ددوي دهرې کتابخانې او لایبریري زینت دی

## زمونږ دزمانې دغیر مقلدینو شیخ الکل نیازمحمد عرف امین الله پشاوري لیکلي دي :

(۱) چې دانبیا وو څخه هم کبیرې او هم زنا ده نو دانبیاوو څخه زنا کیږي. (معاذالله) (الحق الصریح ج۱ص۳۳٦) اوله چهپائی ، ص ۳۱۷ دوهمه چهپائی ] دباب الایمان بالقدر ، داتم نمبر حدیث تشریح.

(۲) دصحابه وو قول حجت نه دی .(الحق الصریح ج۱ص ۴۴) اوله چهپائی او په دوهمه چهپائی کې یې یوتکی په کې ورزیات کړی دی چې د صحابه وو قول مطلقاً حجت نه دی ، ص : ۴۰ دوهمه چهپایې ].

(۳) دالحق الصریح په څلورم جلد ، ص : ۱٦۳ کې یې لیکلي دي: ددې حدیث په تشریح کې چې درسول الله ﷺ ددې دعا الفاظ په کې راغلي دي چې ( اللّٰهُمَّ نقنی من الخطایا کما ینقی الثوب الابیض من الدنس ) . لامذهبه لیکي چې سپینه جامه یې ذکر کړه وجه یې داده چې په دې باندې خېرې زیات ښکاریږي اشاره ده دیته چې زه ډیر زر خیرنیږم په ګناهونو باندې او ایمان مې خرابیږي . [الحق الصریح ،ج ۴\ص ۱٦۳ اول چهاپ ] یعنې سید الانبیاء ﷺ هم په ګناهونو باندې خیرنیږي او ایمان یې خرابیږي ( معاذالله ).

(۴) په خپل تفسیر حکمت القران ، ص: ۳۹۴ کې د حضرت ادم علیه السلام په باره کې لیکي چې ( په دې کې من وجه دهغه تقصیر دی چې ولې خټو کې ګرزئ؟ او دفتنې ځای ته ولې حاضریږئ) [حکمت القران ،ص: ۳۹۴ ] یعنې پیغمبران هم دفتنو ځایونو ته ځي او تقصیر کوي ( معاذ الله ) .

(۵) په فتاوی الدین الخالص پښتو ، ج۲\ص ۲۲ کې حضرت عایشې رضي الله عنها ته بې وقوفه ویلې دي. [وکذا فی الحق الصریح ج۶\ص :۱۲۰]

(۶) - په الحق الصریح ،ج ۱۳\ص : ۷۶ کې یې لیکلي دي چې (دا اجتهاد دصحابي دی، مرفوع حدیث ورسره نشته نو په امت باندې حجت نه دی) ص :۷۶ باب المواقیت ؛ول فصل اول حدیث.

(۷) - په الحق الصریح ،ج۵\ص : ۹۸ کې دیو صحابي په باره کې لیکي چې نبی عليه السلام ورته اعادې حکم ځکه ونکړو چې کیدای شي چې هغه جاهل وو ، الحق الصریح اوله چهپائی .

(۸) په الحق الصریح ، ج ۵\ص: ۳۶۹ کې یې لیکلي دي: رسول الله ﷺ صحابه ووته وفرمایل چې (اوتروا یا اهل القران) یو اعرابی صحابی وویل : چې رسول الله ﷺ څه وایي ؟ رسول الله ﷺ ورته وویل چې (لیس لک ولاصحابک) دا ستا او ستا دملګرو لپاره نه دی ځکه چې جاهلانو ته ګوره او تهجد او وتروته.

(۹) په الحق الصریح ج۴\ص : ۵۲۰ کې یې یو صحابي ته جاهل ویلي دي . معاذالله .

(۱۰) داهل سنت والجماعت میوزک سنټر قصه خوانی پشاور څخه ده یوه کیسټ شایع شوېده چې اوس د هرچا سره په موبایل کې هم هغه اوازشته لامذهبه په هغه کې وایي : ( چې حضرت عمر رضي الله عنه پنځوس فتوی د قران او دسنت څخه خلاف ورکړي دي).

(۱۱) - عبادة اوشهوات نه جمع کیږي ( ص :۱۱۸) بیا لیکي چې : معصیت دوه قسمه دی. (۱) - معصیة اساسها الکبر. (۲)- ومعصیة اساسها الحرص والشهوة .

اولنی معصیت دابلیس دی ، او دوهم معصیت دادم عليه السلام دی . [حکمة القران : ص :۳۸۶]

## د لا مذهبو او روافضو له صحابه وو سره په دښمنۍ کې موافقت

۱- وحید ألزمان لیکي چې: په خطبه کې د خلفاء راشدینو د نومونو اخیستل بدعت دی. [هدیة المهدی / ص ۱۱۰].

۲-په (نزل الابرار /ج ۱/ص ۱۵۳) کې لیکي چې: په خطبه کې د خلفای راشدینو ذکر د سلفو صالحینو څخه نه دی ثابت، له دې وجهې ددې نه کول بهتر دي.

۳-د لامذهبو د مشهور مناظر محمد جوناګهړی په نیز خلفاء اربعه د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له حکم څخه نافرمانه وو. دی لیکي چې: دا څلور واړه خلفاء یقیناً چې د (اولی الامر) مصداق دي، په هره معنا سره یې چې واخلې، خو بیا هم هیڅ‌ډا د دوي تقلید نه دی کړی، بلکې د دوي له اقوالو څخه یې مخالفت کولو، کله چې به دوي د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د فرمان څخه مخالفت کولو. [طریق محمدی/ص ۲۶۱].

۴-همدا جوناګهړي د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه په باره کې لیکي چې: راشه! واوره صفا صفا او غټې غټې مسئلې داسې دي چې خضرت عمر رضی الله عنه په هغې کې غلطی کړي دي. [طریق محمدی/ص ۷۸/ناشر: مکتبه محمدیه لاهور].

بیا یې لس فقهي مسئلې لیکلي دي او ویلي یې دي چې: دغه غټې غټې شرعي مسئلې چې روزمره تکراریږي بیا هم د حضرت عمر رضی الله عنه څخه پټې پاتې شوي دي. [طریق محمدی/ص ۷۹].

۵-حضرت عمر رضی الله تعالی عنه درې طلاقه مغلّظ ګڼي او ثناءالله امرتسری لیکي چې: مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم کلمه ویلې ده، د حضرت عمر کلمه مو نه ده ویلې، مونږ محمّدیان یو، فاروقیان نه یو. [فتاوی ثنائیه/ج ۲/ص ۲۵۲].

۶-محمد جوناګهړي لیکي چې: د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فهم معتبر نه دی. [شمع محمدی/ص ۸/۹].

۷-نواب صدیق حسن خان لیکي چې: اهلحدیث شلو رکعتو تراویحو ته بدعت ضاله وایي او په دې باره کې حضرت عمر ته خطا کار او د بدعت ضاله جاري کوونکی وایي. [کتاب الانتقاد الرجیح از نواب صدیق حسن خان].

۸-حضرت علي رضی الله تعالی عنه د خلافت حریص وو [صدیقه کائنات/ص ۲۳۶ و ۲۳۷/د لامذهبو د مشهور عالم فیض عالم صدیقي کتاب].

۹-د حضرت علي کرم الله وجهه خود ساخته خلافت د الله جل جلاله یو عذاب و.(معاذالله)[صدیقه کائنات/ ص ۲۳۷].

۱۰-د حضرت علي رضی الله عنه شهادت د عالم اسلام لـه پاره رحمت و. (معاذ الله)[صدیقه کائنات / ص ۲۳۷].

۱۱-د حضرت علي رضی الله تعالی عنه دَور په خلافت راشده کې شمېرل بد دیانتي ده.(معاذالله) [خلافت راشده/ ص ۵۶].

۱۲-د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلافت هیڅ ثبوت نشته.(معاذالله) [خلافت راشده / ص ۷۸ و ۷۹].

۱۳-د حضرت علي رضی الله عنه صحیح قول هم قابل د قبول نه دی. (معاذالله)[ فتاوی نذیریه/ج ۱/ ص ۵۷۸].

## حضرت عایشه صدیقه رضی الله تعالی عنها

۱۴-عبدالحق بنارسی د لامذهبیت یو بانی وایي چې: حضرت عایشه رضی الله تعالی عنها؛ حضرت علي رضی الله عنه سره د جنګ په وجهه مرتده شوې وه. (معاذ الله).

۱۵-د حضرت عایشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په فهم باندې اعتماد نشته.[فتاوی نذیریه/ ج ۱ / ص ۶۲۲].

۱۶-حضرت عایشه رضی الله عنها مسجد ته د ښځو د تللو په باره کې فرمایي چې: (لو ادرک النبی صلی الله علیه وسلم ما احدث النساء لمنعهن المسجدَ کما مُنِعت نساءُ بني اسرائیل).

د حضرت عایشې صدیقې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دغه مبارک قول په باره کې نذیر حسین لیکي چې: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اجازت څخه وروسته چې څوک د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې اجازت مخالفت کوي هغه د دې آیت مصداق دی چې: ومَن يَشاقِقِ الرّسولَ مِن بعدِ مَا تبـيّنَ لهُ الهُـدى وَيَتّبِعْ غِيرَ سَبيلِ المُؤمِنينَ نُوَلّهِ مَا تَوَلّى وَ نُصلِهِ جَـهَـنَمَ [الآية] [فتاوى نذيريه/ ج ۱ / ص۶۲۲].

له دې فتوی څخه لاندې خبرې واضحه په نظر راځي:

۱-حضرت عایشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د فرمان مخالفت کړی دی (معاذ الله) ۲-حضرت عایشه رضی الله عنها د دغه مخالفت له امله د پورتني آیت مصداقه ده. (معاذ الله)

۱۷-د علامه اقبال یو شعر دی: متہایا قیصر و کسری کی استبداد کو کِس نی ؟ وه کیا تها زور حیدر، فقر بو ذر، صدق سلیماني.

لا مذهبه فیض عالم صدیقي په دې شعر باندې اعتراض کوي او لیکي چې: په دې شعر کې په دوهم نمبر کې د حضرت ابوذرِ غفاری رضی الله عنه نوم راغلی دی، کوم چې د ابن سبا د کمونستي نظریې څخه متأثره شوې وو. [خلافت راشده/ ص ۱۴۳].

۱۸-لا مذهبه وحید الزمان لیکي چې: حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه د دنیا حریص او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د کورنۍ دښمن و. [لغات الحدیث/ کتاب س/ ج ۲/ ص ۱۴].

۱۹-حضرت امیر معاویه رضی الله تعالی عنه او حضرت عمرو بن العاص رضی الله تعالی عنه باغیان او سرکشه وو. [لغات الحدیث/ کتاب ص/ ص ۳۶].

۲۰-فیض عالم صدیقي لیکي چې: څوک چې حسنین رضی الله عنهما په صحابه وو کې وشماري هغه د سبائیت ترجماني کوي. [سیدنا حسن بن علی/ ص ۲۳۵].

۲۱-د حضرت حُسین رضی الله عنه په باره کې لیکي چې: ایک پُر امن سلطنت کی اندر ایک آدمي کی اِس قسم کی حرکات سنجیده لوگون کی نزدیک ایک بچگانه حرکت تهی. [واقعه کربلا/ ص ۷].

۲۲-همدغه لامذهبه بدبخته په یو ځای کې لیکي چې: د حضرت عمر رضی الله عنه په شهادت کې صحابه رضی الله عنهم هم ککړ وو. عبارت یې داسې دَی چې: کیا حُذیفه کی اِن الفاظ سی یه معلوم نهین هوتا که وه اِس سازش سی باخبر تهی؟ اور اگر یه سازش صِرف مجوس کی تیار کرده تهی. تو حُذیفه کو تمام واقعات بیان کرنی سی کونسا امر مانع تها؟ اِسی حُذیفه کا بیتها محمد اور محمد بن ابوبکر دونون مصر مین ابن سبا کی معتمد خاص تهی. [شهادت ذوالنورین/ ص ۷۱].

۲۳-لا مذهبه وحید الزمان ولید بن عقبه، معاویه، عمروبن العاص، مغیره بن شعبة او سمرة بن جندب رضی الله تعالی عنهم ته فاسقان وایي. [نزل الابرار/ص ۹۴/ج ۳].

۲۴-په کنز الحقایق/ص ۲۳۴ کې لیکي چې: د تمامو صحابه وو سره د (رضی الله عنهم) لوستل مستحب دي، سوی د ابوسفیان، عمروبن العاص، مغیره بن شعبه او سمرة بن جندب څخه. د دوی له پاره د (رضی الله عنهم) لوستل مستحب نه دي.

۲۵-د صحابه وو رضی الله عنهم له یو بل سره عَداوت او دښمني وه. د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه له حضرت فاطمة الزهراء رضی الله عنها سره. او د حضرت عمر رضی الله عنه له حضرت علي رضی الله عنه سره بُغض او عَداوت وو [اعتصام السّنة/ص ۶۹].

۲۶-ډیر غیر صحابه رضي الله عنهم د صحابه وو رضي الله عنهم څخه بهتر وو. [هدیة المهدی/ص ۹۰].

## د صحابه وو رضی الله تعالی عنهم د حُجتیت څخه په انکار کې د لامذهبو او روافضو موافقت

۱-نذیر حُسین دهلوي لیکي چې: (افعالُ الصحابة لا تنتهض للاحتجاج بها) [فتاوای نذیریه بحواله مظالم روپړي/ص ۵۸/سیرت ثنائی/ص ۱۹۶].

۲-په اصولو کې دا خبره ثابته ده چې د صحابه وو قول حُجت نه دی.

۳- د صحابه وو اجتهاد د امت هیڅ یو فرد ته هم حُجت نه دی. [عرف الجادی/ص ۲۰۷].

۴-د صحابه وو کردار هیڅ حجت نه دی، اګر که هغه صحیح ثابت وي. [بدور الاهله/ج ۱/ص ۲۸].

۵-الله جل جلاله په خپلو بندګانو کې هیڅوک هم د صحابه وو د آثارو غلام نه دی ګرځولی. [عرف الجادی/ص ۸۰].

۶-د صحابه وو د آثارو څخه حُجت نه قایمیږي. [عرف الجادي/ص ۸۰].

۷-د اسلام دین یوائځې د الهي وحیې نوم دی، یعنې قرآن او صحیح احادیث، له دې څخه پرته د هیچا قول حجت نه دی، اګر چه صحابي وي. [دعوت الی الخیر / ص ۳، طبع کراچي].

۸-د لا مذهبو اهل حدیثو سرخیل نواب صدیق حسن خان د ښځې له پاره د بربنډه لمونځ د جایز ثابتولو په جوش کې د حضرت ام سلمیٰ رضی الله عنها په اثر باندې د اسې رد کوي چې: (قول اوست، پس بحجت نیرزد) دا ددې قول دی چې د استدلال قابل نه دی. [بدورالاهله / ص ۳۹].

۹-د صحابه وو رضی الله عنهم موقوفات حُجت نه دي. [بدورالاهله / ص ۱۲۹].

۱۱-د صحابي تفسیر دلیل نه دی. [بدورالاهله / ص ۱۳۹]

۱۰-دا د ځینو صحابه وو فعل دی چې د استدلال قابل نه دی. [بدورالاهله / ص ۹۵].

۱۲-مفتي عبدالستار لیکي چې: د صحابه وو قول او فعل حجت نه دی. [فتاوای ستاریه/ج۳/ ص۸۶].

## د خلفای راشدینو قول او فعل هم د روافضو اود لامذهبو په نزد حُجت نه دی:

۱-د جُمعې په ورځ اول أذان چې په حدیثو کې ورته اذان ثالث وایي حضرت عثمان رضی الله عنه شروع کړی دا سنت نه دی. [فتاوی ستاریه / ج ۳/ ص ۸۵] دا سنت نه دی [ستاریه / ج ۳ / ص ۸۷] ددې نه کول په کار دي. [ستاریه / ج ۳ / ص ۸۲].

دا اذان بدعت دی او هېڅکله نه دی جایز. [فتاوی ستاریه / ج ۳ / ص ۸۵]. دوی دا ذان په عنوان د: ایجاد عثماني، اذان عثماني، اوعثماني آذان، د فتاوی ستاریه په مذکورو صفحو کې تقریباً شل ځلې ذکر کړی دی.

په صفحه ۱۰۴ لومړی جلد کې یې د حضرت علی رضی الله تعالی عنه فعل ته حجت نه دي ویلي او په دوهم جلد ۶۵ صفحه کې یې د حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنه فیصلې ته حجت نه دي ویلي.

## غیر مقلدین او قادیانیان

دغیرمقلدینو او قادیانیانو طبیعتونه یو بل ته مایل دي، دواړه فرقي د تقلید څخه ازادي دي او ددواړو فرقو مشن په اسلافو باندې بدګماني او ددوی په خلاف بدزباني ده، دواړه فرقې دانګریزي دورې پیداوار دی.

(۱) دغیرمقلدینو مشهور عالم دهندوستان دا هلحدیثو وکیل محمد حسین بټالوي او مرزا قادياني هم مکتبه وو. دمحمد حسین بټالوي څخه دده په باره کې پوښتنه وشوه هغه وویل چې (هوزه یې دځوانی څخه پیژنم، زه او مرزا صاحب دوړکوالي څخه هم مکتبه وو، اوورسته مې ورسره همیشه ملاقاتونه کول. (سیرة المهدی ج اص ۲۵۸).

(۲) مرزا چې غیرمقلد محمد حسین ولیدلو تقلیدیې پریښودلو، یو قادیاني مرزا بشیر احمد لیکي : مرزا هیڅکله هم دځان لپاره د اهلحدیث نوم نه دی خوښ کړی، لیکن دعقایدو، او اعمالو په اعتبار اهلحدیثو ته ډیرورنږدې وو. (سیرة المهدی ج ۲ص ۴۹)

(۳) دغیرمقلدینو په نیزه لمانځه کې دفاتحې لوستل ضروري دي او دقادیانیانو په نیزهم ضروري ده. مرزا بشیر احمد لیکي : (مولوی شیرعلی ماته بیان کړی دی چې حضرت مسیح موعود علیه السلام (لعنة الله علیه) په ډیرې سختۍ سره په دې خبره زور ور کولو چې دمقتدي لپاره دسورة فاتحې لوستل ضروري دي. (سیرة المهدی ،ج ۲ص ۴۹)

(۵) بیا لیکي چې :داحنافو په نیزبه مقتدی سورة فاتحه نه لولي، او دا هلحدیث داعقیده ده چې مقتدي به سورة فاتحه خامخا لولي حضرت صاحب (مرزا قادیاني) په دې مسئله کې دا هلحدیثو مؤید دی. (سیرة المهدی ،ج ۲ص ۵۰) وکذا فی فتاوی احمدیه ازحکیم الامة ،ج۱۱ص : ۳۳، ومثله خطبه الهامیه ،ص : ۱۳۱، وکذا فی مجدد اعظم ،ج۱۲ص : ۱۳۳۳ دډاکټر بشارت احمد قادیانی کتاب.

(٦) بیا لیکي چې حافظ نورمحمد ساکن چک ماته دخط په ذریعه بیان وکړو چې مایوه ورځ دحضرت مسیح موعود علیه السلام څخه دفاتحه خلف الامام، امین بالجهر، اورفع الیدین په باره کې

پوښتنه وکړه. هغه راته وفرمایل چې داطریقې دحدیثو څخه ثابتې دي ضروریې کول پکار دي. (سیرة المهدی،ج ۳ص ۶۴)

(۷) بیالیکي چې قاضی محمدیوسف صاحب پشاوري ماته دخط په ذریعه بیان کړی دی چې ما حضرت احمدعلیه السلام (لعنة الله علیه) ډیرزیات دفرضو او دتهجدو په لمونځونو لیدلی دی، هغه به لمونځ ډیر په اطمنان سره کولو، لاسونه به یې په سینه باندې کیخودل، اورفع الیدین به یې وکړل. رفع الیدین بیا به راته یاده نده خوغالباً چې کوله یې، دتهجدو څخه وروسته به یې وتراول دوه رکعته وکړل سلام به یې وګرزولو بیا به یې یورکعت وتروکړل، خاکسارعرض کوي چې زما دعلم مطابق حضرت مسیح موعودعلیه السلام رفع الیدین نه کول، ماته دسبابې رفع هم نه ده، یاده لکن مادبعضې بزرګانو څخه اوریدلي دي چې حضرت به رفع دسبابې کوله (سیرة المهدی،ج ۳ص ۴۸).

(۸) احناف همیشه په دواړو لاسونو مصافحه کوي په یولاس یې نه کوي، اوغیرمقلدین یې په یولاس کوي اومرزاقادیاني به هم په یولاس کوله ( سیرة المهدی ج ۳ ص ۳۳)

(۹) مرزاقادیاني به هم دتقلیدپسې بدردویل ځکه چې په دې پوهیدوچې مقلد زما په دام کې نه راځي لکه څرنګه یې چې دتقلیدپه باره کې په یوشعرکې داسې ویلي دي.

مولوی صاحب یهی توحیدهے سچ کهوکس جرم کی تقلیدهے

(سیرة المهدی ج ۳ص ۶۸)

(۱۰) - مرزاقادیاني به دغیرمقلدینو په شان شپه اوورځ دتقلید مذمت اوبدي بیانوله اودغیرمقلدینوصفتونه به یې کول.

دمرزاقادیاني ځوی مرزابشیرالدین محمود دغیرمقلدینو په صفت کې داسې لیکلي دي. (داهلحدیثوفرقه داصل په لحاظ ډیرقدر وړ فرقه ده، ځکه چې ددوی په ذریعه ډیر مسلمانان دبدعاتو څخه ازادشول، اود سنتو نبویه وو په اتباع باندې مستفیض شول. (سیرة المهدی ج ۲ص ۲۹).

(۱۱) - غیرمقلد مولوی ثناء الله لیکي:

**سوال** : په دې زمانه کې مسلمانان دانعام د گټلو لپاره فټ بال کوي او د مازیگر او ماښام لمونځ پرېږدي او بیایې قضائي راوړي نوایا دا کار جایزدی ؟

**جواب** : دلمانځه قضائي بغیر د عذر څخه نه ده جایزه، دفټ بال لوبغاړو ته پکار دي چې د مازیگر لمونځ د ماسپښین دلمونځ سره یوځای وکړي. (فتاوی ثنائیه، ج ۱ص ۶۳۲) وص ۶۱۵). مرزاغلام احمد قادیاني به هم دظهر او عصر لمونځونه یوځای کول. (سیرة المهدی، ج ۲ص ۸۸ و ج ۳ص ۲۲۰)

همدارنگه لیکي چې : یوکس ماته بیان وکړو چې یوځلې زماد ورو خیردین ښځې ماته وویل چې د ماښام وخت د ډیرو کارونو وخت دی، چې ددې په وجه زما څخه اکثر د ماښام لمونځ قضاء کیږي، نو ته د حضرت مسیح موعود څخه پوښتنه وکړه چې زه څه وکړم ؟ ما د حضرت صاحب څخه پوښتنه وکړه چې په کورکې دخوراک وغیره په انتظام کې چې د ماښام لمونځ قضاء شي نو ددې څه حکم دی ؟ حضرت صاحب راته وفرمایل : چې زه ددې اجازه نه ورکووم، او بیایې وفرمایل چې د سهار او ماښام وختونه د خاصو برکتونو وختونه دي، او په دې وختونو کې د ملایکو پیرې بدلیږي، ددې وخت دبرکاتو څخه ځان تاسو نشم محرومولی، البته که مجبوري وي نو د ماښام او د ماخوستن لمونځ یوځای وکړئ. (سیرة المهدی، ج ۳ص ۲۴۵).

قاضي محمد یوسف پشاوری ماته دخط په ذریعه بیان کړی دی چې په سنه ۱۹۰۴ھ کې د جولائی په میاشت کې حضرت مسیح د گورداسپور د کچهرو څخه راووتلو او ماته یې وویل چې دلمانځه انتظام وکړه ما ورته خپل څادر هوار کړو، او د حضرت مسیح په اقتداء کې موږ ظهر او د عصر لمونځونه وکړل، په دغه وخت کې مونږ غالباً شل احمدیان وو. (سیرة المهدی، ج ۳ص ۲۶۸) ونهج المصلی، ج ۱ص ۱۶۵: وملفوظات احمدیه، ج ۱ص : ۲۰۰]

(۱۲) د احنافو په نیز که ښځه د جماعت په لمانځه کې د سړي سره یوځای و دریدله لمونځ به فاسد شو، لکن غیرمقلدین د و مره وخت ښځو څخه چیرته جدا کیدلې شي، نو د دوي فقهی ددې مسئلې په خلاف داسې ولیکل : (ولوحاذت امرءة رجلا وکانت مشتهاة ولاحایل بینهمـا ولوفی صـلوة مشترکة تحریمة واداء واتحدت الجهة لاتفسدصلوة الرجل ولونوی الامام امامتها وعندالاحناف تفسد. (نزل الابرار ج ۱ص ۱۰۰ )

که ښځه د سړي په څنګ کې په لمانځه ودریدله اګرچې ښځې ته د سړي شهوت راتلو، او د سړي او ښځې په مینځ کې هیڅ پرده نه وه، اګرچې د تحریمي او اداء په اعتبار دواړه شریک وو، او جهت هم یو وو، نو د سړي لمونځ نه فاسدیږي، اګرچې امام د دې د امامت نیت کړی وي، او د احنافو په نیز فاسدیږي، او مرزا غلام احمد قادیاني ملعون به هم د ښځې سره په څنګ کې بلا حایله لمونځ کولو. (سیرة المهدی، ج ۳ ص ۲۲۰)

(۱۳) - همدارنګه غیرمقلدین په نریو جرابو باندې مسح کوي او مرزا غلام احمد قادیانی به هم په نریو جرابو باندې مسح کولو ته جایز ویل او خپله به یې هم په نریو جرابو باندې مسح کوله. (مجدد اعظم، ج ۲\ص: ۱۳۳۳/ سیرة المهدی ج ۲ ص ۲۶ و ص ۱۲۷].

(۱۴) د مرزا غلام احمد قادیانی ښځه نصرت بیګم اهلحدیثه وه، د ده خوسر میر ناصر خان وهابی وو د دوي نکاح د اهلحدیثو (وهابیانو) شیخ الکل میانذیر حسین تړلې وه، چې په عوض کې یې ورته یو جای نماز او پنځه روپې ملاو شوې وې.

(۱۵) مرزا (د غیر مقلدینو په شان) د اتو رکعتونو د تراویحو قایل وو. (سیرة المهدی، ج ۲\ص: ۱۳)

(۱۶) مرزا (د غیر مقلدینو په شان) د سمسیرې خوړلو ته جایز ویلې دي. (سیرة مهدی ج ۲\ص: ۱۳۲).

(۱۷) مرزا به په لمانځه کې (د غیر مقلدینو په شان) په سینه باندې لاسونه کیښودل. (ذکر حبیب، ص: ۲۴، ونهج المصلی، ج ۱\ص: ۷۴)

(۱۸) مرزا به د غیر مقلدینو په شان دوه درې کوسوته هم سفر ویلو. (ملفوظات احمدیه، ج ۱/ص: ۱۹۹).

(۱۹) مفتی صادق مرزایی لیکي چې مرزا به د (غیر مقلدینو په شان) د لمانځه څخه وروسته په دعا کې د لاسونو جیګولو ته بدعت ویلې. (ذکر حبیب، ص: ۲۰۲)

(۲۰) حکیم نور الدین اول غیر مقلد وو او بیا قادیاني شو، حکیم نور الدین د مرزا غلام احمد قادیانی اولنی خلیفه وو، د تاریخ احمدیت مصنف لیکلي دي چې: حرمین سے واپسی پر نور الدین

وهابیت اختیار کی اور ترک تقلید پر وعظ کے اور عدم جواز تقلید پر کتابیں تصنیف کیں.
(تاریخ احمدیت ، ج۴ \ ص: ٦٩)

(۲۱) - دپاکستان سابق وزیرخارجه سرظفرالله خان قادیانی لیکلي دي چې : (میری دادا چوهدری سکندرخان مرحوم أپنی علاقی کی بری بارسوخ زمیدار تهی مجهی معلوم هو سکاهی وه اهلحدیث فرقی سی تعلق رگهتی تهی ) ( تحدیث نعمت : ص : ۳)

(۲۲) - دچکړالوی فرقې یعنې دمنکرینو دحدیثو باني مولوي عبدالله چکړالوي اول غیر مقلدوو . (ترک تقلید کی بهیانک نتائیج ص : ۴۵)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لانبى بعده

امابعد !

**په قرانکريم کې الله ﷻ درې قسمه خلك ذکر کړيدي لکه مخکې چې بيان شول**

(۱) - اولوالالباب، اولوالابصار، اهل الذکر، اهل استنباط، فقهاء او مجتهدين دي، دې ډلې ته الله حکم کوي: فَاعْتَبِرُوْا يَاُولِى الْاَبْصَارِ.

علامه جلال الدين سيوطى رحمه الله په خپل تفسير الاکليل کې فرمايي: الاعتبار هوالقياس.

حـافظ ابـن حجـر رحمه الله او حـافظ عينـى رحمه الله هـم پـه شـرح دبخـاري کـې فرمـايي: القيـاس هوالاعتبار، والاعتبار ماموربه، فالقياس ماموربه وذالک قوله تعالى: فَاعْتَبِرُوْا يَاُولِى الْاَبْصَارِ.

(۲): الله ﷻ مسلمانانو ته امرکړيدی چې داولوالامرو اطاعت وکړئ، او داولوالامرو په باره کې الله تعالى فرمايي: لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَه مِنْهُمْ) سورة النساء آيت (۸۳)

اوداستنباط معنى داده چې کله تخم دزمکې په مينځ کې خخ وئ کله چې الله ج باران راووروی هغه راظاهرشي نو همدارنګه دکتاب اودسنت دالفاظو په بيخ کې چې کوم حکم پټ وي مجتهد هغه راښکاره کوي اصوليان وايي (القياس مظهر لامثبت)

نولکه داوبو په وجه چې پټ تخم را ظاهرېږي نوی تخم نه راپيدا کېږي، همدارنګه، دمجتهد دقياس په وجه پټ حکم راظاهرېږي، دځان څخه حکم نه زياتېږي، نو دمجتهد استنباط ته اجتهاد وايي او دغير مجتهد هغې احکامو مستنبطه وو طرف ته رجوع ته تقليد وايي.

(٣): وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَافَّةً فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْا اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ) سورة التوبة آيت (١٢٢)

علامه سرخسي رحمه الله د مبسوط په دیباچه کې فرمايي: ان الله جعل ولاية الانذار للفقهاء اوخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

نضرالله عبدا سمع مقالتي فوعاها ثم ادها الى من لم يسمعها فرب حامل فقه لافقه له ورب حامل فقه الى من هو افقه منه (الحديث). دارمي ج(١)ص (٧٥) واللفظ لابن ماجه ص(٣١) مستدرك حاكم ج(١) ص(٨٦) وقال الحاكم والذهبي على شرطهما مجمع الزوائد ج(١) ص(١٣٩)

وقال الهيثمي رحمه الله رجاله موثقون، امام حاكم رحمه الله فرمايي دا حديث مشهور دی. معرفة علوم الحديث ص(٩٢) علامه سيوطي رحمه الله فرمائی چې دا حديث متواتر دی [مفتاح الجنة ص ٥]

ددې حديث څخه معلومه شوه چې د حديث اصل مقصد فقه ده، او فقه صرف د حديث الفاظو او لفظي ترجمې ته نه وايي، ځکه د فقهې معنی شق او فتح ده نو فقيه د مسائلو استخراج کوي، عوام کالانعام يې نشي کولای.

(٤): عن عمرو بن العاص، وابي هريرة رضى الله عنهما انه سمع رسول الله ﷺ يقول اذا حكم الحاكم فاجتهد فاصاب فله اجران واذا احكم فاجتهد ثم اخطاءَ فله اجرٌ. [بخاري ج(٢)ص(١٠٩٢) ومسلم ج(٢)ص(٧٦) نسائي ج(٢) ص(٢٦٢) وترمذي ص(٢١٠) ابوداود ج(٢) ص (٧٠)

فقال العلماء اجمع المسلمون ان هذا الحديث في حاكم عالم اهل للحكم فان اصاب فله اجران اجر باجتهاده واجر باصابته وان اخطا فله اجر باجتهاده...

قال فامامن ليس باهل للحكم فلايحل له فان حكم فلا اجر له بل هو آثم ولاينفذ حكمه سواءٌ وافق الحق ام لا، لان اصابته اتفاقية، ليست صادرة عن اصل شرعي ، فهو عاص فى جميع احكامه سواء وافق الصواب ام لا ، وهى مردودة كلها لايعذر فى شئ من ذلك، وقد جاء فى الحديث فى

السنن القضاة ثلاثة قاض فى الجنة واثنان فى النار قاض عرف الحق فقضى بـه فهـو فى الجنـة وقاض عرف الحق فقضى بخلافه فهو فى النار وقاض قضي على جهله فهو فى النار، نووي ج٢/ ص٧٦)

امام نووي رحمه الله په تهذيب الاسما كې د داود ظاهري په ترجمه كې ليكي: قـال امـام الحـرمين ذهب اليه اهل التحقيق ان منكري القيـاس لايعـدون مـن علمـاء الامـة وحملـة الشريعة لانهم معاندون مباهتون فيما ثبت استفاضة وتواتراً لان معظـم الشريعة صـادرة عـن الاجتهـاد ولاتـفى النصوص بعشر معشارها وهؤلاء ملتحقون بالعوام.

ددينـه معلومـه شـوه چې منكـرين دقيـاس نـه پـه اولـوالامروكې دي اونـه پـه اولوالابصاراواولوا لالبابوكې دي.

(٦):عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ امْرَأَتِي وَلَدَتْ غُلاَمًا أَسْوَدَ، وَإِنِّي أَنْكَرْتُهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ؟»، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: «فَمَا أَلْوَانُهَا؟»، قَالَ: حُمْرٌ، قَالَ: «هَلْ فِيهَا مِنْ أَوْرَقَ؟»، قَالَ: إِنَّ فِيهَا لَوُرْقًا، قَالَ: «فَأَنَّى تُرَى ذَلِكَ جَاءَهَا»، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! عِرْقٌ نَزَعَهَا، قَالَ: «وَلَعَلَّ هَذَا عِرْقٌ نَزَعَهُ»، وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ فِي الِانْتِفَاءِ مِنْهُ.

[٤ بخاري: ج(٢) ص١٠٨٨]

واحتج المزنى بهذين الحديثين على من انكر القيا س، وقال: اول من انكـر القيـاس ابراهيم النظام، وتبعه بعض المعتزلة، و داود بن علي، وما اتفق عليه الجماعة، وهوالحجة فقد قـاس الصحابة ومن بعدهم من التابعين وفقهاء الامصار، حاشيه بخاري ص ١٠٨٨]

قال المزني الفقهاء من عصر رسول الله ﷺ الى يومنا وهلـمَّ جـرًّا اشـتهو المقـائس فى الفقـه فى جميع الاحكام فى امر دينهم قال: واجمعوا ان نظيرالحق حق ونظـير الباطـل باطـل، قـال فلايجـوز لاحـدٍ انكار القياس لانه التشبيه بالامور والتمثيل لها.[جامع بيان العلم ج٢ص ٦٦. (باب اجتهاد الرأى على الاصول)

(٧):رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: انما اقضى بينكم برائى فيمالم يكن ينزل علىَّ فيه [ابوداود ج٢ص٧١ فى قضا القاضى اذا اخطاء] .

**حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه:**

ان ابابکر اذا نزلت به قضية فلم يجد فی كتاب الله منها اصلاً ولا فی السنة اثراً فاجتهد رائه ثم قال هذارائی فان يكن صواباً فمن الله وان يكن خطاءً فمنی واستغفرالله [جامع بيان العلم ج۲ص۵۱ طبقات ابن سعد ج۳ص۱۳۶]

(۹): حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به چې کله مسئله په کتاب او په سنت کې پیدا نکړه. جمع رؤس الناس وخيارهم فاستشارهم فا ذاجتمع رايهم علی امرقضی به.

(۱۰): حضرت عمر رضی الله عنه قاضی شریح ته ولیکل چې کومه مسئله درته راشي اول یې په کتاب فیصله کوه، که په کتاب الله کې پیدا نشوه بیایې په سنت الرسول فیصله کوه، که په سنت کې پیدانشوه بیائی په اجماع فیصله کوه که په اجماع کې هم پیدا نشوه نو بیا په خپله رایه اجتهاد کوه. (جامع بیان العلم ج(۲) (۵۶الی ۵۹)

(۱۱): حضرت عمر رضی الله عنه به چې کله فتوی ورکړه بیا به یې فرمایل: هذا رأی عمر فان كان صوابا فمن الله وان كان خطاء فمن عُمَرَ.

(۱۲): حضرت عثمان رضی الله عنه، حضرت عمر رضی الله عنه ته د عمر رضی الله عنه په آخر عمر کې وفرمایل: فقال عثمان ان نتبع رأيكَ (فی وراثة الجد) فهو رشد وان نتبع رای الشيخ قبلك فنعم ذوالرائی كان [مستدرك حاكم ج٤ص۳٤٠ قال الحاكم والذهبی صحيح].

(۱۳): د حضرت عثمان رضی الله عنه سره یٔدې شرط بیعت وشو چې هغه به د کتاب الله، سنت الرسول او سنت العمرین اتباع کوي (شرح فقه اکبر ج(۱) ص(۷۹)

(۱۴): د بیعت مشوره کېدله نو د ټولو اهل حل عقد په موجودګۍ کې حضرت علی رضی الله عنه وفرمایل: احكم بكتاب الله وسنة رسوله واجتهد راءی (شرح فقه اکبر ج(۱) ص(۷۹).

همدارنګه حضرت علی رضی الله عنه فرمايي: سئل رسول الله صلی الله علیه وسلَّم عن العزم فقال مشاورة اهل الراءی ثم اتباعهم (ابن کثیر ج(١) ص(٢٠).

(۱۵): حضرت علی رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وفرمایل چې یارسول الله که داسې معامله رامخې ته شي چې په هغې کې نه امر وي او نه نهی نو تاسو پکې مونږته څه امرکوئ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل فقهاؤ او عابدینو سره مشوره کوه . (مجمع الزوائد ج(۱)ص(۷۸) رجاله موثوقون )

(۱۶): حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په مکه مکرمه کې مفتي وو، دده معمول داوو چې په کتاب الله، په سنت الرسول او په سنت العمرین کې به ثبوت پیدا نشو،نو (قال فیه برائ)

(۱۷): حضرت زید بن ثابت په مدینه منوره کې مفتي وو،دمدینې منورې خلکو دده تقلید شخصي کولو حتی چې اهل مدینه وو عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ته وفرمایل: لاناخذبقولك ونـدع قول زید[بخاري ج(١) ص (٢٣٧) باب اذاحاضت المرئة بعد ماافاضت] لانتابعك يا ابـن عبـاس وانت تخالف زیداًعمدة القاری ج(٤) ص(٤٧٧) و فتح الباری ج(٣) ص (٤٦٣)

حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه به چې فتوی ورکوله فرمایل یې: انما اقول برائی (جـامع بیان العلم ج(٢) ص (٥٨)- بیهقی ج(١) ص (١١٥).

(۱۸): دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه منشور داوو: فمن عرض لکم مـنکم قضاءٌ بعد اليوم فليقض بما فی كتاب الله فان جاء امر ليس فی كتاب الله تعالى فليقض بما قضي بـه نبيه ﷺ فان جاء امر ليس فی كتاب الله ولاقضى به نبيه ﷺ فليقض بما قضى به الصالحون فـان جاء امر ليس فی كتاب الله ولا قضى به نبيه ﷺ ولاقضى بـه الصـالحون فليجتهـد برائيـه (الحديث، الحديث جيد)[نسائی ص ٢٦٤ باب الحكم باتفاق اهل العلم]

په دارمی کې الفاظ داسې دي: فان لم يكن فيما اجتمع عليه المسلمون فاجتهد برايك ( ج(١) ص(٥٧) جامع بيان العلم ج(٢) ص(٥٧)

وعن ابن مسعود رضي الله عنه انه قال فى غير ما مسئالة اقول فيه برأيي.

(۱۹): حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه، حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه او حضرت ابوهريرة رضی الله عنه هم په رایه فتوی ورکوله.

(۲۰): حافظ ابن عبد البر دهر ښار د اهل الرایو جدا جدا فهرست جوړکړیدی. ( جامع بیان العلم ج(۲) ص(۶۴،۶۱)

قال ابن عبدالبر لاخلاف بين فقهاء الامصار وسائر اهل السنة وهم اهـل الفقـه والحـديث فى نفى القياس فى التوحيد واثباته فى الاحكام الا داود بن على. ( جامع بيان العلم ج(٢) ص(٧٤)

(۲۱): عن عبدالله بن عمرو رضى الله عنه قال قال رسول الله ﷺ العلم ثلاثة آية محكمة اوسنة قائمة او فريضة عادلة وماسوى ذلك فهوفضل. [ابوداود ج١ص١٦٩، مشكوة ج ١/ ص ٣٥ ابن ماجه ص٦].

فريضه عادله اشاره ده د اجماع او قیاس طرفته او ددې دواړو څخه ځکه تعبير وشو په فريضه عادله چې پدې دواړو داسې عمل واجب دی لکه په کتاب او په سنت چې واجب دی (يعنې په حجيت کې برابر دي) ددې حديث معنى داده چې ادلـه د شرعې څلور دي، کتاب، سنت، اجماع او قیاس او کوم علم چې ددې څخه ماسوی وي هغه زاید او بې معنی دي.

(۲۲): علامه تفتازانی رحمه الله فرمائی: چې د صحابه وو رضوان الله عليهم څخه په قیاس باندې عمل په دومره نصوصو ثابت دی چې مجموعه يې تواتر ته رسيږي، اګر که تفصيلاً احاد دي او داخبره بالکل صحيح ده ځکه يواځې په مصنف عبد الرزاق کې د صحابه وو او تابعينو په زرګونو اجتهادي فتوې دي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: اَلايَاتُ بَعْدَ المأتَيْنِ ددې وړاند وينې مطابق منکر د قیاس ابراهيم بن سيار النظام پيدا شو، او دده پيروي دټولو څخه مخکې معتزله وو وکړه او د حجيت د قیاس څخه منکر شول.

## داجماع او قياس دحجيت دلائل

په قرآن پاک کې د څلورو دلائلو ذکر داسې شويدی، چې اول دالله د اطاعت حکم شويدی، بيا درسول الله صلی الله عليه وسلم د اطاعت ذکر دی، بيا داولوالامر دپيروی يعنې دمجتهدينو او داجماع ذکر الله تعالی داسې کوي:

وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيْرًا. (١)

### صحيح بخاري:

دامام بخاري په کتاب کې داجماع او قياس حجيت ذکر شويدی.

رسول الله صلی الله وسلم فرمايي: تلزم جماعة المسلمين وامامهم ( بخـاري ج(١) ص (٥٠٩) من فارق الجماعة شبراً فمات الامات ميتة جاهلية ( ج(٢) ص (١٠٤٥) دقياس په باره کې حديث نقلوي چې مجتهد ته دخطايي په صورت کې هم اجر دی. (بخاري ج(٢) ص(١٠٩٢)

رسول الله ﷺ دانسان بچی داوښې په بچي باندې قياس کړو. دسليمان عليه السلام قياس: ج١ص ٤٨٧) بني قريظه وو ته تلونکو صحابه وو اجتهاد وکړو او رسول الله صلی الله عليه وسلم يې تصويب وکړو. [ج٢ ص٥٩١) بيائې په صفحه ١٦ ج ١ کې دفقه دخيرينت احاديث نقل کړيدي باب من يرد الله به خيراً يفقه فی الدين. په ټول بخاري کې يو داسې حديث نشته چې داجماع او قياس منونکي ته يې کافر ،مشرک يا بدعتي ويلی وي.

خپله امام بخاري فقه ته ثمرة الحديث وايي، خپله امام بخاري دخپل مسلک دتائيد لپاره دصحابه وو او دتابعينو اقوال ذکر کړيدي هغه اقوال چې ددوي اجتهاد وو، خپله په بخاري کې په يو ځای کې

---

١- پاره ٥ ايت ١١٥.

پېښ ګوېږي ده چې که دين ثريا ستوري کې وي بيا به يې هم دفارس يو سړی راکوز کړي او په نورو ځايونو

کې دخيرالقرون دخيريت احاديث دي.

نوچې ددواړه قسم احاديث سره يو ځای کړي، نتيجه يې صرف اوصرف امام ابوحنيفه دی، ځکه

دغه رجل فارس چې په خيرالقرون کې يې فقه مرتبه کړې وه، صرف اوصرف امام ابوحنيفه رحمه الله وو،

او ددغه ملازمت ددين حنيفي له وجهې دهر خاص او دعام په ژبه ورته دابوحنيفه کنيت او دامام اعظم

لقب ورکړل شوی وو، او دا هم درسول الله صلى الله عليه وسلم حديث دی چې په يو وخت کې به خلک

جاهلان خپل مشران کړي، او دغه مشران به خپله هم ګمراهان وي، او نورخلک به هم ګمراه کوي، ددې

مصداق بالکل لامذهبه دي دخيرالقرون مجتهد رجل فارس ته ګمراه وايي (معاذالله) او دانګريزي

دورې جاهلان خپل مشران ګڼي.

**صحيح مسلم:**

امام مسلم هم دا ادله اربعه وو ذکرکړيدي: تلزم جماعة المسلمين وامامهم ( ج ۲ ص۱۲۷) من

فارق الجماعة شبرا فمات فميتة جاهلية ( ج ۲ ص۱۲۸)

انه ستكون هناة وهناة فمن اراد ان يفرق هذه الامة وهى جميع فاضربوه بالسيف كائناً من كان.

(ج۲ ص۱۲۸). من اتاكم وامركم جميع على رجل واحد يريد ان يشق عصاكم اويفرق جماعتكم

فاقتلوه . (ج۲ ص۱۲۸)

## په مسلم شريف کې دلامذهبو وړاندوينه (پېش گويي):

پـه مسلم شـريف کـې دهغـو خلکـو نښـې ذکـر شـويدي چـې دامـام او جماعـت نـه منـونکي دي.

غائرالعينين، مشرف الوجنتين، ناشذالجبهة، كث اللحية. محلوق الرأس، مشمرالازار ج١ ص٣٤١).

يحقراحدکم صلوته مع صلوتهم، وصيامه مـع صـيامهم، يقـرؤن القـران لا يجـاوز تـراقيهم، يمرقون من الاسلام كمايمرق السهم من الرمية ( ج١ ص ٣٤١).

سيخرج فی آخر الزمان قوم احداث الاسنان وسفهاء الاحلام يقولون من قول خير البريـة فـاذا لقيتموهم فاقتلوهم فان فی قتلهم اجراً لمن قتلهم عندالله يوم القيمـة (ج١ ص ٣٤٢) هـم شرالخلق والخليقة واشار بيده نحوالمشرق ( ج١ ص ٣٤٣) داټولې علامې په لامذهبو کې دي.

## صحيح مسلم او اجتهاد:

اذا احكم الحاكم فاجتهد ثم اصاب فله اجران، واذا احكم فاجتهد ثم اخطـاء فلـه أجر. [ج٢ ص٧٦]. دحضـرت سـليمان عليه السلام قياسـي فيصـله د دو ښـځو پـه مـابين کـې. (ج٢ ص٧٧) رسول الله ﷺ حج په قرض باندې قياس کړی وو. (ج١ص٤٦٢)

د وو ډلو دصحابه وو دخپل خپل اجتهاد مطابق درسول الله صلی الله عليه وسلم مراد رافهمولی وو او عمل يې ورباندې کړی وو. رسول الله ﷺ ددواړو ډلو تصويب کړی وو. (ج٢ص٩٦)

رسول الله صلی الله عليه وسلم حضرت علي رضی الله عنه تـه امر وکړچې فلانـی ښځې تـه دورې ورکړه حضرت علی رضی الله عنه درسول الله صلی الله عليه وسلم دمطلق حکم نـه تقيـد را وفهمولو او په مقيد يې عمل وکړو. (ج٢ص٧١)

امام مسلم دفقه په تعريف کې احاديث ذکر کړيدي او دفقه منل داد ادلـه اربعه وو منل دي، امام مسلم حديث ذکر کړيدی : قال الدين النصيحة، قال لمن؟ قال لله ولِكتابه ولِرسوله ولِائمة المسلمين وعامتهم.

امام نووي رحمه الله فرمائی: وقديتناول ذلك على الائمة الذين هم علماء الدين وان من نصيحتهم قبول ما رووه وتقليدهم فى الاحكام واحسان الظن بهم قاله الخطابى (نووي ج١ص٥٤).

## دامام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ وړاندوينه (پېش گويي)

دمسلم شريف په مختلفو احاديثو كې دخير القرون دطبقې ذكردي اوددې افضليت بالترتيب ذكر شويدى. اوپه خير القرون كې تر ثريا ستوري پورې درجل فارس دعلمي پرواز ذكر دى. (ج٢ ص٣١٢)

**جامع الترمذي:**

امام ترمذي دابواب الفتن لاندې داجماع دپاره احاديث ذكر كړيدي، اودحضرت عمر رضي الله عنه په خطبه كې يې درسو الله صلى الله عليه وسلم الفاظ رانقل كړي چې:

عليكم بالجماعة واياكم والفرقة فان الشيطان مع الواحد، وهو من الاثنين ابعد، من ارادبحبوحة الجنة،فليلزم الجماعة .هذا حديث حسن صحيح غريب.

ان الله لايجمع امتى اوقال امة محمد على الضلالة. ويدالله على الجماعة ومن شذ شذ فى النار. [ص٣١٥]

**ترمذي او اجتهاد:** اذا احكم الحاكم فاجتهد فاصاب فله اجران، واذا احكم فاخطاء فله اجر واحد. بيايې دحضرت معاذ رضي الله عنه حديث ذكر كړيدى، چې ددې څخه معلومه شوه چې په مسايلو اجتهاديه وو كې مجتهد اجتهاد كوي، او نورتول خلك دده په اجتهاد عمل كوي، چې دېته تقليد ويل كېږي، كه كوم غير مجتهد دمجتهد په ځاى په خپله رايه روان وي نو پده باندې دهدايت دروازى بندې وي.

واعجاب كل ذى راءي برايه، فعليك بنفسك خاصةً ودع امرالعوام. (ص٤٣٥) اى ان يجد كل احد فعل نفسه حسنا وان كان قبيحاً ولا يراجع العلماء فيما فعل بل يكون مفتى نفسه (سندهى)

قال القارى واعجاب كل ذى راى برايه اى من غير نظر الى الكتاب والسنة واجماع الامة والقياس على اقوى الادلة وترك الاقتداء بنحو الائمة الاربعة، قاله (الطيبى) انجاح الادلة ص٢٩٩]

په ابواب العلم کې حديث ذکرکوي: من يردالله به خيرا يفقهه فى الدين (ص۳۷۹) اوفقه جامعه د ادله وو اربعه وو ده، او درب حامل فقه حديث يې راوړيدي، چې فهم دمحدث حجت ندی، بلکې فهم دفقيه حجت دی. (ص۳۸۰) فقيه واحد اشـد على الشـيطان مـن الـف عابـد (ص۳۸٤) خصلتان لاتجتمعان فى منافق حسن سمت ولافقه فى الدين (ص ۳۸٤) دفقه مخالف يا شيطان وي، اويامنافق.

دخيرالقرون فضائل يې ذکرکړيدي اوبيايې داهل فارس په مدحه کې حديث راوړيدی چې: والذي نفسي بيده لوكان الايمان بالثريا لتناوله رجال من هؤلاء (ص٤٧٦) وكذلك قال: الفقهـاء هـم اعلـم بمعانى الحديث(باب غسل الميت ص۳۷۵) فقهاء اشراف واولوالالباب (ص۳۷۵).

**ابوداود:**

امام ابوداود داجماع په دليل کې د درې اويا فرقو والاحديث را وړيدی، اوناجي جماعت يې ذکر کړی دی چې: هى الجماعة من فـارق الجماعـة. الحـديث (ج۲ ص۱۷۹) داجتهاد لپاره (اذا احكـم الحاكم) الحديث ( ج۲ص۷۰).

انما اقضى بينكم بالراءى فيمالم ينزل على فيه (ج۲/ص۷۱) العلم ثلاثة (ج۲ ص۹) (نضرالله عبدا سمع مقالتى) الحديث (ج۲ص۷۸) لايقض الا اميرا ومامور اومختال ( ج۲ ص۷۹.)

امير مجتهد دی-مامورمقلد دی- اومختال غيرمقلد دی.

**نسائي:**

داجماع لپاره (من فارق الجماعة)الحديث (ج۲ص١٤٥) داجتهاد لپاره د اذا احكـم الحاكم الحديث(ج(۲)ص(١٤٦). او دقياس لپاره حديث دقياس الحج على الدين (حديث او منشور)

دحضرت عمر رضي الله عنه اودحضرت ابن مسعود رضي الله عنه منشور [ج۲/ص۲۶۴]

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

نن سباهره فرقه په بله باندې سوالونه کوي، لکن اکثرسوالونه غلط وي، له دې وجهې دصحيحو اودغلطوسوالونوپېژندل ضروري دي.

په مناظره کې دوه ډلې وي: **اول:** مدعي. **دوهم:** سايل.

**مدعي:** هغه چاته وائي چې دکوم شرعي حکم دثابتولوکوشش کوي.

**سايل:** هغه چاته وائي چې دمدعي ددعوې څخه انکارکوي.

اودسوال لپاره دېرې طريقې دي لکه، منع، نقض، معارضه، اوداسوالونه مدعي ته متوجه کېږي، ترڅوچې مدعي نوي معلوم سوالونه ندي ممکن.

**مثلا :**

رسول الله ﷺ دنبوت دعوی کړې وه، نودمنکرينولپاره دسوال حق وو، مګردهغې سوال حق يې لرلوچې ددعوې دنبوت سره تعلق لري، ليکن کفاروغلط سوالونه کول، ځکه چې ددوي سوالونوددعوې دنبوت په ځای ددعوې دالوهيت سره تعلق لرلو، لکه چې ويل به يې په مونږ داسمان څخه تيږې راووروه.

نو په دې مُلکونوکې درې ډلې دي چې يوبل ته په کمين کې ناستي دي:

**اوله:(وکټوري) اهل قُران:** دوي وائي چې مونږيوائې اويوائې قران منو، نورنه حديث مني اونه اجماع مني اونه قياس مني.

**دوهمه:(وکټوري) اهل حديث:** دوي وائي چې مونږصرف اوصرف قران او حديث منو، نورنه اجماع مني اونه قياس.

دریمه اهل السّنت والجماعت: دوي قران، حدیث، اجماع، او قیاس څلور واړه مني، نو چې کله د اولې فرقې څخه سوال وشي چې په قران کې دخر دغوښې خوړل حلال دي او که حرام؟ او په قران کې د لمانځه څو مره شرایط او څو مره ارکان دي؟

یواځې له قران کریم څخه جواب راکړئ! (حدیث، اجماع او قیاس به په جواب کې نه پیش کوئ!) نو دا سوال صحیح دی. ځکه چې د دوي د دعوې سره موافق دی او د دې ډلې فریضه داده چې په جواب کې صرف د قران کریم ایات پیش کړي او چې کله له دوهمې فرقې څخه سوال وشي چې په قران او حدیث دواړو کې د لمانځه څو مره فرضونه او څو مره سنتونه دي؟ جواب صرف له قران کریم او د حدیث څخه زا کړئ!

نو دا سوال صحیح دی، ځکه چې د دوي د دعوې سره موافق دی او د دې ډلې فریضه داده چې په جواب کې د قران کریم ایات او یا د رسول الله ﷺ حدیث صحیحه صریحه پیش کړي. او که د دې ډلې څخه دا سوال وشي چې صرف په قران کې د لمانځه څو مره فرضونه او سنتونه دي؟ نو دا سوال غلط دی، ځکه چې د دوي د دعوې سره مخالف دی او چې کله د دریمې فرقې څخه سوال وشي چې د لمانځه فرضونه، سنتونه او مستحبات په قران او په حدیث او په اجماع او په قیاس کې څو مره دي؟ نو دا سوال صحیح دی، ځکه چې د دوي د دعوې سره موافق دی او د دوي دا فریضه ده چې په جواب کې قران، یا حدیث، یا اجماع او یا قیاس پیش کړي.

او که د دې ډلې څخه سوال وشي چې صرف په قران کې د لمانځه څو مره فرایض، سنن او مستحبات دي؟ نو دا سوال غلط دی، ځکه چې د دوي د دعوی څخه مخالف دی. همدا رنګه که د اهل سنت والجماعت څخه دا سوال وشي چې صرف په قران او په حدیث کې د لمانځه څو مره فرایض، سنن، او واجبات دي نو دا سوال هم غلط دی، ځکه چې د دوي د دعوې څخه مخالف دی، ځکه چې د دوي دلایل صرف قران او حدیث نه دی، بلکې د دوي دلایل څلور دي: قران، حدیث، اجماع او قیاس.

نو که یو پرویزي (اهل قران) دا دعوی وکړي چې صرف قران کافي دی، نو دده څخه که سوال وشي چې د لمانځه فرضونه او سنتونه او واجبات صرف په قران کې وښایه! او هغه هم صرف د قران ایتونه په جواب کې

پیش کړل، نو دده دعوه صحیح ثابته شوه او که صرف د قران څخه یې ثابت نه کړی شو، نو بیا دده دعوه غلطه او دروغ ده.

او که یو لامذهبه (وکټوري اهل حدیث) دا دعوی وکړي چې صرف قران او حدیث کافي دی، نو دده څخه که سوال وشي چې دلمانځه فرضونه او سنتونه او واجبات صرف په قران او په حدیث کې وښایه او ده هم په جواب کې هره جزئي مسئله په قران او په حدیث کې صراحةً ثابته کړه، نو دده دعوه صحیح ثابته شوه او که صرف د قران او د حدیث څخه یې ثابت نه کړی شوه، نو بیا دده دعوه غلطه او دروغ ده.

**فلهذا:** مونږ به د لمانځه په باره کې یو څو سوالونه ولیکو چې: په هر مسلمان باندې د ورځې پنځه وخته فرض دی. اهل سنت والجماعت ته درخواست دی چې: که د کوم اهل قران (پرویزي) سره مخ شي، نو دا راروان سوالونه دې په داسې طریقه باندې ترینه وکړي چې جواب صرف په قراني ایاتونو ورکړي، ان شاءالله تعالی دده دعوه به دروغ ثابته شي او هیڅکله به ددې سوالونو جواب د قران کریم څخه ورنکړی شي.

او که د کوم لامذهبه جعلي اهلحدیث سره مخ شي، نو دا سوالونه دې په داسې طریقه ترینه وکړي چې هغه په جواب کې ورته یا قراني ایت او یا حدیث صحیحه صریحه غیر معارضه پیش کړي، ان شاء الله تاسو به وګورئ چې څنګه صُم بُکم عُمی او لاجوابه پاتې کیږي؟ او دده دعمل بالحدیث دعوی به داسې باطلیږي لکه څرنګه چې د پرویزیانو دعوی د عمل بالقران باطله ده. د یو اُمتي قول هم ورسره مه منئ! ځکه چې د اُمتي خبره نه قران دی او نه حدیث. بلکې تقلید دی او تقلید ته دوي شرک وایي.

له دې څخه وروسته دې رامیدان ته شي چې مونږ ورته دلمانځه هره مسئله په قران، یا حدیث، یا اجماع او یا قیاس باندې ثابته کړو. د لمانځه څخه مخکې چې کوم کارونه ضروري دي، هغې ته مجتهدین امامان د لمانځه شرائط وایي. د فقهې څخه معلومیږي چې تعداد د شرائطو په اجماع د امت باندې ثابت دی. رسول الله ﷺ فرمائي چې په قیامت کې به د فرایضو حساب کیږي او که په دې کې کوم کمی شوی وي نو په نوافلو به پوره کیږي، نو د فرایضو، واجباتو، سننو او مستحباتو پیژندل ضروري دي.

## سوالات

(۱) **سوال** : په قران اوپه حدیث کې دلمانځه څومره شرطونه ذکرشوي دي؟ اوکوم کوم دي ؟ اوهمدارنګې دشرط جامع اومانع تعریف په قران یاپه حدیث کې وښایئ!

(۲) **سوال**: په قران اوپه حدیث کې دلمانځه څومره ارکان ذکرشوي دي اوکوم کوم دي؟ اود رُکن جامع اومانع تعریف په قران اویاپه حدیث کې وښایئ !

(۳) **سوال**: په لمانځه کې واجبات څومره دي ؟ اودواجب جامع اومانع تعریف په قران اویا په حدیث کې وښایئ!

(٤) **سوال**: په لمانځه کې څومره شیان سنت دي ؟ اوکوم کوم دي ؟ همدارنګې په قران یاپه حدیث کې دسنتو جامع اومانع تعریف څه دی ؟

(۵) **سوال**: په لمانځه کې څومره مستحبات دي ؟ اوکوم کوم دي ؟اوهمدارنګې دمستحبو جامع اومانع تعریف په قران اویا په حدیث کې وښایئ!

(٦) **سوال** : ستاسو په نیزپه لمانځه کې څومره مباحات دي ؟ اوکوم کوم دي ؟ اوهمدارنګې دمباح جامع اومانع تعریف په قران اویا په حدیث کې وښایئ!

(۷) **سوال**: ستاسو په نیزدلمانځه مکروهات څومره دي ؟ اوکوم کوم دي ؟ اودمکروه جامع اومانع تعریف څه دی ؟ هرجواب په قران اویا په حدیث صحیحه، صریحه باندې راکړئ .

(۸) **سوال** : په قران او په حدیث کې دمفسداتو دلمانځه تعداد څومره دی؟ اوکوم کوم دی؟ اودفاسد تعریف څه دی ؟ په جواب کې ایت اویاحدیث پیش کړئ !

**(۹) سوال** : دسهار لمونځ څو رکعته دی؟ څو رکعته فرض او څو رکعته سنت دی؟ په جواب کې صریح ایت یا صریح حدیث پیش کړئ، چې رسول الله ﷺ صراحةً ویلي وي چې دومره رکعته لمونځ دی او دومره په کې فرض او سنت دی د (فرض او سنت) لفظ صراحةً وښائئ.

**(۱۰) سوال** : د ماز یګر څو رکعته دي؟ فرض دي که سنت ؟ په قران یا په حدیث کې د فرض یا سنت لفظ د ماز یګر د لمانځه سره وښائی ؟

**(۱۱) سوال** : د ماښام څو رکعته دي؟ څو فرض دي او څو سنت دي ؟ صراحةً یې په حدیث کې وښائی ؟ چې رسول الله ﷺ فرمایلي وي چې دومره رکعته دي او دغه رکعتونه پکې فرض دي او دغه پکې سنت دي.

**(۱۲) سوال**: ستاسو په نیز د ماخوستن لمونځ څو رکعته دی، د فرض، سنت او نفل تفصیل یې صراحةً په آیت او یا په حدیث کې وښائی.

**(۱۳) سوال**: رسول الله ﷺ د فرضو او د نفلو او د سنتو او د واجبو نیت په زړه کې کړی دی او که نه؟ که کړی یې وي څرنګه یې کړی دی؟ تفصیل یې وښایئ.

**(۱٤) سوال** : انحضرت ﷺ په زړه کې د سهار، د ماز یګر، د ماښام، او د ماخوستن، د فرضو نیت څنګه کړی دی ؟

**(۱۵) سوال** : یو اځې لمونځ کونکې به د ماز یګر په لمانځه کې په زړه کې د کوم کوم شي نیت کوي ؟ جواب د ایت او یا د حدیث صحیح صریح غیر معارض څخه پیش کړئ.

**(۱٦) سوال** : مقتدي چې د ماز یګر لمونځ په جماعت باندې ادا کوي هغه ته رسول الله ﷺ په حدیث کې د رکعتونو، فرض وقت، قبلې و غیره کومو کومو شیانو د نیت امر کړی دی؟ صحیح حدیث وښایئ!

**(۱۷) سوال** : په زړه کې به نیت کله کوئ؟ د تکبیر تحریمه څخه مخکې اوکه وروسته؟ او ترکومه پورې به دا نیت باقي وي؟ تر سلامه پورې او که تر کومه پورې؟ د صحیح حدیث څخه جواب را کړئ.

**(۱۸) سوال** : تکبیر تحریمه فرض دی؟ که واجب دی؟ او که سنت دی او که مستحب دی؟ تکبیر تحریمه که قصداً پاتې شو څه حکم یې دی؟ او که سهوا پاتې شو څه حکم یې دی؟ حکم یې صراحةً په ایت یا په حدیث کې وښائي.

**(۱۹) سوال** : تکبیر تحریمه دامام لپاره په اوچت اواز سنت ده او دمقتدي لپاره په پټه سنت ده دا حکم په حدیث کې وښائي؟

**(۲۰) سوال** : یوائې لمونځ کونکي ته تکبیر تحریمه جهراً سنت ده او که سراً؟ رسول الله ﷺ په دې باره کې څه فرمایلي دي؟ د تکبیر سره د جهر او یا د سر لفظ د رسول الله ﷺ څخه ثابت کړئ.

**(۲۱) سوال**: د تکبیر تحریمه سره رفع الیدین ته رسول الله ﷺ فرض ویلي دي او که سنت؟

**(۲۲) سوال** : که چا د تکبیر تحریمه سره رفع الیدین و نه کړل لمونځ یې باطل دی او که مکروه؟ رسول الله ﷺ څه فیصله کړی ده؟ د رسول الله ﷺ صریحي فیصله وښائي چې یا یې ورته باطل ویلي وي او یا مکروه

**(۲۳) سوال** : د تکبیر تحریمه څخه وروسته تاسو لاسونه په سینه باندې ږدئ نو دا فرض دي، او که سنت دي او که واجب؟ رسول الله ﷺ څه فیصله کړی ده؟ صحیح صریح حدیث وښائي، چې د فرض یا د سنت یا د واجب لفظ د سینې سره یو ځای په کې وي.

**(۲٤) سوال** : کوم سړی چې د نامه څخه لاندې لاسونه کیږدي، د هغه لمونځ باطل دی او که مکروه؟ صریح حدیث وښائي چې رسو الله ﷺ د باطل یا مکروه لفظ ذکر کړی وي، ستاسو اجتهادي فیصلې ته اعتبار نشته ځکه چې په تاسو کې مجتهد نشته او نه اجتهاد منئ!

**(۲۵) سوال** : دلاسونو د تړلو څخه وروسته د ثناء ویل ، ستاسو په نیز فرض دي؟ او که واجب دي؟ او که سنت دي؟ صریح حدیث پیش کړئ !

**(۲٦) سوال:** دامام لپاره ثناء جهرا سنت ده او که سرا ؟ صحیح صریح مرفوع حدیث پیش کړئ.

**(۲۷) سوال:** په کوم صحیح، صریح، غیر معارض حدیث کې دا حکم شته چې مقتدیان دې ثناء سِراً وایي؟

**(۲۸) سوال:** په یو حدیث کریمه کې دي چې: د رسول الله ﷺ یو مقتدي صحابي د استفتاح دعا، په اوچت اواز لوستله، رسول الله ﷺ ورته خوشخبري ورکړه، چې دولسو فرشتو ستا دعا پورته کوله، غیر مقلد مقتدي په دې حدیث ولې عمل نه کوي؟ او ثناء ولې په اوچت اواز سره نه وائي ؟ په [نسائی مترجم / ص ۳۵٦ /ج ۱/ ص ۳۰۰ او په مسلم اردو/ج۲/ص ۳ ] کې د جهر ذکر دی.

**(۲۹) سوال** : د رسول الله ﷺ څخه د ثناء په باره کې دولس صیغې ثابتي دي، نو رسول الله ﷺ د ټولو صیغو د لوستلو او یادلو حکم کړی دی او که نه دیوی خاصې ثناء تعین خپله رسول الله ﷺ کړی دی؟ یعنې رسول الله ﷺ په کوم ځای کې فرمایلي دي چې دا فلانکۍ ثناء لولئ او باقي یوولس مه لولئ؟.

**(۳۰) سوال** : ددې دولسو ثناګانو لپاره درې طریقې دي ، یو دا چې یوه هم ونه لولئ، دوهم دا چې دولس واړه ولولئ، دریم دا چې یوازې یوه یکې ولولئ او یوولس پریږدئ، په حدیث کې کومې طریقې ته بهتره ویلی شوی ده ؟ دا مې فیصله به نه پیش کوئ چې فلان عالم په فلان کتاب کې یوې ته قوي ویلې دي او نورو ته یې ضعیف ویلي دي او یا فلان عالم ویلي دي چې په ټولو عمل روا دی، ځکه امتي چې دا فیصله کوي نو خامخا مجتهد به وي او د مجتهد خبره منل خو تقلید دی او تقلید خو ستاسو په نزد شرک دی، نو صرف د رسول الله ﷺ فیصله پیش کړئ.

**(۳۱) سوال:** د رسول اللهﷺ څخه خو دولس واړه ذکرونه ثابت دي، لکن د امر صيغه صرف د(سبحنک اللّٰهُمَّ الخ) په باره کې راغلى ده، نو دنورو په باره کې صيغه دامرپه کوم ځاى کې راغلې ده ؟

**(۳۲) سوال:** ايادرسول اللهﷺ څخه وروسته خلفاو و رضى الله عنهم د(سبحنک اللّٰهُمَّ) څخه بغيرپه بلې کومې ثنا باندې مواظبت کړى دى ؟ په جواب کې صحيح، صريح، غيرمعارض حديث پيش کړئ!

**(۳۳) سوال:** که کوم سړى ثناءونه لوستله لمونځ يې صحيح دى اوکه باطل دى اوکه مکروه ؟ رسول اللهﷺ په څه شي باندې تصريح کړى ده ؟ اوهمدارنګه که په قصد چاپريښودله څه حکم يې دى ؟ اوکه په سهوه ترينه پاتې شوه څه حکم يې دى ؟

**(۳٤) سوال:** که کوم سړى د ثناء په ځاى التحيات الخ ولولي نو لمونځ به دوباره کوي؟ اوکه سجده سهوه به کوي؟ رسول اللهﷺ څه فيصله کړې ده ؟

**(۳۵) سوال:** په کوم صحيح، صريح، غيرمعارض حديث کې صراحةً راغلي دي چې رسول اللهﷺ د ثناء پسې متصلا (اعوذبالله من الشيطن الرجيم) لوستلې ده؟ .

**(۳٦) سوال:** اعوذبالله لوستل په لمانځه کې فرض دي، که واجب دي اوکه سنت دي؟ رسول اللهﷺ په څه شي تصريح کړى ده؟

**(۳۷) سوال:** رسول اللهﷺ صحابه وو رضى الله عنهم ته اعوذبالله د لمانځه څخه مخکې ورخودلې ده اوکه د لمانځه په مينځ کې يې د رسول اللهﷺ څخه اوريدلې وه ؟

**(۳۸) سوال:** اعوذبالله الخ په لمانځه کې جهراً سنت ده اوکه سراً؟ صريح حديث پيش کړئ!

**(۳۹) سوال:** ايارسول اللهﷺ په دوهم، په دريم او په څلورم رکعت کې د اعوذبالله د لوستلو څخه منع کړې ده؟ د(اذاقرات القران فاستعذبالله) څخه څه شى ثابتيږي ؟

**(٤۰) سوال** : عبدالله بن زبیر﷛ په جماعت باندې لمونځ ورکولو او جهراېې اعوذبالله ولوستله، دعبدالله بن زبیر﷛ اودده دمقتدیانو دالمونځ صحیح دی اوکه مکروه؟ په حدیثوکې صراحةً څرنګه فیصله شوې ده ؟

**(٤۱) سوال** : بعضې غیرمقلدین دجماعت په وخت کې لیدل کیږي چې ددوی امام بسم الله الرحمن الرحیم په اوچت اواز(جهرا) لولي او مقتدیان یې په پټه (سِراً) لولي، نو ایاپه کوم صَحیح حدیث کې دافرق موجود دی، چې دامام لپاره بسم الله الرحمن الرحیم جهراً سنت ده او دمقتدي لپاره سِراً سُنت ده ؟

**(٤۲) سوال**: رسول الله ﷺ او خلفاء راشدینو په جهري بسم الله مواظبت کړی دی او که په سري بسم الله؟

**(٤۳) سـوال** : عبدالله بن عباس﷛ بسم الله بالجهرته د څنګلیانو فعل ویلی دی (مصنف ابن ابی شیبه ،ج ۱ص ٤۱۱) نو دده دافیصله صحیح ده او که غلطه؟ په جواب کې ایت یاحدیث پیش کړئ !

**(٤٤) سوال** : حافظ زیلعي رحمه الله په نصب الرایه او علامه ابن تیمیه رحمه الله په فتاوی کې فرمائي چې: کله چې امام دارقطني دبسم الله بالجهر روایات راجمع کړل او یوه رساله یې ولیکله نو بعضې مالکیه ورته راغلل او قسم یې ورته ورکړو چې په دې کې صحیح احادیث شته او که نه؟ نو امام دارقطني رحمه الله اعتراف وکړو چې :(کل ماروي عن النبي ﷺ في الجهربالتسمیة فلیس بصحیح). [ج ۱ص ۳۵۸، وص ۳۵۹].

یعنې دجهر دبسم الله ټول احادیث ضعیفه دي، نو دا امام دارقطني رحمه الله ، امام ابن تیمیه رحمه الله اود حافظ زیلعي رحمه الله دافیصله صحیح ده او که غلطه ؟په صحیح حدیث جواب راکړئ!

**(٤۵) سوال** : په بخاري او په مسلم شریف کې د جهر د بسم الله یو روایت هم نشته، نو که دجهرپه باره کې صحیح حدیث وی، امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله ولې نه ذکر کاوه؟ حالانکه امام بخاري رحمه الله په احنافو باندې په اعتراض کولو کې ډیره دلچسپي لري .

**(٤٦) سوال** :په لمانځه کې قيام فرض دی ځکه چې الله ﷻ امر کړی دی چې (قوموا لله قانتين)

همدارنګې رکوع او سجده فرض ده، ځکه چې الله ﷻ امر کړی دی چې ( واركعوا واسجدوا....) نو چې سورة فاتحې ته تاسو فرض وايي، نو الله ﷻ په کوم ځای کې د سورة فاتحې دلوستلو امر کړی دی ؟

**(٤٧) سوال** : د قران کريم په کوم ايت کې راغلي دي چې د امام پسې د سورة فاتحې لوستل فرض دي او دباقي يو سلو ديارلسو سورتونو لوستل منع او حرام دي ؟.

**(٤٨) سوال**: دبخاري او د مسلم په کوم حديث کې صراحةً راغلي دي، چې د امام پسې د سورة فاتحې لوستل فرض دي او دباقي قران لوستل منع او حرام دي او کوم مقتدي چې سورة فاتحه و نه لولي لمونځ يې باطل او حرام دی ؟

**(٤٩) سوال** : رسول الله ﷺ چې د خپلې مبارکې زندګۍ اخري لمونځ په جماعت باندې کولو او دنبي کريم صلى الله عليه وسلم څخه مخکې ابوبکر رضی الله عنه امامتي کوله او سورة فاتحه يې مخکې لوستلې وه، نو ايا رسول الله ﷺ دوباره سورة فاتحه لوستلې وه او که نه ؟

**(٥٠) سوال** : الله ﷻ فرمائي : وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَاَنْصِتُوْا، الايه ، او کله چې ولوستلی شي قران نو غوږ کيږدئ تاسې هغه ته او چپ اوسئ تاسې، لپاره ددې چې رحم درباندې وشي، ددې تشريح صحابه وو داسې کړې ده .

**حاصله**: چې دا ايت دلمانځه په باره کې نازل شوی دی او د امام او د مقتدي وظيفه يې جدا کړې ده پداسې طريقه چې: په دې ايت کې د امام وظيفه . (قرات کول دي ) او د مقتدي وظيفه : ( چپ ودريدل دي )

يعنې مقتدي به د امام پسې الحمد لله او بل سورة نه لولي دا تشريح لاندې صحابه وو او تابعينو ( رضوان الله تعالى عليهم ) کړې ده:

(١) عبدالله بن مسعود ﷺ :(تفسیرابن جریر،ج ٩ص ١٠٣) .

(٢) عبـدالله بـن عبـاس ﷺ: (تفسـیرابن کثـیر،ج ٢ص ٢٨ ) (تفسـیرابن جریـر،ج ٩ص ١٠٣)(تفسیرروح المعانی ،ج ٩ ص ١٥٠) ( کتاب القرات ص ٨٨ )

(٣) حضرت مقدادبن اسودﷺ :(تفسیرمظهری ،ج ٣ص ٥٠٧)

(٤) امام مجاهدرحمه الله :(تفسیرابن جریر،ج ٩ ص ١٠٣) (تفسیرابن کثیر،ج ٢ص ٢٨١ )(کتاب القرائت ،ص ١٠ )

(٥) حضرت سعیدبن المسیب رحمه الله :(تفسیرابن جریر ، ج ٩ص ١٠٣ ) ( کتاب القرائت ،ص ١٩ )

(٦) حضرت سعیدبن جبیرﷺ : ( تفسیرابن جریر،ج ٩ ص ١٠٣ )(تفسیرابن کثـیر،ج ٢ص ٢٨١ )( کتاب القرائت ،ص ٩١)

(٧) حضرت حسن بصري رحمه الله :

(٩،٨)حضرت عبیدبن عمیر او حضرت عطـاء بـن ابی ربـاح رحمهـم الله: (تفسـیرابن جریر،ج ٩ص ١٠٣)

(١٠- ١٦ ) حضرت ضحاک ،ابراهیم نخعی قتادة ،شعبی ،سـدی ،عبـدالرحمن بـن زیـدبن اسـلم رحمهم الله تعالی.(تفسیرابن کثیر،ج ٢ص ٢٨١)

(١٧) حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله: (مغنی ابن قدامه ص ٦٠٥ ج ١) و(فتاوی ابن تیمیه ،ج ٢ص ١٢٨)

(١٨) جمهورصحابه تابعین اوتبع تابعین رضی الله عنهم : (فتاوی کبری لابن تیمیه ،ج٢ص ١٦٨).

(۱۹) اوهمدا مختاره ده دصاحب د( ۱ تفسیرکشاف (ج۱ص ۲۳ ) (۲ تفسیرمظهری (ج ۳ص ۵۰۷ ) ( ۳ تفسیر بیضاوی ( ص ۳۰۸ /٤ تفسیرروح المعانی / ج ۹ ص ۱۵۱/ ۵ معالم التنزیل / ۶/۲۷۲ مغنی ابن قدامه ،ج ۱ص ۷/۶۰۵ ابوالسعود/ج٤ص ۵۰۳ /۸ /فتاوی الکبری لابن تیمیه/ج ۲ص ۱۶۸) وغیره ده.

نوددې ایت لپاره دا ددومره صحابه وواوتابعینواوتبع تابعینو او مفسرینو داتشریح صحیح ده او که غلطه ده ؟ په جواب کې صحیح حدیث پیش کړئ.

**(۵۱) سوال** : په کوم صحیح حدیث کې راغلي دي چې مذکو رایت کریمه دکافرانو په باره کې نازل شوی دی مسلمان دی وربانديې عمل نکوي ؟.

**(۵۲) سوال:** غیرمقلدین وائي چې داایت کریمه دخطبې په باره کې نازل شوی دی .حالانکې داایت کریمه مکي دی، نوپه کوم صحیح حدیث کې راغلي دي چې په مکه کې ددې ایت دنزول په وخت کې دجمعې دلمانځه خطبه لوستل کیده ؟

**(۵۳) سوال :** کوم مقتدي چې دامام سره په رکوع کې شریک شي هغه نه خپله فاتحه لوستلي وي او نه یې دامام څخه اوریدلي وي ، نو ایا رسول الله ﷺ ده ته ددې رکعت دراګرزلو حکم کړی دی ؟

**(۵٤) سوال** : مقتدي چې دامام سره په رکوع کې شریک شي نوستاسو په نیزخودده څخه فرض پاتې شو ( قرائت خلف الامام ) نورسول الله ﷺ خپله ددې مقتدي په باره کې څه فیصله کړی ده؟

**(۵۵) سوال** : رسول الله ﷺ په یو ځای کې فرمائي چې د الحمد لله څخه بغیر لمونځ نه کیږي ( لاصلوة الابفاتحة الکتاب) په بل ځای کې فرمائي چې دخطبې څخه بغیر د جمعې لمونځ نه کیږي (لاجمعة الا بخطبة). نو په دویم حدیث کې خوټول امت ستاسو په شمول داوائي چې هرسړی دې ځانته ځانته خطبه نه لولي، بلکې دخطیب خطبه دټولو مقتدیانو لپاره کافي ده برابره خبره ده چې هغه دخطیب اوازاوري او که نه یې اوري، اوبرابره خبره ده چې دخطبې دلوستلو په وخت کې موجودوي او که دخطبې

دختميدلوڅخه وروسته راغلي وي، نوخطيب چې خطبه ولوستله، دټولو مقتديانوله طرفه اداءشوه، مقتديان دې يې ځانته ځانته نه لولي، نوپه اول حديث کې هم همدا حکم دی چې هرسړی دې ځانته ځانته الحمدلله نه وائي، بلکې دامام الحمدلله دټولو مقتديانو لپاره کافي ده، برابره خبره ده چې هغه دامام اوازاوري اوکه نه يې اوري، دالحمدلله دلوستلوپه وخت کې موجودوي اوکه وروسته راغلي وي اوپه رکوع کې شريک شوي وي.

نوسوال دادی: چې په اول حديث کې تاسودامام فاتحه دمقتديانو لپاره کافي نه ګڼئ! اوپه دوهم حديث کې دامام خطبه د مقتديانو لپاره کافي ګڼئ! حالانکې عربی الفاظ ددواړوحديثونويوشی دي؟ نودا فرق رسول الله ﷺ په کوم ځای کې کړی دی؟ صحيح حديث پيش کړئ؟ چې رسول الله ﷺ فرمايلي وي چې د(لا خطبة) او د(لاصلوة) په منځ کې يې فرق کړی وي؟

**(٥٦) سوال**: په يوشپه اوورځ کې اولس (١٧) رکعته لمونځ فرض دی، غيرمقلدين په شپږورکعتونوکې دامام پسې په اوچت اوازباندې امين وائي اوپه يولسوررکعتونوکې دامام پسې په پټه امين وائي، نو يو صحيح، صريح، غيرمعارض حديث داسې پيش کړئ چې رسول الله ﷺ په شپږورکعتونوکې دامام پسې جهراً امين ته سنت ويلي وي اوپه يولسوررکعتونوکې يې دامام پسې سراً امين ته سنت ويلي وي.

**(٥٧) سوال**: يو صحيح، صريح، غيرمعارض حديث پيش کړئ، چې په پوره درويشت کاله دوره دنبوت کې درسول الله ﷺ کوم صحابي صرف يوه ورځ درسول الله ﷺ پسې په شپږورکعتونوکې جهراً (په اوچت اواز) امين ويلی وي اوپه يولسوررکعتونوکې يې سراً (په پټه) امين ويلی وي، يعنې دټولو اولسوررکعتونوحکم حديث کې وښائی؟

**(٥٨) سوال**: يو صحيح، صريح، غيرمعارض حديث پيش کړئ چې په هغې کې صراحةً راغلی وي، چې په پوره ديرش کاله دوره دخلافت راشده کې په زرګونوصحابه وو کې صرف يوصحابي صرف يوه ورځ په

شپږو رکعتونو کې جهراً امين ويلی وي او په يو ولسو رکعتونو کې يې سراً امين ويلی وي. يعنې يو اځې شپږو رکعتونو حال مه بيانوئ، بلکې د يولسو نورو رکعتونو حکم هم صراحةً په حديث کې وښائي.

**(٥٩) سوال** :صرف يو صحيح، صريح، غير معارض حديث پيش کړئ چې رسول الله ﷺ فرمايلي وي، چې د امام لپاره هميشه په شپږو رکعتونو کې امين جهراً سنت دی او په يولسو رکعتونو کې سراً سنت دی ؟

**(٦٠) سوال** :يو صحيح، صريح، غير معارض حديث پيش کړئ چې کوم خليفة راشد د خپل امامت په دوران کې صرف يوه ورځ په شپږو رکعتونو کې امين جهراً ويلی وي او په يو ولسو رکعتونو کې يې سِراً ويلی وي؟

**(٦١) سوال** : يو صحيح، صريح، غير معارض حديث پيش کړئ چې کله چې اهلحديث مقتدي قرائت خلف الامام کوي، او په جماعت کې په داسې حال کې شريک شي، چې امام ولا الضالين ته رسيدلی وي نو ايا د دې مقتدي لپاره د وه ځلې امين ويل سنت دي؟ يعنې يو ځلې د امام سره په اوچت اواز د خپلې فاتحې ځخه مخکې او دوهم ځلې خفيةً د خپلې فاتحې په اخر کې ؟او که صرف د امام سره د خپلې فاتحې ځخه مخکې ؟او که صرف د خپلې فاتحې په اخر کې ؟.

**(٦٢) سوال** : يو صريح حديث پيش کړئ چې د مقتدي ځخه چې کوم رکعتونه تيرشوي وي او د امام د سلام ځخه وروسته يې کوي د هغه لپاره أمين خفيةً سنت دی .

**(٦٣) سوال** :د غير مقلدينو مشهور مناظر مستري نور حسين په خپله رساله .( امين بالجهر) ص ١٨ کې ليکي چې عبد الله بن عمر رضی الله عنهما هميشه امين بالجهر کولو او نورو ته به يې هم په أمين بالجهر باندې امر کولو. (او حواله يې په بخاری ورکړې ده (جلد اول ص ١٠٨) حالانکې دا باطل او دروغ دي، د بخاري په دې روايت کې د جهر لفظ بالکل نشته، نو د غير مقلدينو ځخه پوښتنه کوو چې تاسو خو خپلې هرې خبرې ته د قران او حديث خبره وائې نو رسول الله ﷺ (معاذ الله) په کوم ځای کې په دومره دروغو او تحريفونو باندې امر کړی دی ؟

**(٦٤) سوال:** صحابه وو او تابعينو رضوان الله عنهم چې کله دا ملکونه فتحه کړل او دی خلکو ته يې لمونځ وروښودلو، نو امين بالجهر يې ورښودلی و او که امين بالخفيه يې ورښودلی وو؟.

**(٦٥) سوال** :په هندوستان باندې دانګريزانو د تسلط څخه مخکې په دې ملکونو کې دولس سوه کاله مسلمانانو لمونځ کولو نو کوم يو پکې امين بالجهر ويلی دي ؟.

**(٦٦) سوال:** دغير مقلدينو (وهابيانو) مشهور مؤرخ امام خان نوشهروي ليکلي دي چې (مولنا شافخر اله ابادي اول ځلې دډهلې په جامع مسجد کې امين بالجهر وويلو او د تقليد بکارت يې مات کړو)) نقوش ابو الوفا ص ۳۴) او دا دانګريزانو دوره وه، نو ستاسو امين دده په تقليد کې امين بالجهر شو او که امين بالشر؟.

دوهم امين بالجهر دانګريزانو يو ملازم حافظ محمد يوسف پنشنز (انګريزي ملازم) وويلو (نقوش ابو الوفا ص ۴۲: او دده څخه وروسته پدې مسئله کې جګړې شروع شوې، نو اياد اامين بالجهر دی او که امين بالشر؟ او دغه دامين بالشر لوستونکی ملازم بيا د قاديانيت په حال کې مړ شو .(اشاعت السنة ص ۱۱۴، ج ۲۱)

دامين بالجهر په مسئله کې اوله چيلنج بازي او اشتهار بازي مولوی محمد حسين بټالوي شروع کړه، محمد حسين بټالوي د مرزا غلام احمد قادياني سره ډير امداد کړی وو او دهغه څخه يې ډيره دُعا اخستې وه.(اخبار اهلحديث امرتسر ص ۹ کالم ۱ يو ديرشم جنوري ،۱۹۰۸)

بيا نور دفتنې بازار پکې مولوي ثناء الله ګرم کړو، هغه مولوي ثناء الله چې په خپله فتاوی کې يې ليکلي دي چې (زما مذهب او عمل دادی چې دهر کلمه ګوي پسې لمونځ جايز دی، شيعه وي او که قادياني) (کافر) .(اخبار اهلحديث ص ٦ _ ٦١٩١٥) ۱۲ اپريل)

دهغه څخه وروسته ورباندې عبدالله روپړي زورنه ووهل، هغه عبدالله روپړي چې دده په باره کې میاشرف الدین(وهابي)لیکي چې (هغه لاعلم ،حاسد ،خودغرضه،کافرګر اود صراط مستقیم څخه منحرف وو)

**(٦٧) سوال :** همدغه مشهورغیرمقلدمناظرعبدالله روپړي کتاب لیکلی دی، په نامه دہ (اہلحدیث کے امتیازی مسائل )

ددې کتاب په شپږاویایمه صفحه کې یې لیکلي دي چې دابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چې کله رسول الله ﷺ( غیرالمغضوب علیهم ولاالضالین )ولوستلو ، نو ورپسې یې امین وویلوتردې چې داول صف صحابه وواوریدلو ( رواه ابوداودوابن ماجه ). او ابن ماجه ویلي دي چې رسول الله ﷺ چې کله سورة فاتحه ختمه کړه نو امین یې وویلوتردې چې مخکې صف واوریدلوبیا په مسجد کې کړنګار جوړ شو ،صاحب دنیل الاوطارلیکلي دي چې داحدیث دارقطني هم روایت کړی دی او اسنادته یې صحیح ویلي دي ،اوحاکم هم روایت کړی دی، او دبخاري او دمسلم په شرط یې ورته صحیح ویلي دي اوبهیقی هم روایت کړی دی اوحسن یې ورته ویلي دي.

## دشوکاني او دعبدالله روپړي فریبونه

(۱) دابن ماجه په دې حدیث کې داالفاظ هم شته چې ( فترک النـاس التـامین ) یعنې ټولو خلکو صحابه وواو تابعینو امین پریښو دلو ، دا لفظ نه رانقلوي ، نو دا کتمان سبیل الیهود دی اوکه نه ؟

(۲) ددې حدیث یـو رواي بشیربن رافـع نهایت ضـعیف دی ( میزان الاعتـدال ،ج ۱ص ۱۴۷) دده ضعف نه بیانوي، نو دا کتمان سبیل الیهود دی اوکه نه ؟

(۳) ددې حدیث یوراوي (ابن عم ابی هریرة ﷺ ) مجهول دی دوي داخبره پټوي، نو دا کتمان سبیل الیهود دی اوکه نه ؟

(۴)په دارقطني کې دمسجد دکړنګهار حدیث بالکل نه شته ، نو سندته به یې څرنګه صحیح ویلي وي ؟.

(۵) په مستدرک حاکم کې هم نشته، نو څرنګه به یې داویلي وي چې دادبخاري اود مسلم په شرط صحیح دی؟

(٦) په بهیقي کې هم داحدیث نشته، نو په یو حدیث کې درې دروغ اودرې دوهکې قران دی اوکه حدیث؟

**(٦۸) سوال :** غیرمقلدین دامین بالجهرلپاره دابوداود څخه یو روایت دوائل بن حجر ﷺ پیش کوي، په دې روایت کې سره ددې چې ضعیف دی، ځکه چې یو روای یې سفیان دغیرمقلدینو په نیزمدلس دی ،بل علاء بن صالح شیعه دی، بل محمدبن کثیرضعیف دی ،اوددې څخه وروسته خپله وائل بن حجر ﷺ وضاحت کوي چې دا امین یې په ټول عمرکې درې ځلې وویلو، مجمع الزواید، ج ۱ص ۸۷ او ځکه چې ( ماأراه الایعلمنا ) یعنې دادرې ځله امین صرف دلمانځه د ښودلو لپاره وؤ، لکه دماشومانو دتعلیم لپاره چې استاذ په جهرلمونځ کوي .التعلیق الحسن ،ج ۱ص ۹۲) کتاب الکنی والاسماء ص ۱۹٦ج ۱ نودوائل بن حجر ﷺ دافیصله صحیح ده اوکه غلطه ده ؟په جواب کې صحیح حدیث پیش کړئ .

**(٦۹) سوال:** غیرمقلدین بل دلیل دامین بالجهرلپاره دام الحصین رضی الله عنهما حدیث پیش کوي. حالانکې ددې حدیث په سند کې نضربن شمیل متعصب دی ،هارون الاعورغالي شیعه دی ،اسماعیل بن مسلم ضعیف دی ،ابن ام الحصین مجهول دی ( تهذیب التهذیب ،ج ۱ص ۳۲۲) نوغیرمقلدین ددې حدیث صحت دقران اود حدیث څخه څرنګه ثابتوي ؟

**(۷۰) سوال :** رسول الله ﷺ چې دخپلې مبارکې زندګۍ اخري لمونځ ته اول حضرت ابوبکرصدیق ﷺ مخکې کړو په هغې کې یې امین جهراً ویلی وو اوکه سراً؟.

**(۷۱) سوال :** که امام دظهراویادعصرپه لمانځه کې فاتحه اوسورت په اوچت اوازولوستلو، لمونځ یې فاسددی او که مکروه ؟.

**(۷۲) سوال** : که امام د مغرب، د عشاء، او د فجر په لمونځونو کې فاتحه او سورة سراً ولوستلو لمونځ يې فاسد دی او که مکروه؟

**(۷۳) سوال** : که يو سړي اول سورت او بيا فاتحه ولوستلی نو سجده سهوه پرې واجبيږي او که نه؟.

**(۷٤) سوال** : د سورة فاتحې څخه وروسته د سورت لوستل فرض دي او که واجب دي او که سنت؟ صراحةً يې په حديث کې وښائي.

**(۷۵) سوال** : د قرائت تعريف په قران او په حديث کې څرنګه شوی دی؟ او همدارنګې د جهر او د سر تعريف څرنګه شوی دی؟

**(۷٦) سوال** : په خلافت راشده، خلافت أموي، خلاف عباسي، خلافت خوارزمي، خلافت سلجوقي او په خلافت ترکي کې په مسجد نبوي کې امين بالجهر لوستل کيده او که امين بالسر؟

**(۷۷) سوال** : د سهار په سنتونو کې قرائت جهراً سنت دی او که سراً؟ صحيح صريح حديث پيش کړئ!

**(۷۸) سوال** : د سهار فرض چې يواځې کوی نو قرائت جهراً سنت دی او که سراً؟ صريح حکم د رسول الله ﷺ پيش کړئ.

**(۷۹) سوال:** د رسول الله ﷺ څخه په بعضې وختونو کې د بعضې خاصو سورتونو لوستل ثابت دي، نو ايا د دغې سورتونو لوستل سنت دي او که ندي؟ او که چا د دې سورتونو څخه علاوه بل سورة ولوستلو لمونځ يې خلاف سنت دی او که نه دی؟ په جواب کې صحيح او صريح حديث پيش کړئ.

**(۸۰) سوال** : په لمانځه کې په امام باندې درې سکتات: يوه د فاتحې څخه مخکې، يوه د فاتحې څخه وروسته، او يوه د سورة څخه وروسته واجب ده او که نه ده؟ او کوم امام چې دا سکتات ونکړي د هغه پسې لمونځ خلاف سنت دی او که نه دی؟.

**(۸۱) سوال** : ركوع ته د تللو څخه مخكې رفع اليدين سنت مؤكد دي ؟ او كه سنت غير مؤكد؟ په حديث كې يې څه حكم دى؟

**(۸۲) سوال** : كوم سړى چې رفع اليدين ونه كړي لمونځ يې وشو او كه نه؟ په صريح حديث كې يې حكم بيان كړئ چې رسول الله ﷺ ويلي وي چې ياپې مونځ شوى دى او ياندى شوى .

**(۸۳) سوال**: غيرمقلدين وايي چې د عشره مبشره وو څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ د خپل مبارك عمر تر پايه پورې رفع اليدين كړي دي. نو د عشره مبشره وو دا رواياتونه په صحيح سند د توثيق د روايتونو سره پيش كړئ !

**(۸٤) سوال** : غيرمقلدين وائي چې د رفع اليدين لپاره څلور سوه احاديث او اثار دي، د دې څلورسوه صحابه وو نومونه څه دي ؟

**(۸۵) سوال** : يو صحيح، صريح، غير معارض حديث پيش كړئ چې په هغې كې راغلي وي چې د امام لپاره ركوع ته د تللو په وخت كې الله اكبر په اوچت اواز سُنت دى او د مقتدي لپاره يې په پټه ويل سنت دي.

**(۸٦) سوال** : يو حديث صحيح، صريحه غير معارضه پيش كړئ چې په هغې كې صراحةً راغلي وي چې په ركوع كې سبحان ربى العظيم سراً ويل سُنت دي

**(۸۷) سوال** : د رسول الله ﷺ څخه په ركوع كې اوه قسمه تسبيحات روايت شوي دي، په دوي كې يې مواظبت په كوم يو كړى دى؟ صريح حديث پيش كړئ !

**(۸۸) سوال**: ايا رسول الله ﷺ د ( فسبح باسم ربک العظيم ) د نزول څخه وروسته كومه تسبيح ويلې ده؟ ايا د سبحان ربى العظيم او سبحان ربى الاعلى څخه بغيرې بله كومه تسبيح ويلى ده ؟

(۸۹) **سوال:** که کوم سړی سهواً په رکوع کې سبحان ربی الاعلی ووايي سجده سهوه ورباندې لازميږي او که نه ؟

(۹۰) **سوال:** که کوم سړی په رکوع کې په اوچت اواز باندې سبحان ربی العظيم ووائي لمونځ يې باطل دی او که مکروه ؟

(۹۱) **سوال:** د رکوع څخه وروسته په قومه کې د لاسو نو تړل سنت دي او که زوړند نيول ؟ صحيح صريح حديث پيش کړئ !

(۹۲) **سوال:** يو صحيح حديث پيش کړئ چې په هغې کې راغلي وي چې د مقتدي لپاره د رکوع څخه وروسته د قومې ذکر سِراً سُنت دی !

(۹۳) **سوال:** يو صحيح، صريح حديث پيش کړئ چې د منفرد لپاره د رکوع څخه وروسته د قومې ذکر سراً سنت دی ؟

(۹٤) **سوال:** که کوم منفرد يا مقتدي د قومې ذکر جهراً ولولي، لمونځ يې مکروه دی که باطل دی او که صحيح ؟

(۹۵) **سوال:** که کوم لمونځ کونکی په رکوع يا په قومه کې هيڅ ونه لولي لمونځ يې باطل دی او که مکروه ؟ صحيح صريح حديث پيش کړئ.

(۹٦) **سوال:** په وِترو کې د دُعا په شان لاسونه پورته کول او قنوت لوستل، بيا يې په مخ کش کول او سجدې ته تلل، په کوم حديث کې دي ؟

(۹۷) **سوال:** يو صحيح، صريح، غير معارض حديث پيش کړئ چې په هغې کې صراحةً راغلي وي چې سجدې ته د تللو په وخت کې الله اکبر ويل د امام لپاره جهراً او د مقتدي لپاره سِراً سنت دي.

**(۹۸) سوال :** یو صحیح، صریح غیرمعارض حدیث پیش کړئ چې په هغې کې صراحةً راغلي وي چې سجدی ته د تللو او د سجدې څخه د پورته کېدلو لپاره رفع الیدین ته یې ممنوع او حرام ویلي وي.

**(۹۹) سوال:** یو صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث پیش کړئ ، چې د سجدې تسبیحاتو ته یې سِراً سنت ویلي وي.

**(۱۰۰) سوال:** یو حدیث پیش کړئ چې دسجدې تسبیحاتو ته یې جهراً باطل یا مکروه ویلي وي

**(۱۰۱) سوال:** د دواړو سجدو په مینځ کې دعا جهراً سنت ده او که سِراً ؟ صحیح او صریح حدیث پیش کړئ!

**(۱۰۲) سوال :** یو صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث پیش کړئ چې دې دعا ته یې فرض یا سُنت یا واجب او یا نفل ویلي وي !

**(۱۰۳) سوال :** یو صحیح، صریح ،غیرمعارض حدیث پیش کړئ چې د دې دعا ترک ته یې باطل، یا مکروه، یا حرام ویلي وي ؟

**(۱۰٤) سوال :** یو صحیح، صریح غیرمعارض حدیث پیش کړئ چې د دې دعا په ترک باندې یې دسجده سهوی دلزوم یا دعدم لزوم حکم کړی وي.

**(۱۰۵) سوال :** ایا په کوم صحیح، صریح حدیث کې شته ، چې د دواړو سجدو په مینځ کې په گوته باندې اشاره کول منع او حرام دي ؟

**(۱۰٦) سوال :** د مسند احمد په یو حدیث کې د دې اشارې ذکر دی نو غیرمقلدین ولې ورته دخپل عادت مطابق سنت نه وائي ؟ او ولې ورباندې عمل نه کوي ؟

**(۱۰۷) سوال :** ایا په کوم صحیح، صریح حدیث کې شته چې جلسه داستراحة سنت مؤکده ده ؟

**(۱۰۸) سوال :** ایا په کوم صحیح، صریح حدیث کې دا فیصله شوې ده چې د جلسې د استراحت د کولو حدیث قوي دی او د نه کولو حدیث ضعیفه دی ؟

**(۱۰۹) سوال :** امام شعبی رحمه الله چې د سوونو صحابه وو سره یې ملاقات شوی دی؛ فرمائي چې حضرت عمر ﷺ او حضرت علی ﷺ جلسه د استراحت نه کوله . (ابن ابی شیبه ،ج ۱ص ۳۹۴ نصب الرایه ج ۱ص ۳۸۹) . نو ایا دا دې خلفا راشیدینو لمونځ د سنتو څخه مخالف وو ؟.

**(۱۱۰) سوال :** حضرت نعمان بن عیاش رحمه الله فرمائي چې ما ډیر صحابه لیدلي دي چې جلسه د استراحت یې نه کوله . (ابن ابی شیبه/ج ۱/ ص ۳۹۴ )

سوال : نو ایا دې ټولو صحابه وو خلاف سنت لمونځ کولو ؟

**(۱۱۱) سوال :** حضرت ابو قلابه رحمه الله فرمائي چې ما د بوډا (عمرو بن سلمه رحمه الله) څخه بغیر بل هیڅ څوک په جلسه د استراحت ندی لیدلي. (بخاری ،ج ۱ص ۱۱۳)

نو ایا د دې ټولو صحابه وو ، تابعینو او تبع تابعینو لمونځ د سنتو څخه مخالف وو ؟

**(۱۱۲) سوال :** ایا په کوم صحیح، صریح، غیر معارض حدیث کې شته چې د وهم رکعت ته د پورته کیدلو په وقت کې د امام لپاره جهراً الله اکبر سنت دی او د مقتدي او د منفرد لپاره سِراً سنت دی ؟

**(۱۱۳) سوال :** په کوم صحیح، صریح، غیر معارض حدیث کې راغلي دي چې د وهم رکعت ته د پورته کیدلو په وقت کې رفع الیدین کول منع او حرام دي ؟

**(۱۱٤) سوال :** په کوم حدیث صحیحه، صریحه کې شته چې په د وهم رکعت کې د ثناء لوستل منع او حرام دي او که چا ولوستله لمونځ یې باطل او یا مکروه دی؟

**(۱۱۵) سوال** :ددوهم رکعت څخه وروسته قعده فرض ده، که واجب ده او که سنت ده او که نفل؟ صریح حدیث پیش کړئ؟

**(۱۱٦) سوال** :په دې قعده کې تشهد لوستل فرض دي او که واجب دي او که سنت دي او که نفل؟ رسول الله ﷺ ورته څه ویلي دي؟

**(۱۱۷) سوال** :که یو سړي په قعده کې سهوه شي او د التحیات پرځای الحمدلله ووائي لمونځ یې باطل دی او که مکروه؟

**(۱۱۸) سوال** :که څوک تشهد په اوچت اواز ولولي لمونځ یې باطل دی او که مکروه؟

**(۱۱۹) سوال** :دریم رکعت ته د پاڅیدلو په وقت کې د امام لپاره الله اکبر جهراً سنت دی او د مقتدي او د منفرد لپاره سراً سنت دی، یو صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث په دلیل کې پیش کړئ!

**(۱۲۰) سوال** :که یو سړي دریم رکعت ته د پورته کیدو په وخت کې رفع الیدین ونکړي، نو د دهٔ لمونځ باطل دی او که مکروه؟صحیح صریح حدیث پیش کړئ

**(۱۲۱) سوال** :د دریم رکعت په شروع کې که څوک ثناء ولولي لمونځ یې باطل دی او که مکروه؟

**(۱۲۲) سوال** :حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د دریم او څلورم رکعت په اول کې فاتحه او سورة نه لوستل (رواه احمد) نو د ده لمونځ باطل وو که مکروه؟

**(۱۲۳) سوال** :حضرت علی ﷺ فرمائي چې په اولو دوو رکعتونو کې قران لوله او په وروسته دوو رکعتونو کې تسبیح لوله، مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ ص ۴۰۹ مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۱۰۱ دا سې لمونځ صحیح دی او که فاسد؟

(۱۲٤) **سوال:** د فرضو په دریم او په څلورم رکعت کې د فاتحې سره د سورت په یو ځای کولو باندې لمونځ باطلیږي او که نه؟

(۱۲۵) **سوال:** د سنتو او د نوافلو په دریم او څلورم رکعت کې د فاتحې سره د سورة یو ځای کول جایز دي او که نه؟ صریح حدیث پیش کړئ!

(۱۲٦) **سوال:** د څلورم رکعت په شروع کې رفع الیدین جایز دي او که ممنوع؟ که ممنوع ورته وائې نو د ممنوع والي لپاره یې صریح حدیث پیش کړئ؟

(۱۲۷) **سوال:** اخره قعده فرض ده او که واجب ده او که سنت ده او که نفل؟ صریح حدیث پیش کړئ چې رسول الله ﷺ ورته د فرض یا سنت یا واجب یا نفل لفظ ذکر کړی وي؟

(۱۲۸) **سوال:** که د څلورم رکعت څخه وروسته قعده ترینه هیره شوه او پنځم رکعت ته پاڅیدلو، بیا په ولاړه وریاد شو چې قعده ترینه پاتې ده، نو بیرته به کیني؟ او که نه سجده سهوه پرې واجبه ده؟ او که لمونځ یې باطل دی؟ رسول الله ﷺ په دې باره کې څه ویلي دي؟

(۱۲۹) **سوال:** د څلورم رکعت څخه وروسته یې قعده وکړه او بیا پنځم رکعت ته ودریدو، په پنځم رکعت کې ورته یاد شو چې غلط شوی دی، بیرته کیناستو، نو دا سړی به لمونځ څرنګه پوره کوي؟ د صحیح حدیث څخه طریقه وښائې؟

(۱۳۰) **سوال:** اخري قعده یې وکړه، لکن په سهوه پنځم رکعت ته پاڅیدلو، کله یې چې رکعت پوره کړو نو خپله غلطي ورته یاده شوه، نو دا سړی به خپل لمونځ څرنګه پوره کوي؟ رسول الله ﷺ صراحة داته څرنګه چل ښودلی دی؟

(۱۳۱) **سوال:** په اخري تشهد کې د درود شریف لوستل سنت دي او که فرض؟ د صریح حدیث څخه جواب ...

**(۱۳۲) سوال** : درود شریف جهراً سنت دی او که سراً؟په جواب کې صحیح ،صریح حدیث پیش کړئ

**(۱۳۳) سوال** :که درود شریف پاتې شي او سلام وګرځوي د لمانځه څه حکم دی ؟ رسول الله ﷺ د دې لمانځه په باره کې څه ویلي دي ؟ او د سهواً پرېښودلو او د قصداً پرېښودلو څه حکم دی ؟

**(۱۳٤) سوال:** د درود شریف څخه وروسته دُعا فرض ده که واجب ده او که سنت؟ د صریح حدیث څخه جواب رکړئ!

**(۱۳۵ ) سوال** : د درود شریف څخه وروسته دعا جهراً سنت ده او که سراً؟ صحیح حدیث په جواب کې پیش کړئ

**(۱۳٦) سوال:** په دې دعا کې لاسونه پورته کول شته او که نه ؟

**(۱۳۷) سوال** : دلمانځه په اخر کې سلام فرض دی؟ که واجب دی او که سنت دی او که مستحب دی؟ صریح حدیث پیش کړئ چې په فرضوالي، سنتوالي او یا واجبوالي باندې پکې تصریح شوي وي.

**(۱۳۸) سوال:** یو صحیح، صریح، غیر معارض حدیث پیش کړئ چې د امام جهراً سلام ته یې سنت ویلي وي او د مقتدي سِراً سلام ته یې سنت ویلي وي !

**(۱۳۹) سوال:** د رسول الله ﷺ څخه ثابته ده چې د لمانځه څخه وروسته یې ذکر بالجهر کړی دی؟( مشکوة/ج ۱/ص ۸۸ ) نو دا ذکر بالجهر چا منسوخ کړو ؟

**(۱٤۰) سوال:** ایا رسول الله ﷺ د لمانځه څخه وروسته د لاسونو د پورته کولو سره د دعا څخه منع کړی ده؟

**(۱٤۱ ) سوال** : د فرایضو څخه وروسته سنن ،رسول الله ﷺ په مسجد کې کړي دي؟ او که کورته به تلو او هلته به یې کول ؟ که چا په مسجد کې وکړل حکم یې څه دی ؟ او که چا په کور کې وکړل حکم یې څه دی؟

**(۱۴۲) سوال** : نن سبا د خلکو معمول دی چې د فرضو څخه وروسته سنن په مسجد کې کوي، نو دا جایز دي أو که ناجایز؟

**(۱۴۳) سوال** : ایا رسول الله ﷺ هر ورځ د سهار د لمانځه څخه وروسته د قران درس کړی دی او که نه يې دی کړی؟ که کړي يې وي ثبوت پيش کړئ او که نه يې وي کړی، نو بيا داو وائي چې دا طريقه د رسول الله ﷺ څخه څو مره موده وروسته شروع شوه؟ او جایز ده که بدعت؟

**(۱۴۴) سوال** : أيا په صحيح البخاری شريف کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده ؟

**(۱۴۵) سوال** : أيا په مسلم شريف کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده ؟

**(۱۴۶) سوال** : أيا په سنن نسائي کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده ؟

**(۱۴۷) سوال** : أيا په جامع ترمذي کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده ؟

**(۱۴۸) سوال** : أيا په سنن ابی داود کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده ؟

**(۱۴۹) سوال** : أيا په سنن ابن ماجه کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده ؟

**(۱۵۰) سوال** : أيا د صحاح سته وو په کوم کتاب کې د لمانځه طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده ده؟ که جواب نفی وي نو بيا دی شپږو محدثينو لمونځ په کومه طريقه کولو ؟

**(۱۵۱) سوال** : أيا رسول الله ﷺ په خپله نگرانی کې داسې کوم کتاب ليکلی دی چې په هغې کې د لمانځه مکمله طريقه تفصيلاً په ترتيب سره موجوده وي او ترننه پورې په امت کې متداول وي ؟

**(۱۵۲) سوال** : ايا په خلفاء راشدينو کې کوم خليفه راشد په خپله نگرانی کې د لمانځه داسې کوم جامع کتاب مرتب کړی دی چې ترننه پورې ورته تلقي بالقبول حاصله وي ؟

**(۱۵۳) سوال :** په دی امت کې دټولو څخه مخکې چاد لمانځه دطريقې تفصيلي اومرتب تدوين کړی دی؟ چې ترننه پورې متداول وي.

**(۱۵٤) سوال :** کله چې په کورونو يا په مسجدونو کې خلک لمونځونه کوي او کوم يو عالم په لاوډسپيکر باندې تقرير کوي چې د لمونځ کونکو په لمانځه کې خلل غورزوي، نو ددې تقرير جواز په حديث صحيحه، صريحه، غير معارضه کې وښايئ؟

**(۱۵۵) سوال :** مثلاً زيد په عمرو باندې دزنا تهمت ولګولو، يعنې يو سړي په بل سړي باندې دزنا تهمت ولګولو، نو دې تهمت لګونکي ته به څومره حد ورکولی شي؟ داسې ايت يا حديث په جواب کې پيش کړئ چې صراحةً دنارينه وو حکم پکې وي، په ښځه باندې يې مه قياسوئ؟

**(۱۵٦) سوال :** دتعليم يافته سپي دښکار حکم په قران او په حديث کې ذکر شوی دی، اوس که چا زمري، پړانګ، ليوه يا خنزير ته تعليم ورکړو، نو ددې ځناورو ښکار چې وژلي يې وي حلال دی او که حرام؟

**(۱۵۷) سوال:** مږک چې په غوړيو کې وغورزيږي نو ددې حکم خو په حديث کې ذکر شوی دی، ليکن که دپيشو بچې، کوکرۍ، د شادي (بيزو) بچې، چينډخه، کينجاپوړ، مار، نولې، چرمخکې، وغيره په غوړيو کې وغورزيږي نو دغوړيو څه حکم دی، پاک دي او که ناپاک دي؟

**(۱۵۸) سوال:** که په تيلو، په شودو، په شربت، په سرکه، په مستو، يا په تروو (شړومبو) کې مږک مړشي، نو ددې حکم په صحيح، صريح حديث کې وښايئ! په غوړيو قياس مه کوئ؟

**(۱۵۹) سوال:** بيع العنب بالزبيب جايزه ده او که ناجايزه ده؟ د صحيح، صريح حديث څخه جواب راکړئ په بيع الرطب بالتمر باندې يې قياس مکوئ؟

**(۱٦۰) سوال:** رسول الله ﷺ دسروزرو په کاسوا وپيالو کې د خوراک څخه منع کړی ده او حرام يې ورته ويلي دي، ليکن دسروزرو په کوزه باندې اودس کول، دسروزرو دلوښي څخه تيل لګول، د سروزرو

په قلم باندې ليکل کول، دسروزرو په سلائي باندې رانجه کول، د سروزرو د بوتل څخه عطر لګول جايزدي او که ناجايز؟ په جواب کې صحيح صريح حديث پيش کړئ! د قياس څخه کار مه اُخلئ.

**(١٦١) سوال** :رسول الله ﷺ فرمائي چې که څوک قضاى حاجت ته ځي نو ځان سره دې د استنجاء لپاره درې تيګې واخلي، ليکن که څوک په تيګو استنجاء ونه کړي، بلکې په لوټو يې وکړي، يا يې په نوټو يا يې په تشناب کاغذ باندې وکړي نو جايزه ده او که ناجايزه؟ د جواز او يا د عدم جواز صريحي لفظ په حديث کې وښائی او همدارنګې د دې شيانو نونومونه په حديث کې وښائی! په تيګه باندې قياس مه کوئ.

**(١٦٢) سوال** : دوينځو په باره کې د الله ﷻ حکم شته چې که دوي زنا وکړه (فعليهن نصف ماعلي المحسنات من العذاب) ليکن که غلام زنا وکړي، نو ده ته به څومره حد ورکولې شي ؟ صريح ايت يا صريح حديث پيش کړئ، چې د غلام د زنا حد په کې ذکر شوى وي، په وينځه باندې قياس مکوئ.

**(١٦٣) سوال** : دالله ﷻ فرمان دى چې که تاسو د جنابت په حالت کې وئ! او اوبه پيدا نه شوى نو تيمم وکړئ! ليکن ښځه که د حيض يا د نفاس څخه پاکه شي او اوبه نه وي نو دى ښځې ته تيمم جايزدى او که ناجايز؟ صريح ايت يا حديث پيش کړئ، چې د حائضې او نفاسې لفظ پکې وي په جنب باندې قياس مکوئ.

**(١٦٤) سوال** : دالله ﷻ ارشاد دى چې ﴿أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ﴾ الايه.

ترجمه : غايط غټ اودس ماتي ته وائي! يعنې که څوک د غټ اودس ماتي څخه فارغ شي او اوبه پيدا نکړي نو تيمم دى وکړي، ليکن که څوک دوړوکي اودس ماتي څخه فارغ شي، يا يې خروج ريح وشي، يا ستاسو په نيز مس الذکر وکړي، يا مس المرأه وکړي او اوبه پيدا نه شي نو دده لپاره تيمم جايزدى او که ناجايز؟ د صريح ايت يا حديث څخه جواب راکړئ! په غايطو باندې قياس مکوئ

**(١٦٥) سوال**: الله ﷻ فرمائي ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا﴾ يعنې که اوبه پيدا نه شوى، نو تيمم وکړئ، ليکن که اوبه موجودى وي مګر د څښلو لپاره نورې اوبه نه وي، نو اوس که په دې اوبو باندې

اودس وکړي دتندي څخه خرابيږي، يا داوړو د لمدولو لپاره نوري اوبه نه وي ، يا د اوبو د استعمال له وجهې مريض کيدو ، نودې سړي ته په دې حالتونو کې تيمم جايزدی او که ناجايز؟ دصحيح، صريح حديث څخه جواب راکړئ .

**(۱٦٦ ) سوال:** رسول الله ﷺ فرمائي چې که مچ دخوراک په شي کې وغورزيدلو (فـامقلوه ثـم انقلوه ) نو غوپه پکې ورکړئ بيايې ترينه أوباسئ، ليکن که چينډ خه ،ماشې ،مار،کينجاپوړپه اوبو کې وغورزيږي نو اوبه نجسيږي او که نه؟ ددې حيواناتونو مونه صراحةً دجوازيادعدم جوازسره په قران ياپه حديث کې وښائي قياس مه کوئ.

**(۱٦۷) سوال :** الله فرمائي چې کوم سړی چې په حالت د احرام کې عمداً کوم يو حيوان قتل کړي يايې ښکار کړي نوپه ده باندې دم دی، نو د عمد حُکم خو ذکر شو ، ليکن که قتل صيد په خطائي سره وو، نو بيايې څه حکم دي؟ صريح حديث پيش کړئ په عمدباندې قياس مکوئ !

**(۱٦۸) سوال :** نن سباتول غيرمقلدين دميښې غوښه خوري، شودې يې څښي، مستې اوتروې ئې څښي، نوددې دحلالوالي لپاره صريح ايت ياحديث پيش کړئ په اوښ اوغواباندې قياس مه کوئ.

**(۱٦۹) سوال:** الله دقرض په باره کې دشهادت نصاب خودلې دی ﴿وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ﴾ چې دوه سړي دي، يايو سړی اودوه ښځې دي، نواوس سوال دادی چې په ميراث، وصيت، امانت، غصب اوپه نورومالي معاملاتو کې دشهادت نصاب څومره دی ؟ دصحيح حديث څخه جواب راکړئ! داټول معاملات په قرض باندې مه قياسوئ.

**(۱۷۰ ) سوال :** په حديث کريمه کې راغې چې سپې کله په لوخي کې خوله ووهي نواوه ځلې دې ومينځلې شي، لکن سوال دادی چې که سپی په لوخي کې متيازې وکړي،يا پکې غټه گندگي وکړي، يا

ښکې نې وکړي، یا د سپي په وینه ککړ شي، نو څوځلې به مینځلې شي ؟ صریح حدیث پیش کړئ ! په لعابو باندې قیاس مه کوئ!

**(۱۷۱) سوال :** رسول الله ﷺ دالله ﷻ څخه بیا بیا غوښتنه کوله تردې چې په اوه حرفونو د تلاوت اجازت یې حاصل کړو، بیا په عهد عُثماني کې صحابه کرامو بالاتفاق په یو حرف باندې په لوستلو اجماع وکړه، نو اوس سوال دادی چې په کوم ایت کریمه یا په کوم صحیح، صریح، غیرمعارض حدیث کې راغلي دي چې ترعهد عثماني پورې قران په اوو حرفونو ولولئ او بیا تر قیامته پورې یې صرف په یو حرف لولئ، شپږ حرفونه منسوخ دي ؟

**(۱۷۲) سوال :** د رسول الله ﷺ په زمانه کې د شرابي لپاره کوم حد نه وو مقرر، کله به یې په ټیږو وهلو، کله به یې په څادرونو وهلو، کله به یې په څپلیو وغیره وهلو، بیا حضرت عمر رضی الله عنه د صحابه کرامو سره مشوره وکړه، نو په مشوره کې حضرت علي رضی الله عنه خپل قیاس داسې بیان کړو چې : کله شرابي شراب وڅښي، نو دده عقل زایلیږي او بیا افتراګانې کوي او یوې خاصی افتراء ته چې قذف ورته وائي اتیا دورې حد مقرر دی، لهذا شرابي ته دې هم اتیا دورې حد ور کړل شي، نو په دې باندې د ټولو صحابه وو اجماع منعقده شوه، نو اوس سوال دادی چې داسې کوم ایت او یا حدیث شته چې په هغې کې راغلي وي چې ترعهد صدیقي پورې زما په حدیثو باندې عمل وکړئ، لکن په عهدي عمري کې د حضرت علي رضی الله عنه د قیاس له وجهې زما احادیث منسوخ کړئ او تر قیامته پورې د حضرت علي رضی الله عنه قیاس قانون جوړ کړئ ! ؟

**(۱۷۳) سوال :** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې یوه ښځه مړه شوه او ددې ښځې خاوند او مور او پلار ژوندي دي، نو ددې میراث به څرنګه تقسیمیږي؟ نو حضرت زید رضی الله عنه فورا جواب ورکړو چې ددې په مال کې نصف د خاوند دی او د مابقیه ثلث د مور دی او باقي د پلار دي عبدالله بن عباس رضی الله عنهما پوښتنه وکړه چې ایا دا مسئله د قران څخه مأخوذه ده ؟

زيدبن ثابت ﷺ ورته وفرمايل چې دا زما رايه ده، غير مقلدينو! تاسو د دې مسئلې حل د صحيح، صريح، غير معارض حديث څخه پيش کړئ؟

**(۱۷٤) سوال:** زيد د بکر دوه غاښونه مات کړل، نو په زيد باندې څومره ديت دی؟ په جواب کې صحيح، صريح، غير معارض حديث پيش کړئ؟

**(۱۷۵) سوال:** رسول الله ﷺ فرمائي چې د قضايې حاجت په وخت کې قبلې ته مخ او شا مه اړوئ بلکې (شرقوا وغربوا) مشرق يا مغرب طرفته مخ کوئ (بخاری).

نو د بخاري د دې حديث څخه معلوميږي چې قبله مغرب طرفته نه ده، نو اوس که کوم افغانی يا پاکستانی ووائي چې د بخاري د حديث څخه معلوميږي چې قبله مغرب طرفته نه ده، زه د اهل جغرافيه خبره نه منم چې قبله مغرب طرفته ده، په قران يا په حديث کې وښايه چې قبله مغرب طرفته ده، نو غير مقلدين به د دې سړي ته د قران او د حديث څخه څه جواب ورکوي؟

**(۱۷٦) سوال:** الله ﷻ د والدينو په باره کې فرمائي چې: ﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ﴾ اهل قياسو ورته علت أذى بيان کړی ده، معنٰى دا چې والدينو ته ضرر مه رسوئ! نو د مور او د پلار وهل هم حرام دي او کنځل ورته هم حرامې دي، ځکه چې په دې کې هم والدينو ته ضرر رسيږي، نو غير مقلدين چونکې قياس ته د ابليس عمل وائي، نو د دوي څخه پوښتنه کوو چې د مور او د پلار مخ ته لاړې تو کول او په مور او پلار باندې متيازې کول د کوم ايت او حديث له وجهې ممنوع دي؟

**(۱۷۷) سوال:** حضرت عمر ﷺ يوه ښځه د سزاء لپاره راوغوښته، د دې ښځې د ويرې څخه حمل وغورزيدلو، حضرت عمر ﷺ صحابه راجمع کړل او مشوره يې ورسره وکړه. حضرت عثمان ﷺ وفرمايل چې تا يوازې د تأديب اراده کړې وه، نو لکه د چا بچي چې د ويرې څخه مړشي هيڅ سزاء ور باندې نوي،

همدارنګې ته هم برئ الذمه يې، لکن حضرت علی ﷺ ورته وفرمايل چې ته ګناهګار نه يې، مګردا واقعه
قتل خطاء ته ورته ده، فلهذا ته ديت ورکړه، حضرت عمرﷺ احتياطاً د حضرت علي ﷺ د قياس اتباع وکړه.

نوغيرمقلدين چونکې قياس ته د شيطان کاروائي، نوخپله دی قياس نکوي اونه دی دامتي قول په
دليل کې پيش کوئ، بلکې صريح ايت، يا حديث دی پيش کړي چې که د چاد شورله وجهې د ده د ښځې
بچې مړشويايې حمل ساقط شو، نو د دی شرعي حکم څرنګه دی؟

**(۱۷۸) سوال:** رسول الله ﷺ فرمائي چې (لَايَقْضِي الْقَاضِیْ بَيْنَ اِثْنَيْنِ وَهُوَغَضْبَانٌ)

يعنې قاضي دې د غوصې په حالت کې فيصله نکوي، اهل قياس ورته علت راپيدا کوي، چې هغه
اختلاط دعقل دی، نوپه هرځای کې چې اختلاط دعقل وي قاضی دی فيصله نکوي، لکه په حالت دغم
کې، په حالت دويرې کې، په حالت دمرض وغيره کې، نوغيرمقلدين چونکې د قياس څخه منکردي،
نودوي دی دغم، د ويرې او دمرض په حالت کې د قاضی د فيصلې د جواز اويا د ممانعت لپاره صحيح،
صريح، ايت اويا حديث پيش کړي.

**(۱۷۹) سوال:** زيد قسم وکړو چې زه به د بکرد کوريوه کپله ډوډۍ هم نه خورم اونه به يې يوغړپ
اوبه څښم، اوس اهل قياس وائي چې که دی سړي د بکرد کورډوډۍ ونخوړه او اوبه يې ونڅښلي، لکن
روپۍ يې ترينه واخستې، يايې ترينه سره زر او سپين زر واخستل، نوداسړی حانث دی اود قسم کفاره دی
ورکړي، نوغيرمقلدين چونکې د قياس څخه منکردي، نودوي دی په صريح، صحيح حديث باندې ثابت
کړي چې زيد پخپل قسم کې حانث دی او که نه؟

**(۱۸۰) سوال:** زيد قسم وکړو چې زه به د بکرسره خبرې نه کوم، له دې څخه وروسته يې د بکرسره
خبرې ونکړي، ليکن په يوه کاسه يې ورسره خوراک وکړو اويانورداسې کارونه يې وکړل چې هغه د
انډيوالی کارونه وو، اهل قياس فرمائي چې زيد حانث دی، کفاره پرې لازمه ده، غيرمقلدين دی صحيح
،صريح حديث پيش کړي چې دا سړی حانث دی او که ندی حانث؟

**(١٨١) سوال** :کوم ه ښځه چې داستحاضې دوینې له وجهې معذوره وي، نو ددې حکم خوپه حدیث کې ذکرشوی دی، لیکن که ځ کوم سړی رعاف دایم وي ، اویا یې انفلاق الریح وي اویا یې سلسل البول وي، نو اهل قیاس داسړی په مستحاضه باندې قیاسوي او ستاسو په نیز خو قیاس د ابلیس کار دی، له دې وجهې ددې معذورینو لپاره کوم صحیح، صریح، مرفوع، غیرمقطوع حدیث پیش کړئ! چې دوي به څه کوي؟

**(١٨٢) سوال** : زید زینب ته درې طلاقه ورکړل .بیایې د بکر سره نکاح وکړه، بکر وفات شو، یا یې د زینب سره خلع وکړه ، یا یې د محکمې په ذریعه باندې نکاح فسخه کړه او عدت یې تیر شو، نو ددې ښځې نکاح دوباره د زید سره جایزه ده او که نه ده ؟ په طلاق یې مه قیاسوئ! بلکې صریح حدیث پیش کړئ ؟

**(١٨٣) سوال** : دغلام لپاره څو ښځې جایزې دي؟ د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې د صحابه وو رضی الله عنهم په دې باندې اجماع منعقده شوه چې د غلام لپاره د دوو څخه زیاتې ښځې ندي جایزې، لیکن غیرمقلدین خو اجماع نه مني، نو دوي دې صریح ایت یا حدیث پیش کړي چې د غلام لپاره د څو ښځو سره نکاح جایزه ده ؟

**(١٨٤ ) سوال** : غلام د دریو طلاقونو او که د دوو طلاقونو اختیار لري او که دیو نیم طلاق؟ په جواب کې صحیح، صریح حدیث پیش کړئ ؟

**(١٨٥ ) سوال** : الله جل جلاله فرمائي ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ﴾ يعنې که یو سړي خپله مسلمانه ښځه د جماع څخه مخکې طلاقه کړه، نو ددې طلاق قبل الدخول په صورة کې په دې مؤمنه ښځه باندې عدت نشته، لیکن که کوم سړی خپله یهودی یا عیسوی ښځه قبل الدخول طلاقه کړي، نو په دې باندې عدت شته او که نشته ؟ په جواب کې ایات او یا صحیح حدیث پیش کړئ ؟ په مؤمنه باندې قیاس مه کوئ! ځکه چې قیاس ستاسو په نزد د شیطان کار دی .

**(۱۸۶) سوال :** یو سړي خپلې ښځې ته طلاق بتې ورکړو ، بیا ښځه په عدت کې وه چې داسړی مړشو ، حضرت عثمان ﷛ دې ښځې ته په میراث کې برخه ورکړه او ټولو صحابه وو رضی الله عنهم ورسره اتفاق وکړو (اعلام الموقعین ص ۲۱۰ ج اول) د حضرت عثمان ﷛ دا فتوی د کوم ایات یا صریح حدیث څخه ماخوذه ده ؟

**(۱۸۷) سوال :** یو سړي خپلې ښځې ته وویل چې ته په ما حرامه یې ! ددې په باره کې صحابه درې ډلې شو ، حضرت ابوبکر صدیق ﷛ او حضرت عمر ﷛ اوددوي په تقلید کې عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائي چې دا قسم دی او حضرت علی ﷛ او حضرت زید بن ثابت ﷛ فرمائي چې دا درې طلاقه دي .

او حضرت عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائي چې دا یو طلاق دی ، هر صحابي دا مسئله په خپله رایه باندې بیان کړې ده ، غیر مقلدین خو رأیې ته کفر او شرک وایي ، له دې وجهې څخه دی دوي ددې درې واړو په مابین کې په کوم ایت او یا په کوم صحیح ، صریح حدیث باندې فیصله وکړي ! ځکه چې الله ﷻ فرمائي ﴿فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ إِلَى اللهِ وَالرَّسُوْلِ﴾ .

**(۱۸۸) سوال :** مسواک وهل من سنن الوضوء دي او که من سنن الصلوة دي او که من سنن الوضوء والصلوة دواړه دي ؟ صحیح صریح حدیث پیش کړئ چې رسول الله ﷺ په یو باندې صراحةً تلفظ کړی وي .

**(۱۸۹) سوال :** یو سړي اودس وکړو ، لیکن مسواک یې استعمال نه کړو ، نو دده اودس وشو او که نه ؟

**(۱۹۰) سوال :** په اودس کې څو مره شیان سنت دي چې دهغې د پرېښودلو باوجود اودس صحیح کیږي ؟

**(۱۹۱) سوال :** ایا د موجوده برش (ټوټ پیسټ) په استعمال سره د مسواک ثواب حاصلیږي او که نه ؟ صحیح ، صریح حدیث پیش کړئ ، چې یا پکې دنفي د ثواب ذکر وي او یا پکې ذکر د اثبات د ثواب وي ؟

**(۱۹۳) سوال** :که دمسواک داستعمال په وجه دچاخوله وينې شوه، نواوس که انتظارکوي چې وينه ودريږي جماعت ورڅخه تيريږي، نوداسړی به مسواک پريږدي اوکه جماعت ؟په جواب کې صحيح، صريح حديث پيش کړئ

**(۱۹٤) سوال** : ستاسو په نيزمني پاکه ده. (فتاوی علماء حديث ،ج ۱ص ۴۲) نوخوړل يې جايزدي اوکه ناجايز ؟ په جواب کې صريح حديث ذکرکړئ چې دمنې دخوراک سره پکې د جواز اويا د عدم جواز تصريح شوی وي

**(۱۹۵) سوال** : ستاسو په کتابونو کې دسپي متيازو او غولو ته پاک ويلي شوي دي (نزل الابرار، ج ۱ص ۵۰) ددې پاکوالی په قران يا حديث ثابت کړئ ! اوکه تاسو وائي چې زمونږ اکابرو دقران اود حديثو په نوم باندې خلکوته دوهکې ورکولې اوداخبره يې غلطه کړی ده، نوبيا تاسو دسپي دمتيازو اود غولو ناپاکي په قران، يا حديث ثابته کړئ! صريح حديث پيش کړئ چې دسپي په غولو او متيازو پکې دپاکۍ اويا د ناپاکۍ سره تصريح شوي وي.

**(۱۹٦) سوال** :په يو کلي کې يو کوهی دی، چې مړسپې پکې غورزيدلې دی اوګندګي پکې غورزيدلې ده اود حيض ټوټې پکې غورزيدلې دي، نو ايا ددې کوهي څخه اوبه څښل او اودس کول جايزدی اوکه ناجايز؟

**(۱۹۷) سوال**:کوهی دڅه شي په غورزيدلو نجسيږي اوکه نه ؟ که نجسيږي، نودپاکۍ طريقه يې په صحيح حديث کې وښائي.

**(۱۹۸) سوال**: يوليوني په شودو کې متيازې وکړې، اکابر اهلحديث خووائي چې که خوندرنګ اوبوي يې بدل شوی نه وي، نو څښل يې جايزدي. (عرف الجادی ص ۹ بدورالاهله ص ۹ نزل الابرار،ج

ص ۱۰). نو که د خپلو اکابرو خبره منئ! نو د پاکۍ لپاره په دلیل کې ایت او یا حدیث پیش کړئ! او که نه یې منئ، نو د ناپاکۍ لپاره یې ایت یا حدیث پیش کړئ.

**(۱۹۹) سوال:** د ښځې د فرج رطوبت پاک دی او که ناپاک؟ په جواب کې صحیح، صریح حدیث پیش کړئ.

**(۲۰۰) سوال:** (الخمر) شراب پاک دي او که ناپاک؟ په صحیح، صریح حدیث کې د شرابو د لفظ سره په پاکۍ او یا ناپاکۍ باندې تصریح وښائي.

**(۲۰۱) سوال:** غیر مقلد نواب صدیق حسن خان لیکلي دي چې که د لمونځ کونکي په جسم باندې ګندګي (متیازې غول، د حیض وینه) لګیدلی وي نو لمونځ یې نه باطلیږي (بدور الاهله ص ۳۸)

**(۲۰۲) سوال:** غیر مقلد نواب نور الحسن لیکلي دي چې په نجسو جامو کې (چې متیازې او غول او د حیض وینه) پرې لګیدلي وي لمونځ صحیح دی؟ (عرف الجادی، ص ۲۱)

**(۲۰۳) سوال:** په لمانځه کې چې د ښځې، یا د سړي شرمګاه بالکل لوڅه وي، لمونځ ورسره جایز دی؟ (عرف الجادی ص ۲۱، بدور الاهله ص ۳۹)

**(۲۰٤) سوال:** د ځای پاکوالې د لمانځه د صحت لپاره شرط نه دی (بدور الاهله او عرف الجادی ص ۲۱)

**(۲۰۵) سوال:** فوټ بال رانو او کرکټیانو ته جایز دي چې د مازیګر لمونځ د وخت څخه مخکې په ظهر کې وکړي. (فتاوی ثنائیه، ج ۱ ص ۶۳۱، ۶۳۲)

**(۲۰٦) سوال:** د خپلې مور او د خور او د لور او د نورو محرماتو ټول بدن ته کتل جایز دي بغیر د قبل او د دبر څخه. (عرف الجادی ص ۵۲)

**(۲۰۷) سوال:** نواب وحید الزمان لیکلي دي چې د اسې ښځې په نکاح کړئ چې فرج یې تنګ وي او ډیر شهوت څخه خولې لګوي او د جماع په حالت کې لوټ په لوټ اوړي. (لغات الحدیث، ج ۲ ص

۵٦) ددوه سوه یو څخه تردوه سوه او مې پورې مسایلو ته په دلیل کې یو یو ایت، یا یو یو صحیح، صریح حدیث پیش کړئ!

**(۲۰۸) سوال :** عیسویان وائي چې الله ﷻ دعیسی ؑ په صورت کې ظاهرشوی دی ،هندوان وائي دخنزیرپه شکل کې ظاهرېږي ،لیکن غیرمقلدوحیدالزمان لیکي چې الله ﷻ چې کوم صورت وغواړي په همغه صورت ظاهرېږي (هدیة المهدي ،ج ۱ص ۷ وج ۱ص ۹)

**(۲۰۹) سوال :** غیرمقلدنواب وحیدالزمان لیکلي دی، چې: رام چندر،لچهمن ،کرشن ،زراتشت، دهاتمابدهـ ،ټول انبیاء او صالحین وو اوپه مونږ واجبه ده چې دالله ﷻ په ټولو انبیاءوو بلاتفریقه ایمان راوړو (هدیة المهدی ،ج ۱ص ۸۵)

**(۲۱۰) سوال:** که څوک داعقیده ولري چې دپیغمبرانو او اولیاوو سماع دعاموخلکو څخه وسیع ده، حتی چې دوي دټولې ځمکې دهرځای څخه خبرې اوریدلې شي، نودده داعقیده شرک نه دی (هدیة المهدی ،ج ۱ص ۸۵).

**(۲۱۱) سوال:** ددې عقیدې په بنیاد که څوک یارسول الله ﷺ مدد، یا غوث الاعظم مدد، یاعلي مدد ووایي نوداشرک ندی، له دې وجهې به نواب صدیق حسن خان غیرمقلد (وهابي) داوظیفه کوله چې:

قبله ئی دین مددي کعبهء ایمان مددي

ابن قیم مددي قاضي شوکاني مددي

(هدیة المهدي ج ص ۲۳ وص ۲۴)

ده دوه سوه اتمې څخه تردوسوه یولسمې پورې مسایل په قراني ایت او یا په صحیح حدیث باندې ثابت کړئ! او یا اعلان وکړئ چې زمونږ مشرانو اهلحدیثو به دقران اود حدیث په نوم باندې دکفرخدمت کولو او بیا د خپل ځان اعتماد پیش کړئ چې تاسو هم دخپلو مشرانو پشان دقران او حدیث نوم اخلئ.

نو څوک دا ضمانت کوي چې تاسو د کفارو خادمان نه یئ؟ یو طرفته یې درام چندر، لچهمن، کرشن، مهاتمابدهـ سره دومره محبت ته کوره او بل طرفته یې د سید الکونین محمد رسول الله ﷺ سره دشمنی ته کوره چې وحید الزمان غیر مقلد او نواب صدیق حسن خان لیکي چې :

درسول الله ﷺ زیارت ته تلل جایز ندي او سفر ورته کول امور د جاهلیت دي (عرف الجادی ص ٦٠)

دی سفرته چې څوک جایزوائي هغه په الله ﷻ او په اخرت باندې ایمان نه لري او د ایمان د حلاوت څخه محروم دي. (عرف الجادی ص ۱۰۳)

**(۲۱۳) سوال:** نو ددې مسئلې لپاره یو صریح ایت او یا یو صحیح، صریح حدیث پیش کړئ؟

**(۲۱۳) سوال:** څوک چې مدینې منورې ته لاړشي په هغه واجبه ده چې د رسول الله ﷺ روضه مبارکه ورانه کړي او د خاورو سره یې برابره کړي (عرف الجادی ص ٦٠)

نو د غیر مقلدینو د هندوستان د بت خانو، د انګریزانو او د سکهانو د کلیسا ګانو او ذ درمسالو نو سره کار نشته، بلکې اول اول به د رسول الله ﷺ روضه مبارکه ورانوي.

محترمو لوستونکو! د [نزل الابرار] یو څو مسایل به نورهم ذکر کړو. دا بِزَعمِهِم حق مسائل دي او دا مسایل د غیر مقلدینو په نیز د کوم مجتهد اُمتي مسایل ندي چې د خطایې احتمال پکې راشي، بلکې د رسول الله ﷺ د فقهې مسایل دي چې د خطایي څخه معصوم دي.

**(۲۱٤) سوال:** دیو سړي څخه په شهوت سره مني خارجه شوه، لکن ده د آلې د تناسل سر په ګوته باندې بند کړو، د شهوت د سکون څخه وروسته مني خارجه شوه، نو په دې سړي باندې غسل فرض نه دی.

**(۲۱۵) سوال:** که کوم سړي د غوا، یا د میښې او یا د خرې سره جماع وکړه، نو غسل ورباندې ندی فرض.

**(۲۱٦) سوال:** که کومې ښځې د خره یا د شادي آله د تناسل په ځان کې داخله کړه، نو غسل پرې ندی فرض.

**(۲۱۷) سوال:** که محض د خيال په وجه شهوت راغی او منی خارجه شوه، نو غسل نه دی فرض.

**(۲۱۸) سوال:** چاچې دژوندۍ ښځې سره جماع وکړه، ليکن انزال ونه شو، نو غسل پرې نه دی فرض. (نزل الابرار،ج ۱ص ۲۳)

**(۲۱۹) سوال:** که چاخپله آله دتناسل پخپل ځان کې داخله کړه غسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲۰) سوال:** که چا مړې ښځې سره جماع وکړه نوراجح دادی چې غسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲۱) سوال:** که چا دخره ،پيل ، شادي، ياسپي وغيره اله د تناسل په خپله شرمګاه کې داخله کړه نوغسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲۲) سوال:** که کومې ښځې دمړشوي سړي اله د تناسل په خپله شرمګاه کې داخله کړه، نوغسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲۳) سوال:** که دکوم هلک سره چالواطت وکړوغسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲٤) سوال:** کومه ښځه چې خپله ګوته په خپله شرمګاه کې ووهي غسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲۵) سوال:** کومه ښځه چې لرګې، يا بانجان، يا ليړو په خپله شرمګاه کې ووهي نو غسل پرې نه دی فرض.

**(۲۲٦) سوال:** کومه ښځه چې بانجان په شرمګاه کې ووهي بانجان مخکې لاړشي، لکن لاس په شرمګاه ونه لګيږي نو اودس يې نه ماتيږي.

**(۲۲۷) سوال:** کوم سړی چې د باکرې ښځې سره جماع وکړي اوهغه حامله شي، لکن بکارت يې زايل نه شي نوغسل پرې نه دی فرض. (نزل الابرار،ج ۱ص ۲۴).

**(۲۲۸) سوال :** که کوم سړی یاښځه لرګي په خپل دُبر کې ووهي، لکن وچ راووځي نو غسل پرې نه دی فرض. (نزل الابرار، ج ۱ص ۲۰).

**(۲۲۹) سوال:** څوک چې د خپلې ښځې دُبرِ زنی وکړي، نو نه وربانديې حد شته او نه تعزیز، بلکې انکار پرې هم نه دی جایز. (نزل الابرار ج ۱ص ۱۲۲ هدیة المهدی ج ۱ص ۱۲۲).

**(۲۳۰) سوال:** که کومه ښځه مِتعه (په اجرت باندې زنا) وکړي، نو په دې باندې نه حد شته او نه تعزیر، بلکې انکار پرې هم نه دی جایز. (نزل الابرار ج ۱ص ۱۲۲ هدیة المهدی، ج ۱ص ۱۲۲).

**(۲۳۱) سوال :** دزنا څخه دپیدا شوې لور سره نکاح جایزه ده (عرف الجادی ص ۱۰۹)

**(۲۳۲) سوال :** دنظربازۍ څخه دبچ کیدلو لپاره مشت زني واجبه ده (عرف الجادی ص ۲۰۷)

**(۲۳۳) سوال :** دنظربازۍ دجواز لپاره سپین ږیرې (غیر مقلد وهابي هم) دنوجوانې (غیرمقلدی وهابی) تې رودلې شي. (نزل الابرار، ج ۲ص ۷۷)

**(۲۳٤) سوال:** بعض صحابه ووهم مشت زني کړی ده (معاذالله) (عرف الجادی ص ۲۰۷)

**(۲۳۵) سوال:** په مشت زنۍ کې هیڅ حرج نشته لکه دبدن دنورو فضلاتو په ایستلو کې چې هیڅ حرج نشته. (عرف الجادی، ص ۲۰۷).

**(۲۳٦) سوال:** دمشت زنۍ په کونکي باندې نه حد شته او نه تعزیر (عرف الجادی ص ۲۰۸).

اوسني غیرمقلدین که دې مسایلو ته صحیح وائي نو ددې هر مسئلې داثبات لپاره دې په دلیل کې یویوایت او یایویو حدیث پیش کړئ او که وائي چې زمونږ مشرانو اهلحدیثو دقران او دسنت په نوم دروغ ویلي دي او دامسایل غلط دي نو بیا ددې هرې مسئلې په خلاف یویوایت او یایویو صحیح صریح حدیث پیش کړئ بهرحال ددې مسائلو موافق یامخالف یویو حدیث پیش کړئ.

## (۲۳۷) سوال: د اکابرو د سوالونو بیا یادول

محترمو لوستونکو! دا یو حقیقت دی چې په هندوستان باندې د انګریز د دورې څخه مخکې پدې ملکونو کې ټول خلک اهل سنة والجماعت احناف وو، د دوي مساجد د اختلافاتو د افتراق سره بالکل نا اشنا وو، لیکن انګریزانو په دې مساجدو کې د جګړو او د اختلافاتو د راپیدا کولو لپاره یوه بې مذهبه فرقه راپیدا کړه، د دې فرقې وکیل مولوی محمد حسین بټالوي چې د مرزا قادیاني خادم وؤ، ده د انګریزانو په خلاف د جهاد د حرمت فتوی ورکړه او د جهاد په خلاف یې یوه مستقله رساله ولیکله په نامه د (الا قتصاد في مسایل الجهاد). او د پیښور څخه یې تر کلکتې پورې د جهاد په خلاف کوشش وکړو او د دې په بدل کې د انګریزانو لخوا څخه پوره ونازول شو، ډیرې ځمکې یې ورکړې او غټ نواب شو

نو دغه انګریزي نواب د مسلمانانو په مابین کې د انتشار لپاره یو اشتهار چاپ کړو او هغه مسایل چې د خیر القرون څخه تر دغه وخته پورې په امت کې معمول او متواتر وو د دې مسایلو د مشکوکولو لپاره او د دولسو سوکلونو د علماءو څخه د ځان د جیک حسابولو لپاره یې د خود ساخته شرطونو سره لس سوالونه مرتب کړل، ده په دې شرطونو کې د مرزا قادیاني تقلید شخصي کړی وو، د ده شرط دا وو چې د دې سوالونو جواب به په قراني ایت او یا په داسې حدیث راکوئ چې صحیح وي او په صحت کې یې هیڅ خبره نوي او همدا رنګې به په دغې مسئلې باندې چې د کومې لپاره په دلیل کې پیش شوی دی نص صریح او قطعی الدلالة وي، ده د حسن لذاته او حسن لغیره احادیثو څخه انکار وکړ، حالانکې دا بالاتفاق حجت وو. همدا رنګې امام نووي په مقدمه د شرح د مسلم شریف کې د صحیح حدیث لس قسمه ذکر کړي دي، په دې کې یې د نهو قسمونو څخه انکار وکړو. او همدا رنګه یې د قطعي او صریح الدلالت څخه ماسوی د نورو ټولو دلالتونو څخه انکار وکړو. یعنې د اسلام د علمي سرمایې د (۹۸) برخو څخه یې انکار وکړو، نو علماوو ته صفا معلومه شوه چې دا جاهل او د مسلمانانو لپاره د لستوني مار دی، لیکن بعضې جاهل عوام او بعضې نیمچه ملایان د ده د فریب په دام کې ونښتل او د خیر القرون د مسلک څخه واوختل او د ده په تقلید کې ګرفتار شول، لیکن چونکې دا د دین د مسایلو څخه ناخبره وو، نو د ده سره د خلکو تسلي نه

کېدله، نو د سلفو څخه خو بیزاره شوي وو او دده سره یې تسلي نه کېدله، له دې وجهې پکې اکثر د قادیانیت (منکرین د ختم نبوت) او د نیچریت (منکرین د معجزاتو) په سمندر لاهو شول، لکه چې خپله قاضي عبدالاحد خاپنوري غیرمقلد په خپل کتاب په نامه د (کتاب التوحید والسنة ،ج ۱ص ۲۶۲) کې په دې حقیقت باندې اقرار کړی دی.

او همدارنګه مولوي محبوب احمد امرترسري لیکلي دي: څومره چې معلومات دي هغه دادی چې دامرترسر په خوا او شاعلاقو کې چې څومره خلک مرتد او عیسائي شوي دي؛ هغوي مخکې غیرمقلدین وو. (الکتاب المجید ص ۸)

خپله مولوي محمد حسین بټالوي وروسته د دې حقیقت اقرار کړی دی. هغه لیکلي دي: چا چې مطلق تقلید پریښې دی په هغوی کې اکثرو اسلام ته دمتارکې سلام کړی دی او څه پکې په فسق ظاهري او یا د څه مصلحت له وجهې په فسق خفي باندې ګرفتار شوي دي. (اشاعة السنة /۱۸۸۸سنه، علماوو چې کله ولیدل چې د دې سرې له لاسه په زرګونو خلک قادیانیان، نیچریان او عیسویان شو او په زرګونو نور د خیرالقرون په اماما نو باندې بدګمانه شول او د حق دین څخه بیزاره شول، نو علماوو دده شرط مخې ته کېښودو او دده څخه یې داسې سوالونه وکړل:

**اول** : ته د خپل شرط موافق کوم ایت یا صحیح حدیث چې د هغې په صحت کې هیڅ خبره نه وې او هغه ستا په دعوی باندې نص صریح او قطعي الدلالة وي؛ پیش کړه ځکه چې ستا په نیز دلیل صرف او صرف په ایت او په دغه قسم حدیث کې منحصر دی او باقي نهه نوي فیصده احادیث قابل د استدلال ندي او همدارنګه اجماع او قیاس هم قابل د استدلال ندی، لیکن د دې سوال په جواب کې دغه شخص او دده ټول جماعت تر ننه پورې خوار او ذلیل دي او خپل جهالت یې منلی دی.

**دوهم**: په اول سوال باندې علماء پوهېږي او د عوامو په مابین کې د دوي د جهالت د ثابتولو لپاره یې ترینه لاندې سوالونه وکړل، په دې سوالونو باندې د سلوکلونو څخه زیات وخت تیر شوی دی، مګر په ټولو

غیرمقلدینو باندې ترننه پورې ددې سوالونو جوابونه قرض دي، کوم لامذهبان چې مړه شوي دي هغوي داقرض دځان سره قبر ته وړی دی او کوم چې ژوندي دي هغوی ته یې مونږ بیا ورپه یادوو او ورته وایو چې دالله ﷻ په خاطر ددې سوالونو جوابونه راوړئ! او خپل جماعت مطمئن کړئ! او که نه یې شئ کولی، نوبیا خپله اسلحه په ځمکه کیږدئ او خلک د قادیانیت، نیچریت او عیسویت طرفته ته مه دعوتوئ.

په جواب کې به د خپل شرط موافق یا صریح ایت پیش کوئ او یا به داسې صحیح حدیث پیش کوئ چې په صحت کې یې هیڅ خبره نه وي او همدارنګه په دی مسایلو نص صریح او قطعي الدلالة وي.

**(٢٣٧/١) سوال :** ایا رسول الله ﷺ همیشه رکوع ته د تللو په وخت کې او د رکوع څخه د سر د اوچتولو په وخت کې رفع الیدین کړي دي ؟

**(٢٣٨/٢) سوال:** ایا رسول الله ﷺ همیشه همیشه په لمانځه کې په سینه باندې لاسونه ایښي دي؟

**(٢٣٩/٣) سوال:** ایا رسول الله ﷺ همیشه همیشه په هر لمانځه کې امین په جهر سره ویلی دی؟

**(٢٤٠/٤) سوال:** ایا حدیث د قرائت خلف الامام د (اذا قرء القران) د ایت څخه وروسته روایت شوی دی ؟

**(٢٤١/٥) سوال:** ایا الله ﷻ او یا رسول الله ﷺ خلک د تقلید شرعي څخه منع کړي دي ؟

**(٢٤٢/٦) سوال:** ایا اجماع او قیاس حرام دی؟

**(٢٤٣/٧) سوال:** ایا د درې طلاقو څخه وروسته بغیر د حلالې، د اول میړه سره نکاح کول جایز دي؟

**(٢٤٤/٨) سوال:** ایا ستاسو د ایمه یې اربعه وو تقلید فرض دی چې هغه عبارت دی د ابن تیمیه - داود ظاهری - ابن حزم - او شوکاني زیدي شیعه څخه ؟ .

**(٢٤٥/٩) سوال:** ایا احادیث په صحاح سته وو کې منحصر دي ؟

(۱۰/ ۲٤٦ ) **سوال:** په دې پرفتن دور کې هر عامي سړي ته په قران او په حديث باندې بلا تحقيقه عمل کول او خلکو ته ورباندې حکم کول څومره ثواب لري؟

(۱۱/ ۲٤۷) **سوال:** ايا بغير د عذر څخه جمع بين الصلوتين جايزه ده؟

(۱۲/ ۲٤۸) **سوال:** ايا کوم احاديث چې امام اعظم رحمه الله ته په سند د شيو خو صحابه وو يا ثقاتو تابعينو رسيدلي دي ،هغې ته د مابعد خير القرون والا خلکو د اقوال له وجهې ضعيف ويل جايز دي ؟.

(۱۳/ ۲٤۹) **سوال:** ايا هغو حاجيانو ته مشرکين ويل جايز دی چې د رسول الله ﷺ د زيارت په نيت باندې سفر کوي او دی ته رسم د جاهليت او مکروه او حرام ويل څرنګه دی؟ .

(۱٤/ ۲۵۰ ) **سوال:** ايا د حرمينو شريفينو ټول مقلدين مشرکين او بدعتيان دي ؟

(۲۵۱/۱۵ ) **سوال:** د بې اودسۍ په حالت کې د انجيل د لوستلو څه حکم دی ؟

(۱٦/ ۲۵۲ ) **سوال:** يو سړي د اودس څخه وروسته د سر ويښته وخرييل، نو دې به تجديد د ضوء کوي؟ او که په سر باندې به دوباره مسح کوي؟ او که بل څه به کوي ؟.

(۱۷/ ۲۵۳ ) **سوال:** په رنګولو باندې د خنزير_ مار ،مږک ،پوستکی پاکيږي او که نه ؟.

(۱۸/ ۲۵٤ ) **سوال:** او به چې څومره لرې وي تيمم جايز ګرځي؟ .

(۱۹/ ۲۵۵ ) **سوال:** کوم سړی چې اودس او تيمم نه شي کولې هغه به لمونځ څرنګه کوي ( مسئله د فاقد الطهورين )؟

(۲۰/ ۲۵٦ ) **سوال:** د مقطوع اليدين والرجلين و مجروح الوجه څه حکم دی؟ هغه به بې اودسه لمونځ کوي او که مسح به کوي او که تيمم ؟.

**نوټ:** څه د پاسه سل کاله بعد که څوک اراده لري چې دی سوالونو ته جواب ووائي، نو دخپل شرط لحاظ دی ضرور وساتي، يعنې په جواب کې دی يا ايت پيش کړي او يا دی داسې صحيح، صريح حديث پيش کړي چې په صحت کې يې هيڅ کلام نوي او قعطی الدلالت وي.

همدارنګې لامذهبو ته پکار ده چې دخپل داسې يو عالم څخه جواب راوړي چې دهغه جواب ټولو لامذهبو ته د منلو وړ وي، ځکه ستاسو حيله مشهوره ده، لکه څرنګه چې منکرين دحديث دخپلو علماوو کتابونه چهاپوي او تقسيموی يې او بالکل دقرانکريم نوم ورکوي، لکن دمناظرې په وخت کې ورته دقران څخه مخالف وايي، همدارنګه ستاسو دجماعت هرفرد دخپلو يو لويو علماوو کتابونو ته دقران او دحديث څخه مخالف وايي او دخپلو ټولو کتابونو څخه انکار کوي.

**(۲۵۷) سوال:** په قران او په حديث کې صراحةً وښائي چې ګناه په دوه قسمه ده، صغيره او کبيره، ځکه ستاسو دعوه ده چې هره مسئله په قران او په حديث کې صراحةً موجوده ده، په جواب کې دقران او د حديث څخه علاوه به بل څه دمنلو وړ نه وي.

**(۲۵۸) سوال:** دګناه کبيره او ګناه صغيره جامع او مانع تعريف دقران او د حديث څخه پيش کړئ دامتي قول به دمنلو وړ نه وي

**(۲۵۹) سوال:** دګناه کبيره لپاره سزا يو قسم ده؟ يعنې يوائې حد دی او که دوه قسمه ده (حد او تعزيز)؟ په جواب کې يا صريح ايت او يا حديث صحيح، صريح پيش کړئ.

**(۲٦۰) سوال:** دحد او دتعزير جامع او مانع تعريف دقران او د حديث څخه پيش کړئ، دغير معصوم أمتي خبره دمنلو وړ نده.

**(۲٦۱) سوال:** ايا حدود په شبهاتو باندې ساقطيږي او که نه؟ په جواب کې قران يا حديث صحيح صريح پيش کړئ

(۲٦۲) **سوال:** شبهه په څو قسمه ده؟ او د هر قسم لپاره د قران او د حدیث څخه جامع او مانع تعریف پیش کړئ.

(۲٦۳) **سوال:** په (ترمذی ج ۱ ص ۲۲۹ او به ابن ماجه ص ۱۷۸) کې حدیث دی چې (من اتی بهیمة فلا حد علیه). یعنې که چا د څاروي سره جماع وکړه حد ورباندې نشته نو ایا د دې مطلب دا دی چې د څاروي سره بد فعلي حلاله ده؟

(۲٦٤) **سوال:** ښځې فرضي روژه نیولی وه، خاوندې ورسره جماع وکړه، نو دا جماع حلاله ده او که حرامه؟ ایا دواړه به سنګسار یږي او که نه؟ او ایا په دې باندې حد شته او که نه؟

(۲٦۵) **سوال:** یو سړي د خپلې ښځې سره د حیض په حالت کې جماع وکړه، نو دا جماع حلاله ده او که حرامه؟ او حد ورباندې شته او که نه؟.

(۲٦٦) **سوال:** یو سړي د خپلې ښځې سره د نفاس په حالت کې جماع وکړه، نو دا جماع یې حلاله ده او که حرامه؟ او حد ورباندې شته او که نه؟

(۲٦۷) **سوال:** یوی ښځې فرض حج کولو او د احرام په حالت کې میړه ورسره جماع وکړه، نو په دې دواړو به څو مره حد لږیږي؟.

(۲٦۸) **سوال:** یو سړي د لامذهبو د فقهې محمدي بزعمهم تلاوت کولو او د ځای یې پکې ولوستلو چې د منی خوړل جایز دي (فتاوی علماء حدیث ج ۱ ص ۴۲) نزل الابرار ج ۱ ص ۴۹).

نو ده د منی ټینګه فالوده وخوړه، نو په ده باندې څومره حد دی؟.

(۲٦۹) **سوال:** یو سړي د سود روپۍ وخوړې چې یقینا او قطعاً حرامې دي، نو په دې سودخور باندې څومره حد دی؟

(۲۷۰) **سوال:** یو سړي بلا اضطراره د خنزیر غوښه وخوړه نو دی سړي ته به څومره حد ورکولی شي؟.

**(۲۷۱) سوال:** یولامذهبه سړي وینه وڅښله

**(۲۷۲) سوال:** بل لامذهبه سړي متیازې وڅښلې

**(۲۷۳) سوال:** بل غیرمقلد غول وخوړل په دې هریوباندې په قران اوپه حدیث کې څومره حد دی؟.

**(۲۷٤) سوال:** هغه زنا چې موجبه د حد ده او هغه چې موجبه د تعزیر ده جامع او مانع تعریف یې د قران او د حدیث څخه بیان کړئ ؟.

**(۲۷۵) سوال:** غیرمقلدین په فقه حنفي باندې اعتراضونه کوي یو اعتراض یې دا هم دی چې په فقه حنفي کې لیکل شوي دي چې (لاحد علی زنا المستاجرة) یعنې په اجرت باندې په زنا کونکې ښځې حد نشته (عالمګیري ص ۲۲۸ ج ۲) غیر مقلدین لیکي چې: (سبحان الله څومره فحاشي الخ)

دعوامو ذهن ته داورکوي چې په دی زنا باندې داحنافو په نیز حد نشته او په کوم شي باندې چې حد نوي هغه جایزوي، نوپه اجرت باندې زنا داحنافو په نیز جایزه شوه. مونږوایو چې په اجرت باندې زنا ګناه کبیره ده او داحنافو په یو قول ور باندې حد دی. والحق وجوب الحد كالمستاجرة للخدمة (درمختار، ج ۳ص ۱۵۷)

اوپه یو قول باندې د شبه له وجهې حد ساقط دی، لیکن تعزیر شته او دا دوهکه عوامو تومه ورکوئ چې په کوم شي باندې حد نوي هغه جایزوي ، ځکه چې د بهایمو سره په جماع باندې حد نشته، بلکې تعزیر دی خو بیا هم جماع ور سره حرامه ده او همدارنګه د حیض په حالت کې جماع او د احرام په حالت کې جماع حرامه ده او حد ور باندې نشته بلکې تعزیر دی، دسود دروپیو په خوړلو باندې حد نشته بلکې تعزیر دی او بیا یې هم خوړل حرام دي، دخنزیر د غوښې په خوړلو باندې حد نشته بلکې تعزیر دی او بیا یې هم خوړل حرام دي.

نو مونږ د غیرمقلدینو څخه پوښتنه کوو چې په کوم ایت او یا حدیث کې راغلي دی چې په کوم شي باندې حد نوي هغه جایزوي او همدارنګه چې په کوم شي باندې حد نوي په هغې تعزیر هم نوي؟.

**(۲۷٦) سوال:** داحنافو دفقه په کتاب (فتح القدیر،ج ۵ص ۴۲) اودحدیثو په کتاب (طحاوی ج ۲ص۹٦) کې یې لیکلي دي چې: که څوک دخپلې مور،خور، یا لورسره نکاح ته حلال ووائي،نو هغه کافر،مرتد،اوواجب القتل دی. غیرمقلدین ولې په فقه حنفی بُهتان لګوي چې احناف د مور، خور، لور اودنورو محرماتوسره نکاح ته جایزوائي.

**(۲۷۷) سوال:** احناف درسول الله ﷺ دفرمان مطابق (من وقع علي ذاة محرم فاقتلوه) دخپلې محرمې سره نکاح کونکي ته تعزیر بالقتل ورکوي، دکوړو اوډ سنګسارولو حد نه ورکوي او غیر مقلدین د سلو کوړو یا د سنګسارولو حد ورکوي. نزل الابرار ج۲ ص ۲۹۸ نوغیرمقلدین دې په صریح ایت یاصحیح صریح حدیث کې ورته حدثابت کړي؟

**(۲۷۸) سوال:** داحنافو داتعزیربالقتل دکوم صحیح صریح حدیث څخه خلاف دی؟.

**(۲۷۹) سوال :** دغیرمقلدینوپه نیزمتعه (یعنې په اجرت باندې زنا) جایزه ده، نه حدلري او نه تعزیر. بلکې انکارورباندې هم جایز نه دی (هدیة المهدی ،ج ۱ص ۱۲۲)

**(۲۸۰) سوال :** یوسړي دنذرلغیرالله ډوډۍ وخوړه، په دې سړي باندې په قران اوپه حدیث کې څودورې حددی؟.

غیرمقلدین دی دخپلې دعوی موافق دهرسوال په جواب کې دقران کریم صریح ایت اویاصحیح صریح غیرمعارض حدیث پیش کړي او د غیرمقلدینو دکتابونو څخه چې کوم مسایل رانقل شوي دي که داوسنیو غیرمقلدینوپه نیزدامسایل غلط وي، نوددوي دغلطو ثابتولو لپاره دی دهرې هرې مسئلې په خلاف یویوایت او یایو یو صحیح صریح حدیث پیش کړي اوهمدارنګه دی اقراروکړي چې دغیر مقلدینولیکل شوي کتابونه دقران اوحدیث څخه مخالف دي اوکه ددوي په نیزدامسایل صحیح وي نوبیا دې ورته موافق یو یو ایت یا یو یو صحیح صریح حدیث پیش کړي!

**د سوال يوه آسانه طريقه:**

هدايه څلور جلده کتاب دی او دهرې مسئلې له پاره يې په دليل کې کله قرآن، حديث، اجماع او قياس څلور واړه پيش کړي وي. او کله يې په دوي کې يو اځې يو دليل يعنې يو اځې قرآن کريم، يا يو اځې حديث، يا يو اځې اجماع او يا يو اځې قياس پيش کړی وي. او کله يې په دوي کې دوه ذکر کړي وي او کله يې درې ذکر کړي وي.

نو صاحب د هدايې چې کله د يوې مسئلې له پاره په دليل کې يو اځې او يو اځې اجماع پيش کړي وي او يا يې د يوې مسئلې له پاره په دليل کې صرف او صِرف قياس پيش کړی وي او صِرف په (لانه) سره يې دليل ويلي وي، نو ر آيت او حديث يې نه وي ذکر کړی ، نو د ټولې دنيا لا مذهبانو ته چلينج دی، چې: د دې مسئلې حل دې صراحتاً په قرآن او يا په حديث کې وښايي او د خپلې دعوې مطابق چې (اهلحديث کی دو اصول اطيعوا الله و اطيعوا الرسول) ده؛ د دې مسئلې حل پيدا کړي. داسې مسئلې په زرګونو نه بلکې په لکونو دي چې لا مذهبان يې د خپلو اصولو مطابق د حل کولو څخه عاجز دي، له دې وجې اکثرو لامذهبو پخپلو دارالأفتاګانو باندې لوحې لګولې دي چې: د معاملاتو د حل څخه عاجز يو.

*   *   *

بسم الله الرحمن الرحیم

## دغیرمقلدینو سره د بحث کولو یو څو طریقې

**اوله طریقه:** کله چې درسره غیر مقلد مخامخ شو، نو یو ساده قران کریم راواخله او کوم یو د حدیثو کتاب هریو چې وي را واخله او ورته ووایه چې ماته د لمانځه مکمله طریقه په دې قران او یاد حدیثو په دې کتاب کې را وښایه، چونکه لمونځ دلساني او دبدني عبادت مجموعه ده نو اول ترینه دهر ذکر او عمل دحکم پوښتنه وکړه، مثلا دتکبیر تحریمه او دتکبیر تحریمه سره د رفع الیدین څه حکم دی ؟ فرض دی؟ او که واجب دی ؟ او که سنت دی؟ او که نفل ؟

دا حکم صراحةً په قران او یا په حدیث کې راته وښایه، یعنې د فرض، یا د واجب، یا د سنت، او یاد نفل لفظ راته وښایه. هغه یې ترقیامته پورې نه شي ښودلی، نو مخکې یې مه پرېږده چې موضوع بدله کړي، نو چې ډیر تنګ شي مجبور به شي او درته به ووایي چې زه هیڅ شي ته فرض او واجب او سنت او نفل نه وایم، ځکه چې یو شي ته فرض، یا واجب، یا سنت، یا نفل ویل بدعت دی، نو ته ورته فوراً ووایه چې ډیره ښه ده دستخط وکړه چې د رکوع رفع الیدین او امین بالجهر او قرائت خلف الامام نه فرض دي او نه واجب دي او نه سنت دي او نه نفل. بلکې فرض، یا واجب، یا سنت، یا نفل ویل ورته بدعت دی او څوک چې ورته فرض، یا واجب، یا سنت، یا نفل وایي هغه بدعتي دی.

او بیا ورته د دوي په کتابونو کې وښایه چې لیکلي یې دي چې: امین بالجهر سُنت دی، یا رفع الیدین سُنت دی، و غیره. نو ورته ووایه چې اوس ستا په خپله فتوی ستا په بدعتوالي کې څه شک پاتې شو ؟

بیا ورته ووایه چې زه امام نه یم، بلکې دبل امام مقتدي یم، فرض لمونځ دامام پسې کوم او سنت
اونفل لمونځ یواځې کوم، نو ماته په قران یا د حدیثو په کوم کتاب کې وښایه چې الله ﷻ او یا رسول الله ﷺ
امر کړی وي چې مقتدي او یواځې لمونځ کونکی دی تکبیر تحریمه ، ثناء ،تعوذ ،تسمیه ،امین ،درکوع
اودسجدی تسبیحات، ،تشهد ، درود شریف ،دعاء او سلام ،سراً او یا جهراً لولي، هر جواب چې یې
درکولو نو ته ورته وایه چې قران او یا دحدیثو کتاب راوا ړوه او دا جواب راته پکې وښایه ،هغه به یې
هیڅکله په صریحو الفاظو په قران او په حدیثو کې و نه شي ښودلی، نو بیا ترینه لیکل واخله، چې
ستا د لمونځ طریقه صراحةً په قران او په حدیث کې نشته، بلکې خپل لمونځ د فلانکي مُلا په تقلید باندې
کوې! یا هغه د شیخ سره همدا طریقه وکړه، ته به وګورې چې هغه به هم کرکرې کوي او ښکاره به شي چې
دوي د قران او د حدیث په نوم باندې څومره دروغ وائي .

**دوهمه طریقه:** کله چې درسره غیر مقلد مخامخ شو، نو د فقه یو کتاب راواخله! مثلاً هدایه
راواخله، یا فتاوی عالمګیري، یا بل پښتو، یا فارسي د فقهې کتاب راواخله! او په ترتیب سره د اول
څخه یوه یوه مسئله لوله او غیر مقلد ته وایه چې ددې هرې هرې مسئلې په خلاف راته یو یوایت او یا
یو یو صحیح، صریح، غیر معارض حدیث پیش کوه، چې کومه مسئله غلطه ثابته شي زه به په هغې
مسئلې باندې سور خط کش کوم. بیا راته دهغې مسئلې په ځای باندې د صحیحې مسئلې صورت په
کوم ایت، یا په کوم صحیح، صریح ، غیر معارض حدیث کې ثابت کړه، تردې چې ته ماته د فقهې
ددې کتاب ټولې مسئلې غلطې ثابتې کړې او دهغې په ځای په قران او یا په حدیث کې راته صحیحې
مسئلې وښایې، نو زه به حنفي مذهب پریږدم او ستا مسلک به قبول کړم، ان شاء الله ته به وګورې چې
دیوې صفحې د یوې مسئلې څخه به هم نه شي او ښتلۍ او یو طرف او بل طرفته به موضوع بدلوي .

**دریمه طریقه:** کله چې دغیر مقلد سره مخامخ شوی، نو دحدیثو یو کتاب مثلاً طحاوی شریف، یا مصنف
ابن ابی شیبه، یا مصنف عبدالرزاق راواخله او متعارض احادیث شروع کړه او غیر مقلد ته ووایه چې ددې
تعارضاتو رفع د اُمتی په قول، یا د اُمتي په جوړو شویو اصولو باندې مه پیش کوه، بلکې ددې تعارضاتو رفع

په قران، ياپه صحيح، صريح، غيرمعارض حديث باندې وکړه، هغه به يې ترقيامته پورې هم ونکړی شي ،نوصرف يوصورت ورته پاتې کيږي اوهغه داچې دکوم مُلا، يا د کوم مجتهدپه تقليدکې ددې متعارضاتو په مينځ کې تطبيق وکړي اويا په کوم يوراجح باندې عمل وکړي.

ددې دريوطريقوڅخه به تاته معلومه شي چې داخلک دقران او دحديث څخه بالکل جاهل دی، صِرف په اسلافوباندې بد ګمانۍ اوددوئ په خلاف باندې بدزبانۍ ته عمل بالحديث وائي.

رسول الله ﷺ فرمائي چې د قيامت د قرب يوه علامه داده چې (لعن أخرهذه الامة أولها)

يعنې وروستني خلک به په مخکينوباندې طعن او تشنيع کوي، کيدی شي چې لامذهبان ددې وجهې ځانونو ته اهل حديث وايي چې ددې حديث مصداق دي.

## کارغه ګندګي خوري اومنبوکه څنډي

لامذهبان (وهابيان) هغه چاته چې دامام ابوحنيفه رحمه الله تقليد کوي مشرکان اوبدعتيان وائي، ليکن دوی پخپله ياپه علم لغت کې دلغت په امامانو باندې اعتماد کوي،چې دادلغت دامامانوتقليددی ،په فن داسماء الرجال اوپه فن داصول حديث کې دمقلدومحدثينو تقليدکوي ،په علم صرف اوپه علم نحوکې ددې علوموداامامانو تقليدکوي ،په علاج کې دډاکټراودطبيب تقليد کوي ،په قانوني مسئلوکې دقانون پوهانو تقليد کوي ،ليکن په علم فقه او ددين په معاملو کې د خپلو ناأهلو نام نهادو مولويانوتقليدکوي ،اوداهل پريښودل اودنااهلو تقليدکول دقيامت علامه ده، رسول الله ﷺ فرمائی چې:اذا وسد الا مرالي غيراهله فانتظرالساعة، صحيح البخاري.

يعنې چې کارونه نا أهلوته وسپارل شو، نوبيادقيامت (يعنې دتباهۍ اودبربادۍ) انتظارکوه ،دغيرمقلدينومثال دهغه مريض دی چې دسپيشلسټ ډاکټرپه ځای دموچي څخه علاج کوي ،يادهغه ځنګلي په شان دی چې دقانون په باره کې دجولاسره مشوری کوي ،يادهغه قادياني په شان دی چې په تفسيرکې دعبدالله بن عباس ﷛ په ځای دمرزاقادياني پيروي کوي ، يادهغه چاپه شان دی چې په

حديثو کې دامام بخاري او دامام مسلم په مقابل کې پرويزته ناقدا و محقق وائي، لامذهبه خلک دي دديې تقليد و نو په مابين کې فرق دقران او دحديث څخه واضحه کړي.

که يو حماربحث ووائي چې لغت، نحو، صرف، بلاغة، او اصول، دقران او دحديث څخه مخالف دي نو دده په حماريت کې هيڅ څوک شک نکوي، همدارنګې دهغه چاحماريت اظهرمن الشمس دی چې فقهې ته دقران او دحديث څخه مخالفه وائي، که فقه دقران او دحديث څخه خلاف وی نو په قران او په حديث کې به دفقهې صفت نه کيدلې، رسول الله ﷺ فرمائي من يردالله به خيرا يفقهه في الدين. او همدا راز رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي چې: (فقيهٌ واحدٌ اشدّ على الشيطان من الف عابدٍ).

**لطيفه:** يو ځلې يولامذهبه نام نهاده شيخ الحديث يو نوجوان حنفي سره مخامخ شو او پوښتنه يې ترينه وکړه چې ايا ته مقلديې؟ هغه نوجوان ورته وويل: چې هو! زه مقلديم، ځکه چې زه اُمې يم، په قران او په حديث نه پوهيږم، زمابله چاره نشته سوی ددېڅخه چې په کوم عالم اعتماد وکړم او دهغه په رهنمايي کې په دين باندې عمل وکړم، شيخ الحديث ورته وويل چې په چا اعتماد کوی؟ نوجوان ورته وويل: چې ته هم عالم يې زه په تا اعتماد کوم او ستا په رهنمايي کې په دين عمل کوم، نو ستا مقلد يم. کله چې شيخ الحديث دا خبره واوريدله نو خاموش شو. نوجوان ديو څه خاموشۍ څخه وورسته ورته وويل چې:

شيخ صاحب که چيرته مادرته ويلي وی چې زه دامام ابو حنفيه رحمه الله تقليد کوم. يعنې د امام صاحب په راهنمايي کې په دين باندې عمل کوم، نو ټول قران به دې زما په خلاف تلاوت کولو، کله به دې د ابو جهل متعلق ايتونه په ماتطبيقول، کله به دې داحبارو او د رهبانيينو متعلق ايتونه په ماتطبيقول، کله به دې ماته مشرک ويلي! کله به دې دامام صاحب دقياس له وجهې ماته شيطان ويلې! او کله به دې ويلې چې تقليد د سپي پټې ته وائي، کله به دې راته ويلې چې ته محمدي نه يې! کله به دې راته ويل چې ته نبي ﷺ نه منې! مګرچې کله زه ستا تقليد ته تيارشوم، نو نه دې زما په خلاف کوم ايت تلاوت کړو او نه دې کوم حديث تلاوت کړو، نو معلوميږي چې اصل اختلاف په تقليد کې نه دی. صرف د امام صاحب سره حسد لرې! چې څرنګه

خلک د امام صاحب تقلید کوي او زما تقلید ولې نه کوي؟ نو زه د ډاکټر په ځای د مداري څخه علاج نه کوم، همدارنګه د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په ځای ستا غوندې د نا اهلو تقلید نه کوم!

## د لا مذهبو او د مقلدینو په منځ کې په راهنما کې فرق دی

لا مذهبان: د څوارلسمې صدۍ د خپلو نام نهادو د مُلایانو په راهنمایي کې په دین باندې د عمل کولو دعوه کوي ځکه چې ټول عمر د همدوي لیکل شوي کتابونه ګوري او د همدوي بیانونه اوري او مقلدین حضرات د خیر القرون د مجتهدینو امامانو په راهنمایي کې په دین باندې عمل کوي، د څوارلسمې صدۍ مُلایان په دوه ډالرو هم خرڅیدلی شي او مجتهدین امامان د ټول امت په اتفاق باندې پوهان، مجاهدین او امامان وو، د دوي په حق کې دا تصور هم نه شي کېدلی چې دین دې یې خرڅ کړي وي.

* * *

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# لامذهبه وکتوري اهلحديث دانګريزانو پيداوار دي

لامذهبان په هندوستان کې د أنګرېزانو په زمانه کې أنګرېزانو را پيدا کړل او د أنګرېزانو په منظورۍ يې ځانونو ته د اهلحديث نوم کېښودلو.

دلامذهبو اهل حديثو سلسله پنځو مشرانو ته رسيږي (۱) عبدالحق بنارسي (۲) نذيرحسين دهلوي (۳) نواب صديق حسن خان(۴) نواب وحيد الزمان(۵) عبدالله غزنوي.

داپنځه واړه په هندوستان کې وو اوپه هندوستان باندې دانګريزانو دحکومت په دور کې راپيدا شول، عبدالحق بنارسي دشاه اسماعيل شهيد حنفي شاګرد دی نذير حسين دشاه اسحق رحمه الله حنفي شاګرد دی، نواب صديق حسن خان دمولانا فضل الرحمن رحمه الله ګنج مراد آبادي حنفي مريد او شاګر دی، وحيد الزمان دمولانا سلامت الله کانپوري رحمه الله حنفي شاګرد دی، عبد الله غزنوي دحبيب الله قندهاري رحمه الله حنفي شاګرد دی.

۲: په هندوستان کې په (۱۸۵۷) عيسوي کې دجنګ آزادۍ معرکه وه، دسيد احمد شهيد رحمه الله يو خليفه مولانا سرفراز علي رحمه الله حنفي دمجاهدينو اميروو، او جنګي قومندان دده يو مريد جنرل بخت خان حنفي رحمه الله وو، دوي دبادشاه بهادرشاه ظفر حنفي سره يو ځای شول، او ډهلي يې فتح کړو، په دغه معرکه کې حاجي امداد الله مهاجر مکي رحمه الله مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله، مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله، مولانا رحمت الله کيرانوي رحمه الله، حافظ ضامن شهيد رحمه الله وغيره احناف علماء هم ملګري وو، لکن بل طرف ته انګريزانو د داخلي منافقانو او دغير مقلدينو ددې مذکورو مشرانو څخه ډېر کار واخيستلو او بېرته يې ډهلي ونيولو.

۳: نذيرحسين دمجاهدينو په خلاف فتوی ورکولی، دده فتاوی ده په نوم د فتاوی نذيريه، په هغې کې يې باب لګولی دی په نوم دکتاب الامارة والجهاد، هلته دده څخه پوښتنه شوی ده چې جهاد فرض عين دی او که فرض کفايي؟ نو نذيرحسين جواب ورکوي چې جهاد فرض کفايي دی، لکن دجهاد لپاره

بو څو شرطونه دي، چې تر څو پورې هغه شرطونه نه وي موجود شوي جهاد نه کېږي او بيا په آخر کې ليکي چې نن سبا په هغو شرطونو کې يو شرط هم نشته، فتاوى نذيريه ج دريم صفه (۲۸۴)

د انګريزانو سره د جهاد په باره کې تړښنه پوښتنه شوې ده، نو دې ورته په جواب کې ليکي چې:
علاوه لا دا چې مونږ معاهدين يو، مونږ د سرکار سره عهد کړى دى، نو بيا څرنګه د عهد څخه مخالفت کوو؟ د عهد شکنۍ ډېر مذمت په حديثو کې راغلى دى، فتاوى نذيريه ج (۳) ص (۲۸۴)

۴: غير مقلدينو به د مجاهدينو جهاد ته غدر ويلو او د جهاد په خلاف يې دوه رسالې وليکلې، يوه نواب صديق حسن خان وليکله په نوم د ترجمان وهابيه، او بله محمد حسين بټالوي وليکله په نوم د الاقتصاد في مسائل الجهاد، په دې دواړو رسالو کې يې دا فتوى جاري کړې چې د انګريزانو په خلاف جهاد حرام دى او د (۱۸۵۷) کال په جنګ آزادۍ کې د اولسو زرو څخه زياتو شهيدانو شو علماو ته يې مردار وويل.

۵: د نذير حسين سوانح نګار ليکي چې: عين د غدر (جهاد) په حالت کې يوه انګريزه مسز ليسنس په زخمي حالت کې نذير حسين په داسې حالت کې کورته راوستله چې هر بچى د انګريزانو دښمن وو، هغه يې درې مياشتې په کور کې وساتله او د هغې يې پوره علاج او خدمت وکړو، که په دغه وخت کې ظالم باغيان (مجاهدين - از ناقل) خبر شوي واى نو د نذير حسين د کور په تباه کولو کې به يې هيڅ تاخير نه وى کړى، باغيان (مجاهدين) په څنګ کې مسجد ته راغلي وو، ليکن تر دريو مياشتو پورې پدې پوه نه شول چې په څنګ کې حويلۍ کې څو مره کسان دي، کله چې درې مياشتې بعد پوره امن قائم شو، او انګريزه پوره صحتمنده شوه، نو نذير حسين انګرېزي کېمپ ته وروړله، چې د دې کارنامې په عوض کې ورته يو زر درې سوه روپۍ انعام ميلاو شو - الحيات بعده الممات (۱۲۷)

۶: په هندوستان باندې د انګريزانو د دورې څخه مخکې د غير مقلدينو هيڅ مدرسه، هيڅ مسجد او هيڅ کتاب نشته، د دوي د هر کتاب، هرې مدرسې او هر مسجد تاريخ د انګرېزانو د دورې څخه شروع دى

(۷) د غیر مقلدینو سر گروه نواب صدیق حسن خان غیرمقلد (وهابي) لیکلي دي چې: (دغدر په زمانه کې زمونږ هرغټ او وړوکي د انگریزي سرکار خیرخواهان وو. (ترجمان وهابیه ص ۵).

(۸) بیالیکي چې: ملخصاً که څوک دانگریزي دولت مخالف وو هغه ټول هغه خلک وو چې مذهبي ازادي یې نه خوښوله او ټول دیو خاص مذهب پابند وو، چې دپلار او دنیکه د وخت څخه یې راروان دی (ترجمان وهابیه ص ۵).

(۹) بیالیکي چې: دتاریخ دکتابونو څخه معلومیږي چې کوم امن، پراخي او ازادي، په دې انگریزي حکومت کې دټولو خلکو نصیب شوې؛ په بل هیڅ حکومت کې نه وه او ودې بله هیڅ وجه نشته بغیر له دې چې انگریزي دولت هرمذهب ته ازادي ورکړی ده. مسلمان وي او که هندو او که بل د هرمذهب والا وي، د کوم اشتهار چې په ډیر زور او شور سره د دربار قصری څخه په ډهلي کې ټول مشرانو ته واورول شو. (ترجمان وهابیه، ص ۸)

(۱۰) بیالیکي چې: او غټه خبره داده چې مونږ صرف قران او سنت د خپل ځان لپاره دستورالعمل گرځولی دی او د مخکنیو غټو غټو مجتهدینو طرف ته ځان منسوبول شرم گڼو او دغه مذهبي ازادي عین انگریزي قانون دی، نه مذهبي تعصب، البته کوم خلک چې د مخکنیو مجتهدینو تقلید ته فرض یا واجب وائي که هغه د محمد بن عبدالوهاب نجدي تقلید هم وکړي نو د تعجب خبره نده، او څوک چې د مخکینو مجتهدینو تقلید شرم او عار گڼي هغه به د محمد بن عبدالوهاب نجدي تقلید څرنگه وکړي؟ (ترجمان وهابیه، ص ۲۰)

(۱۱) بیالیکي: دیو مذهب تقلید هم واجب ندی.... د مذهب ازادي هم یو عجیب نعمت دی، او د مذهب پابندي د نیچریت وي او که د مقلدینو مذهب وی او که د مبتدعینو مذهب، یا د حنفیانو مذهب وي، او یا بین بین وي، دا یوه لویه بلا ده او د انگریزي حکومت د عداوت سبب دی. (ترجمان وهابیه، ص ۲۹).

(۱۲) مونږ د مذهب د نوم څخه تختو، مونږ ته د مذهب مثل بالکل رټل دي، زمونږ دا حال دی چې د هرمذهب نه أزادیو (ترجمان وهابیه ص ۳۰)

(۱۳) بیا لیکي چې: دا خلک (غیر مقلدین) په خپل مذهب کې هغه أزادي غواړي چې د کومې اشتهار چې بیا بیا انګریزي حکومت جاري کړی وو، خصوصاً چې د ډهلي دربار جاري کړی وو، چې د ټولو دربارونو سردار دی، چاچې د تقلید په رد کې څو مره رسایل لیکلي دي، هغه د مذهب د قید څخه ازاد دی او کوم مقلدینو چې د دې رسالو ته جواب لیکلی دی هغوي، د یو خاص مذهب پابند دي، د دوي د مذهبي ازادۍ سره هیڅ تعلق نشته، نو د مذهب ازادي د دې انګریزي حکومت ته او هغه چا ته چې د مذهب د ازادۍ اظهار کوي مبارک وي، تا سو خپله سوچ وکړئ چې د انګریزي حکومت د شمنان هغه څوک دي چې د یو خاص مذهب أسیران دي؟ او که هغه څوک دي چې د مذهب د پابندۍ څخه أزاد دي او د أنګریز د دروازي فقیران دي؟ (ترجمان وهابیه، ص ۳۲)

(۱۴) بیا لیکي چې: بعضې خلکو د انګریزي حکومت په وینا حنفي مذهب پرې نښودلو، هغه د انګریزانو دشمنان دي، مونږ د انګریزي حکومت په خدمت کې دومره قرباني ورکړه چې مذهب مو پریښودلو، لامذهبه شو او د انګریزي حکومت د درورازي فقیران شو، مونږ به څرنګه د انګریزي حکومت مخالفت وکړو؟ د ملکي عالیې معظمې دام اقبالها اشتهار د ټولو خلکو سره د مذهبي ازادۍ وعده کړې ده. (ترجمان وهابیه ص ۴۵).

(۱۵) د حنفیانو په باره کې لیکي چې: دوي په مذهبي تعصب، په تقلید شخصي، په ضد او په پلرني جهالت باندې ولاړ دي او کوم سهولتونه چې د انګریزي حکومت له وجهې د هندوستان رعیت ته برابر شوي دي، هغه یې شاته غورزولي دي او عالم امن ته نه پریږدي، دوي غواړي چې ټول مسلمانان دي د یو خاص مذهب پابند وي او د انګریزي حکومت سره یې خپل تعصب ښه ښکاره کړی دی او غواړي چې کله موقع په لاس ورشي نو فساد جوړ کړي، لکه د غدر په زمانه کې چې یې جوړ کړی و. (ترجمان وهابیه، ص ۵٦).

یعنې که ټول په یو مذهب وي، نو په دوي کې به اتفاق وي او په یو اتفاق به یې د انګریزي حکومت سره جهاد کولی، مونږ د دوي اتفاق ته نه پریږدو، د دې لپاره چې انګریزان بې غمه وي او د دوی سورې په مونږ باندې بر قرار وي. په سنه ۱۸۷۵ کې د لامذهبو د یو مذهبي مشر مولوي محمد حسین څخه یو سوال وشو چې ایا د هندوستان د انګریزي حکومت په خلاف اسلحه اخیستل مناسب دي او که نه؟

هغه په جواب کې لیکي چې:

(۱۶): جهاد او مذهبي جنګ په مقابله د انګریزي حکومت کې او یا په مقابله د داسې حاکم کې چې کوم مذهبي ازادي ورکړې وي؛ د شریعت له رویه عموماً خلاف او ممنوع کار دی او هغه خلک چې د انګریزي حکومت په خلاف او یا د بل کوم بادشاه په خلاف چې د مذهبي ازادۍ اعلان یې کړی وي اسلحه را واخلي او مذهبي جهاد کوي دا ټول باغیان دي او د باغیانو د سزا مستحق دي. د انګریزي حکومت په خلاف جهاد کول د سنتو څخه مخالفت دی او د ایمان د موحدینو څخه مخالف دی. د انګریزي حکومت په خلاف اسلحه را اخیستل د ایمان او د اسلام څخه مخالف دي. (ترجمان وهابیه، ص ۱۶)

خلاصه دا چې د تقلید شخصي د پرېښودلو اصل سبب د انګریزانو په خلاف د جهاد مخالفت وو او جهاد ته حرام ویل وو، مسلمانان په فروعي اختلافاتو کې مصروفول وو، د امام اعظم رحمه الله د تقلید شخصي په حرمت نه له دوي سره کوم قراني ایت وو او نه ورسره کوم حدیث وو او نه ورسره د اُمت اجماع وه. بلکې د دوي سره صرف او صرف یو دلیل وو چې هغه د ملکې وکټورې اشتهار وو.

**(۱۷) په جرم اعتراف:** مولوي محمد مبارک غیرمقلد چې د مولوي عطاء الله حنیف خاص شاګرد دی؛ لیکي چې: د جماعت غرباء اهلحدیث بنیاد د محدثینو د مخالفت لپاره اېښودل شوی دی او یو اځې دغه مقصد یې نه وو، بلکې د سید احمد شهید رحمه الله د جهادي تحریک مخالفت به یې کولو او انګریزان به یې خوشحالول. نواب صدیق حسن خان لیکي چې:

(۱۸) د مذهب تقلید واجب نه دی او اقرار او قول پوره کول او په خپل عهد او میثاق قائم کېدل د ټولو فرضونو څخه غټ فرض دی او د حاکمانو اطاعت او د رئیسانو انقیاد د ټولو واجبو څخه غټ واجب دی. (ترجمان وهابیه، ص ۲۹)

یعنې تقلید نه دی واجب، بلکې د انګریزانو اطاعت او اتباع غټ واجب دی.

(۱۹) ټول اهل سنت والجماعت امام ابوحنيفه رحمه الله ته امام اعظم وايي، حنفي وي، که شافعي وي که مالکي وي او که حنبلي وي؛ د ټولو په نزد امام اعظم دی. (تذکرة الحفاظ ذهبی ج۲ص ۱۵۸) فقيه الملة والاسلام دی (ذهبی ص ۸۴ خلاصه خزرجي ص ۴۴۵)

احد ايمة الاسلام والسادة الاعلام واحدالايمة الاربعة اصحاب المذاهب المطبوعة ( البدايه والنهايه ج ۱۰ص ۱۰۷ ) دی

ليکن د غير مقلدينو په نيز امام ابوحنيفه رحمه الله ته امام اعظم ويل شرک او کفر دی، ځکه چې د دوی د ټول جماعت له طرفه د دې القابو ادرس بدل وو، لکه چې د دوي د يو خط څخه ظاهريږي چې ملکې وکټوري ته يې ليکلی وو.

مضمون يې داسې دی چې: په حضور د فيض ګنجور کوئين ملکه عاليه معظمه وکټوريه د ې ګريټ قيصره هند بارک الله فی سلطنتها. مونږ ممبران د اهلحديث د خپل ټول جماعت له طرفه ملکې عاليې معظمې ته د جوبلي د جشن د زړه له کومې مبارکي وايو.

ستاسو په سلطنت کې چې کومه مذهبي ازادي راغلې ده د هغې څخه زمونږ جماعت ته غټه برخه په نصيب شوی ده، ځکه چې مذهبي ازادي زمونږ جماعت ته حاصله شوی ده، په خلاف د نورو اسلامي فرقو، له دې وجهې ستاسو د سلطنت په استحکام باندې د اجماعت ډير خوشحاله دی او دوي د زړه څخه د مبارکۍ چيغې په ډير زور سره درته وايي ( اشاعة السنة ج ۹ص ۲۰۶ شماره نمبر۷).

(۲۰) مولنا عبدالخالق رحمه الله چې د دې فرقې د شيخ الکل ميا نذير حسين خُسر دی ليکلي دي چې: د دې نوې فرقې باني مباني عبدالحق دی، چې ديو څو ورځو څخه په بنارس کې اوسيدو، حضرت امير المؤمنين سيد احمد شهيد د بعضې غلطو حرکاتو په وجه د خپل جماعت څخه خارج کړو او د حرمينو د علماو څخه يې د ده د قتل فتوی را وړه، مګر په څه چل د هغه څخه وتښتيدلو او بچ شو. (الحياة بعد الممات ص ۲۲۸) تنائج التقليد ص ۳ تنبيه الضالين ص ۱۳ )

(۲۱) بيا ليکي چې: د ام المومنين رضى الله عنها گستاخ مولوى عبدالحق بنارسي باني غير مقلديت په ښکاره ويل چې عايشه رضى الله تعالى عنها د حضرت على ﷺ سره جنگيدلې ده، که توبه يې نه وي ايستلې، نو مرتده مړه شوى ده (معاذالله)

او دا به يې هم ويل چې د صحابه وو رضى الله عنهم علم زما د علم څخه ډير کم وو، ځکه چې په هغوى کې د هر يو پنځه پنځه احاديث ياد وو او ماته د دوي ټول احاديث ياد دي. (کشف الحجاب ص ۴۲) مصنفه قارى عبدالرحمن صاحب شاگرد شاه اسحق صاحب.

## (۲۲) بل اعتراف:

نواب صديق حسن خان غير مقلد ليکلي دي چې: په دې زمانه کې يوه رياکاره او شهرت پسنده فرقه راپيدا شوې ده، چې د هر قسم خاميو او نقصانونو باوجود ځان لپاره د قران او د حديث د علم او په هغې باندې د عمل دعوه کوي، حالانکې د علم او د عمل او د عرفان سره د دې فرقې د لرې څخه هم تعلق نشته، دا خلک د علومو عاليه وو او آليه وو د واړو څخه بالکل جاهل دي (الحطه ص ۵۳)

او دا خلک د معاملاتو په مسايلو کې په حديثو کې د پوهې څخه بالکل خالي دي او د اهل سنتو په طريقه د يوې مسئلې استنباط هم نه شي کولى، دوي په حديث باندې د عمل په ځاى د ژبې په چالاکۍ او د سنتو د اتباع په ځاى په شيطاني وسوسو باندې اکتفاء کوي او دې ته عين دين وايي، دا خلک د اسلام د حلاوت څخه خالي الذهن دي او د نورو مسلمانانو په نسبت غټ تنگ زړي دي او د مسلمانانو په خلاف ډير سخت زړي دي. (الحطه ص ۱۵۱)

يقولون عن قول خيرالبرية وهم شرالبرية ( الحطه ص ١٥٦)

په الله ﷻ مې دې قسم وي چې څومره د تعجب خبره ده؟ دا خلک ځانونو ته خالص موحدين وايي او نورو خلکو ته بدعتيان او مشرکان وايي. حالانکه دوي د ټولو څخه زيات غالي او د دين په باره کې غټ متعصب دي. فما هذا دين ان هذا الا فتنة في الارض و فساد كبير. ( الحطه ص ١٥٤ وص ١٥٦)

**(۲۳) بل اعتراف:**

د غيرمقلدينو مشهور محدث او مؤرخ شاهجهان پورې په (۱۹۰۰) عيسوي کې يو کتاب وليکه په نامه د (الارشاد الى سبيل الرشاد) په هغې کې يې ليکلي دي چې:

د يو څه زمانې څخه په هندوستان کې يوه نابلده فرقه راپيدا شوې ده، چې خلک ورسره بالکل نا اشنا دي، مګې به ډير لږ د دې خيال والا خلک وو. د دوي نوم اوس اوس اوريدل کيږي. دوي ځان ته اهلحديث، يا موحد، يا محمدي وايي، مګر مخالفين ورته وهابيان او غيرمقلدين او لامذهبه وايي. چونکې دا خلک رکوع ته د تللو په وخت کې او د رکوع څخه د سر اوچتولو په وخت کې لاسونه جيګوي، لکه څرنګه يې چې په تکبير تحريمه کې جيګوي، له دې وجهې څخه دوي ته په بنګال کې (رفع اليديني) هم ويل کيږي. (الارشاد الى سبيل الرشاد ص ۳ص مع حاشيه)

## وهابي

چونکې په هغه زمانه کې د عثماني اسلامي خلافت په خلاف د يهودو او نصاراوو په سازش د محمد بن عبدالوهاب جماعت په عربو کې د قتل او غارت بازار ګرم کړی وو، ډير مزارونه يې وران کړل، حتی چې سعود د رسول الله ﷺ د روضې مبارکې د ورانولو قصد هم وکړو، مګر بيا يې چې ورانه نه کړله او په ابتداء کې يې اعلان وکړو چې د بيت الله شريف حج ته به د وهابيانو څخه سوی بل څوک نه راځي، عثمانيانو يې د حج څخه منع کړل او تر ډيرو ختو پورې خلک د حج څخه محروم وو او د شام او د عربو ډيرو خلکو ته حج په نصيب نه شو. (ترجمان وهابيه ص ۳٦) او دوي د عربو خلکو خصوصاً د حرمينو او سيدونکو ته ډير تکليفونه ورسول. (ترجمان وهابيه ص ۴۰)

له دې وجهې عالم اسلام د دوي څخه ډير نفرت کولو. بريالی عالم مولوی فضل رسول بديواني د خپلو مخالفينو د بدنامولو لپاره مجاهدينو ته وهابيان ويل. (ترجمان وهابيه، ص ۴۴ص ۴۷)

نو د غيرمقلدينو سره فکر پيدا شو چې وهابيان مجاهدينو ته او د حکومت برطانيه باغيانو ته وايي، نو د دې لپاره چې انګريزان ورباندې شکمن نه شي، نو فوراً يې د انګريزانو د خوشحالولو لپاره کتابونه وليکل چې: يو يې په نامه د (ترجمان وهابيه) وو. په هغې کې يې په يو بل ځای کې ليکلي دي چې:

**(۲۴):** مجاهدين حنفيان دي، چا اوريدلي دي چې ترننه پورې کوم موحد، متبع سنت، په قران او په حديث باندې چليدونکي بې وفايي کړې ده. او د اقرار د پريښودو مرتکب شوی دی، يا بغاوت ته اماده شوی

دی، کومو خلکو چې په زمانه د غدر کې شر او فساد کولو اود انګريزي دولت د حاکمانو سره يې عناد کولو؛ هغه ټول حنفيان وو. (ترجمان وهابيه ص ۲۵)

(۲۵) کله چې انګريزانو په ډهلي کې په زرهاوو علماء اعدام کړل، په لکونو عوام يې اعدام او قتل کړل او تر ډيرو ورځو پورې د قتل اود غارت بازار ګرم وو، په زرګونو کورنۍ جلا وطنه شوې، نو دې مظلومانو په باره کې نواب صديق حسن خان ليکي چې: (اود حاکمانو اطاعت او رئيسانو ته انقياد په ملت باندې واجب دی اود ټولو واجباتو ځخه غټ واجب دی. (ترجمان وهابيه ص ۷)

**(۲٦) متفقه فتوی:** جهاد او مذهبي جنګ په مقابله د انګريزي دولت کې هغه دولت چې ټولو ته يې مذهبي ازادي ورکړې ده، د شريعت له رويه ممنوع او حرام دی او کومو خلکو چې د انګريزي دولت په خلاف اسلحه را اخيستې ده او مذهبي جهاد کوي؛ دا خلک ټول باغيان دي اود باغيانو د سزا مستحق دي. په دې فتوی د ټولو غير مقلدينو متفقه طور باندې دستخط دی. (ترجمان وهابيه ص ٦۱)

د انګريزي دولت په خلاف اسلحه را اخيستل د اسلام اود ايمان خلاف عمل دی. (ترجمان وهابيه، ص۱۲۱)

## وکيل اهلحديث هند محمدحسين بټالوي

(۲۷): د انګريزي دولت په خلاف مذهبي جهاد هيڅکله نه دی جايز. (الاقتصاد فی مسايل الجهاد، ص۱۹).

(۲۸) : هندوستان سره له دې چې د عيسايي سلطنت په قبضه کې دی؛ دارالاسلام دی، په دې ملک باندې هيڅ بادشاه ته حمله نه ده جايزه، د عربو وي او که د عجمو، د سوډان مهدي وي او که خپله حضرت سلطان شاه د ايران وي او که امير د خراسان وي. (الاقتصاد ص ۲۵)

(۲۹): د دغه عيسايي حکومت سره غدر کول او په ځان او مال سره ورباندې تعرض کول حرام دي (الاقتصاد ص۳۴).

(۳۰) دا هغه خلک دي چې تقريراً او تحريراً غايب او حاضر د انګريزي حکومت وفاداران دي اود دوی په خدمت او معاونت کې سرګرم دي. (الاقتصاد ص ۴۸)

(۳۱) د انگريزي دولت په خلاف جنگيدل او د جنگيدونکو سره هر قسم امداد کول صراحةً غدر او حرام دي. (الاقتصاد ص ۴۹).

(۳۲): له دوي سره جنګيدل شرعي جهاد نه دی، بلکې عناد او فساد دی، څوک چې د سنه ۱۸۵۷ په فسادکې شريک شوي دي، هغه ګناهګاران دي، مفسدين او باغيان او بدکرداره دي، په دوی کې اکثر عوام کالانعام دي او کوم چې پکې خواص او علماء دي هغوی هم د اصلي علومو د دين څخه ناخبره دي، پوهان علماء ځيني ځکله په دې فساد کې نه شريکيږي. (الاقتصاد ص ۴۹)

(۳۳): هغه خلک چې ځانونو ته مجاهدين وايي په حرام مرګ باندې مړه کيږي، د جنتونو د خوشحاليو څخه به محروم وي، داسې فسادونو ته جهاد ويل او په دې کې د شهادت په شوق شريکيدل سراسر جهالت او حماقت دی. (الاقتصاد ص ۷۱)

(۳۴): مشهور غير مقلد عالم مولوي مسعود عالم ندوي ليکلي دي چې: د معتبرو او ثقه راويانو بيان دی چې محمد حسين بټالوي ته د دې رسالې (الاقتصاد) په عوض کې د انګريزانو له خوا ډيرې ځمکې ورکړل شوی. (پهلی اسلامی تحريک ۲۹)

(۳۵): يو بل غير مقلد عالم مولوي عبدالمجيد سوهدروي ليکلي دي چې: مولوی حسين بټالوي د اشاعة السنة په ذريعه د اهلحديثو ډير خدمت وکړو او د وهابي نوم دده په کوششونو سره په سرکاري دفترونو او کاغذونوکې منسوخ شو او دا جماعت يې د اهلحديثو په نوم نامداره کړو، ده د انګريزي حکومت هم پوره خدمت وکړو او په انعام کې ورته ډير جائداد ونه هم په لاس ورغلل. (سيرت ثنائي ص ۳۷۲)

(۳۶): د هغې عريضې متن چې دوي انګريزي دولت ته ليکلې وه داسې دی چې: په خدمت د جناب سيکرټري ګورنمنټ! مونږ ستاسو په خدمت کې د لاندې ليکو د اجازت او معافی غوښتونکي يو. په سنه ۱۸۸۶ء کې مونږ خپله مياشتنی رساله اشاعة السنة شائع کړه، په هغې کې مونږ د دې خبرې اظهار کړی وو چې د وهابي لفظ عموماً د باغي او د نمک حرام په معنا کې استعماليږي، لهذا د دې لفظ استعمال د غې ډلې ته چې

اهلحدیث ورته وایي او همیشه د انگریزي حکومت نمک حلال او خیرخواهان دي. او دا خبره بیا بیا ثابته شوې هم ده او سرکاري خط او کتابت کې منلی شوې ده، مونږ په پوره ادب او انکساری سره گورنمنټ ته درخواست کوو چې هغوي په سرکاري طور سره دا د وهابي لفظ منسوخ کړي او ددې لفظ د ممانعت حکم نافذ کړي او مونږ د اهلحدیثو په نوم سره مخاطب کړي.

په دې عریضه د ټولو صوبو د اهلحدیثو دستخطونه ثبت دي. [اشاعة السنة ص ۲۴ شماره نمبر ۲].

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْه، قَالَ: «وَعَدَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ الْهِنْدِ، فَإِنْ أَدْرَكْتُهَا أُنْفِقْ فِيهَا نَفْسِي وَمَالِي، فَإِنْ أُقْتَلْ كُنْتُ مِنْ أَفْضَلِ الشُّهَدَاءِ، وَإِنْ أَرْجِعْ فَأَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ الْمُحَرَّرُ»(الحديث نسائی: ج:۲،ص:۵۲).

عَنْ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللهِ، صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عِصَابَتَانِ مِنْ أُمَّتِي أَحْرَزَهُمَا اللهُ مِنَ النَّارِ: عِصَابَةٌ تَغْزُو الْهِنْدَ، وَعِصَابَةٌ تَكُونُ مَعَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ عَلَيْهِمَا السَّلَام». (نسائی: ج:۲، ص:۵۲، مسند احمد: ج:۵، ص:۲۷۸، مجمع الزوائد: ج:۵، ص:۲۸۲)

الحمدلله هند احنافو فتح كړی دی، نو درسول الله ﷺ ددې پيش ګوئي مصداق احناف دي

# دلامذهبه وكتوري اهلحديثو دامام بخاري او د صحيح البخاري سره سخت اختلاف

[illegible]

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

الحمدلله وحده والصلوة والسلام علي من لا نبي بعده.

أمابعد!

محترمو! زمونږ په ملکونو کې لامذهبان ځانونو ته اهلحديث وايي، حالانکې دې ملکونو ته نه دوي حديث راوړي دي، او نه په حديث پوهيږي، ځکه چې په هندوستان باندې دانګريزانو ددورې څخه مخکې، دحديثو يوه شرحه هم داسې نه شته چې مؤلف يې لامذهبه وي، کله چې دلامذهبانو داحنافو سره بحث شي، نو لامذهبان وايي چې مونږ ته دبخاري حديث راوښايه، دعوامو په خيال کې دا وراچوي چې دلامذهبانو مسلک دصحيح البخاري سره موافق دی مونږ به دلته دنمونې په طريقه يو څو مسايل وليکو دهغې څخه به تاسو ته معلومات وشي چې لامذهبه وکتوري اهلحديث نه دامام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ سره په عقايدو کې متفق دي، او نه دامام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ سره په اعمالو کې متفق دي او نه دصحيح البخاري په احاديثو باندې عمل کوي، ددوي سره صرف حديث النفس دی.

## ۱. په تقليد کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله مقلد وو، دامام شافعي رحمه الله اويا دامام احمد رحمه الله په مذهب وو، ابو عاصم عبّادي رحمه الله، امام تاج الدين السبکي رحمه الله، حضرت شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله او نواب صديق حسن خان ورته شافعي مقلد ويلي دي.

او ابو يعلى رحمه الله، علامه ابن تيميه رحمه الله او علامه ابن القيم رحمه الله ورته حنبلي مقلد ويلي دي.

علامه تاج الدين السبکي رحمه الله په طبقات الشافعية الکبرى کې ليکي چې (ذکر ابو عاصم العبادي اباعبدالله فى کتاب الطبقات وقال سمع من الزعفراني، وابى ثور، والکرابيسي قلت

رتفقه على الحميدى وكلهم من أصحاب الشافعي رحمه الله (طبقات الشافعية الكبرى ج ٢صــ ٢١٤)

ابو عاصم په خپل كتاب طبقات الشافعية كې دامام بخاري رحمه الله ذكر كړى دى او فرمايلي يې دي چې دزعفراني رحمه الله، ابوثوررحمه الله، او دكرابيسى رحمه الله څخه يې دحديثو سماع كړې ده، علامه سبكي رحمه الله فرمايي چې زه وايم چې امام بخاري رحمه الله دحميدي رحمه الله څخه فقه لوستلې ده او دا ټول شوافع وو.

شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: ( ومن هذا القبيل محمدبن اسماعيل البخاري فانه معدود فى طبقات الشافعية وممن ذكره فى طبقات الشافعية الشيخ تاج الدين السبكي وقال انه تفقه بالحميدى، والحميدى تفقه بالشافعى، واستدل شيخنا العلامه على ادخال البخارى فى الشافعية بذكره فى طبقاتهم وكلام النووى الذى ذكرناه شاهد له (الانصاف مع ترجمة وصّاف صـ٦٧)

نواب صديق حسن خان ليكلي دي چې: فلنذكر نبذا من أيمة الشافعية ليكون الكتاب كامل الطرفين حايز الشرفين، وهؤلاء صنفان احدهما: من تشرف بصحبة الامام الشافعى، والأخر من تلاهم من الأيمة أم الأول فمنهم احمد خالد الخلال.... واماالصنف الثانى فمنهم محمد بن ادريس ابو حاتم الرازى ومحمد بن اسماعيل البخارى (ابجدالعلوم ج ٣صـ ١٢٦)

همدارنګه يې ليكلي دي چې: وقال الشيخ تاج الدين السبكي فى طبقات كان البخارى امام المسلمين، وقدوة المؤمنين وشيخ الموحدين والمعول عليه فى احاديث سيد المرسلين، قال وقد ذكره ابو عاصم فى طبقات اصحابنا الشافعية (الحطة فى ذكر الصحاح الستة صـ٢٨٠)

نو دنواب صديق حسن خان په نيز هم امام بخاري رحمه الله شافعي دى، ځكه چې دا اقوال يې رانقل كړي دي او سكوت يې پرې كړى دى، بل طرف ته قاضي ابو الحسين محمد بن ابى يعلى الحنبلي په طبقات الحنابله ج ١صـ ٢٧١، كې ورته حنبلي ويلي دي.

ابن تيميه رحمه الله په يو ځاى کې ليکي چې: وأيمة الحديث كالبخاري ومسلم والترمذی والنسائي وغيرهم ايضا من اتباعهما (اى احمد بن حنبل واسحاق بن راهويه) وممن يأخذ العلم والفقه عنهما (فتاوى ابن تيميه ج ۲۵، صـ ۲۳۲)

علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي چې: وكذلک البخارى ومسلم وابوداؤد والأثرم وهذه الطبقة من أصحاب احمد اتبع له من المقلدين المحض المنتسبين اليه (اعلاء الموقعين ج ۲صـ ۲۲۳)

بعضي خلک امام بخاري رحمه الله ته مجتهد مطلق وايي او د شافعي والي لپاره يې داسې توجيه کوي چې ده ته شافعي په دې اعتبار سره ويلى شي چې دده اجتهاد دامام شافعي رحمه الله د اجتهاد سره مطابق وؤ، لکن دا خبره د تحقيق څخه مخالفه ده، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: ان البخارى فى جميع مايورده من تفسير الغريب انما ينقله عن أهل ذلک الفن كأبى عبيدة والنضر بن شميل، والفراء وغيرهم، اما المباحث الفقهية فغالبها مستمدة له من الشافعى وابى عبيد وأمثالهم واما المباحث الكلامية فأكثرها من الكرابيسى، ابن كلاب ونحوها( فتح البارى ج ۲صـ ۲۵۳، باب مايقول عند الخلاء)

نو که مجتهد مطلق وى، نو په فقهي مباحثو کې به يې دامام شافعي رحمه الله او دامام ابو عبيد څخه استمداد نه کولو بلکې پخپله به يې اجتهاد کولو.

۲-که امام بخاري رحمه الله مجتهد مطلق وى نو دده ذکر به په طبقات الفقهاء کې راغلى وو.

۳-د مجتهد لپاره خپل اصول وي چې د هغې اصولو په رڼا کې اجتهاد کوي او دامام بخاري رحمه الله داسې اصول نشته.

۴-که امام بخاري رحمه الله مجتهد مطلق وى نو د فقهې په کتابونو او په اختلاف الفقهاء کې به دده اقوال رانقل کيدلى، حالانکې دده فقهي قول څوک نه رانقلوي، امام ترمذي دامام بخاري رحمه الله شاګرد دى، د حديث د تصحيح او د تضعيف په سلسله کې دامام بخاري رحمه الله اقوال رانقلوي، لکن په اختلاف الفقهاء کې دده قول نه رانقلوي، مولانا سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې امام بخاري رحمه الله، شافعي المذهب وو، نه مجتهد مطلق وو او نه په دې معنى باندې شافعي وو چې دده اجتهاد دامام شافعي رحمه الله د اجتهاد سره مطابق وو، بلکې د دومره وسعت نظرى سره سره شافعي المذهب مقلد وو (طايفه منصوره صـ ۱۱۱)

ددي په خلاف لامذهبو جعلي اهلحديث تقليد ته شرک ، ګمراهي بدعت وايي (ضرب الشديد على أهل التقليد صـ ۶ص ، سياحت الجنان صـ ۵، طريق محمدی صـ ۲۳)

دصحيح البخاري اساس تقليد دی

امام بخاري رحمه الله د روايت په رانقلولو کې په خپل شيخ باندې اعتماد کوي او دده شيخ په خپل شيخ اعتماد کوي او همدا داعتماد سلسله تر نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پورې روانه وي امام بخاري رحمه الله چې دخپل شيخ څخه حديث اوري او رانقلوي يې نو په صحت الحديث کې مطالبه ددليل ترينه نه کوي چې همدې ته تقليد وايي .

## دامام بخاری رحمه الله استاذان مقلدين وو

په صحيح بخاری کې قابل فخر احاديث ثلاثيات دي، په صحيح البخاري کې (۲۲) ثلاثيات دي چې يوولس يې دمکي بن ابراهيم حنفی رحمه الله څخه روايت کړي دي چې دامام صاحب رحمه الله بالذات شاګرد وو ، شپږ يې دابو عاصم النبيل څخه روايت کړي دي چې دا هم دامام صاحب شاګرد وو ، درې يې دمحمد بن عبد الله الانصاري څخه روايت کړي دي چې دا هم دامام صاحب په شاګردانو کې وو يو يې دخلاد بن يحيی الکوفي څخه روايت کړی دی او يو يې دعاصم بن خالد الحمصي رحمه الله څخه روايت کړی دی دصحيح البخاری ټول راويان تقريبا (۴۱۰) دي په دې کې څه دپاسه (۲۰۰) عراقيان دي په دې کې تقريبا (۴۵) کوفيان دي او تقريبا (۸۵) پکې بصريان دي او باقي دنورو ښارونو دي دامام بخاري رحمه الله ديو څو هغو استاذانو نومونه چې دامام صاحب بالذات شاګردان دي، يا دامام صاحب دشاګردانو شاګردان دي . (۱) امام احمد تلميذ ابو يوسف (۲) سعيد بن ربيع، تلميذ ابو يوسف (۳) امام ضحاک بن مخلد ابو عاصم النبيل تلميذ امام صاحب (۴) عباس بن وکيع، تلميذ ابويوسف (۵) عبد الله بن يزيد العدوي، تلميذ امام صاحب (۶) عبيد الله بن موسی تلميذ امام صاحب (۷) علی بن جعد الجوهري، تلميذ امام ابو يوسف (۸) علی بن حجر المروزي، تلميذ ابو يوسف (۹) علی بن المدينی تلميذ ابويوسف (۱۰) فضل بن عمرو دکين تلميذ امام صاحب (۱۱) محمد بن صباح الدولابي، تلميذ امام ابو يوسف (۱۲) محمد بن عمرو بن جبلة تلميذ امام محمد (۱۳) محمد بن عبد الله المثنی

تلميذ امام صاحب (١٤) محمد بن مقاتل، تلميذ امام محمد (١٥) مکی ابن ابراهيم تلميذ امام صاحب (١٦) هشام بن عبد الملک الباهلی، تلميذ امام محمد (١٧) هشيم بن خارجه، تلميذ ابو يوسف (١٨) يحيی بن صالح، تلميذ امام محمد (١٩) يحيی بن معين تلميذ الصاحبين (٢٠) يحيی بن يحی بن بکير، تلميذ ابو يوسف و غيرهم.

## ٢- دفقهې او دفقهاوو په عظمت کې اختلاف

### دامام بخاري رحمه الله نظر:

دامام بخاري رحمه الله په نظر کې فقه دقرآن او د حديث ثمره ده، فقهاء دامت ډيوې دي، ددين پوهان دي، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري (ج١ صـ ١٦) کې باب قائم کړی دی په نوم د: (باب من يرد الله به خيرا يفقه فی الدين)، ددې باب لاندې يې بيا دا حديث ذکر کړی دی چې: (من يرد الله به خيرا يفقهه فی الدين وانما أنا قاسم الخ)

همدارنګه يې په صحيح البخاري (ج ١ صـ ٤٧٩) کې درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا حديث ذکر کړی دی چې (الناس معادن خيارهم فی الجاهلية خيارهم فی الاسلام اذا فقهوا)

امام نووي رَحِمَهُ اللَّهُ د (اذا فقهوا) ترجمه کوي (صاروا فقهاء عالمين بالاحکام الشرعية (نووي شرح مسلم ج ٢صـ ٢٦٨)

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ته دعا وکړه چې: (اللّٰهُمَّ فقهه فی الدين (صحيح بخاری صـ ٢٦)

عبد الله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: کونوا ربّانين حکماء علماء، فقهاء (بخاری ج ١ صـ ١٦)

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: تفقهوا قبل أن تسوّدوا (ج ١ ص- ١٧)

امام بخاري په ماشومتوب کې دامام صاحب دشاګردانو (امام وکيع رَحِمَهُ اللَّهُ او عبد الله بن مبارک رَحِمَهُ اللَّهُ) دکتابونو څخه فقه زده کړه، (سير اعلام النبلاء ج ١٢ صـ ٢٢٧) همدارنګه يې دامام ابو حفص کبير رحمه الله شاګردي وکړه او (جامع سفيان) يې ترينه واوريدلو تاريخ بغداد ج ٢ صـ ١١) يو ځل

امام ابو حفص رَحِمَهُ ٱللَّهُ دامام بخاري رحمه الله په باره کې وفرمایل چې (هـذا شـاب كـيس ارجـوا أن يكون له صيت ذكر (سير اعلام النبلاء ج ١٢ صـ ٤٢٥)

امام بخاري رحمه الله ته قاضي وليد ابن ابراهيم پخپل ماشومتوب کې راغلو او دمحدثوالی شوق يې ښکاره کړو، امام بخاري ورته دمحدثوالي شرائط بيان کړل، وليد بن ابراهيم چې هغه شرايط واوريدل دده د وس څخه بهر وو نو خفه شو امام بخاري رحمه الله ورته وفرمايل چې:

فان لاتطيق تحمل هذه المشاق كلها فعليك بالفقه الذى يمكنك تعلمه وأنت فى بيتك قار، ساكن لاتحتاج الى بعد الاسفار ووطى الديار، وركوب البحار، وهو مع هذا ثمرة الحديث وليس ثواب الفقيه بدون ثواب المحدث فى الأخرة وعزّه بأقل من عزّ المحدث (تهذيب الكمال ج ٢٤صـ ٤٦٤ قديم)

## دلامذهبه وکتبوري اهلحديثو نظر:

(١) لامذهبه حکيم فيض عالم صديقي ليکي چې: زه بيا بيا ددې خبرې وضاحت ضروري ګڼم چې دفقه حنفی کوم دا سفار لهو الحديث مجموعه چې په دنيا کې خوره ده دمسلمانانو ديوې ډلې لپاره دګمراهی سبب جوړه شوی دی، ددې فقهې ديو لفظ تعلق هم دامام ابو حنيفه رحمه الله سره نه شته (اختلاف امت کا الميه صـ ١۴، صـ ٣١٢)

(٢) دغرباء اهلحديث عبد الستار پخواني امام دخپل پلار عبد الوهاب په علمي خدماتو کې ليکي چې زما پلار به دفقهې مروج کتابونه دشريعت سره منافي ګڼل او پدې باندې عمل کولو ته به يې ګمراهي او حرام ويل (خطبه امارت صـ ١٣ مشموله رسايل اهلحديث ج دوم)

همدارنګه ليکي چې دفقهې خراب او ګنده مسايل، (خطبه امارت صـ ١۵)

(٣) دلامذهبو مشهور مناظر طالب الرحمن ليکي چې: فقه حنفي ددومره ګنده مسايلو څخه ډکه "چې زما قلم او ژبه دهغې تحمل نه شي کولی الخ (اصلي حنفي نماز صـ ۴)

(۴) لامذهبه ابو الکليم اشرف سليم دفقهې مسايلو ته ګمراه کن، شرمناک، انسانيت سوز، موجب لعنت، خودساخته، غير معتبر، غير مستند، مخرب الأخلاق او عقايد باطله ويلي دي، (احاديث نبويه اور فقه حنفيه صـ ٣)

## ۳- په استقبال او استدبار الی الکعبة عند البول والغایط کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١ص ٢٦) کې حديث ذکر کړی دی چې: عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ ﷺ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «إِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الغَائِطَ، فَلاَ يَسْتَقْبِلِ القِبْلَةَ وَلاَ يُوَلِّهَا ظَهْرَهُ، شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا»

کله چې يو کس په تاسو کې بيت الخلا ته راغلو نو نه دی قبلې ته مخ اړوي او نه دې ورته شا اړوي.

ددې حديث څخه معلوميږي چې کعبې شريفې ته استقبال او استدبار مطلقا ناجايز دي، په اباديو کې وي او که په صحراء کې، علامه ابن قيم رحمه الله فرمايي چې: وأصح المذاهب فی هذه المسئلة أنه لافرق فی ذلک بين الفضاء والبنيان لبضعة عشر دليلا قد ذکرت فی غير هذا الموضع (زاد المعاد فی هدی خيرالعباد ج ١ص ٨)

پدې مسئله کې صحيح مذهب دادی چې د اباديو او دصحرا فرق نشته له وجې ددیارلسو دلایلو څخه چې ما په بل ځای کې ذکر کړي دي.

لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي أهل حديث ليکي چې: دغهو او دوړو متيازو په وخت کې قبلې ته مخ او شا اړول جايز دی، ناجايز والی يې په ځای پريده مکروه هم نه دي، بلکې سنت دي (دستور المتقی ص۴۵)

وحيد الزمان ليکي چې: ولايکره الاستقبال والاستدبار للاستنجاء (نزل الابرار ج ١ص۵۳)

## ۴- دمنی په پاکی او ناپاکی کې اختلاف

دامام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ په نيز باندې مني نجسه ده، امام بخاری رَحِمَهُ ٱللَّهُ باب قائم کړی دی په نوم د(باب اذا غسل الجنابة او غيرها فلم يذهب أثره ج ١ ص ٣٦)

لامذهبه وحيد الزمان ددې عنوان لاندې ليکلي دي چې دامام بخاری په نيز مني نجسه ده (تيسير الباری ج ١ص ١٧٠)

## او دلامذهبه جعلی اهلحديثو په نيز مني پاکه ده

وحيد الزمان ليکي چې: والمنی طاهر سواء کان رطبا او يابسا مغلظا اوغير مغلظ (کنز الحقايق ص ٦ نزالابرار ج ١ ص ٤٩)

نواب نور الحسن ليكي چې: مني هر چند پاک است،(عرف الجاري ص ١٠)

نواب صديق حسن خان ليكي چې: ودرنجاست منى ادمى دليلى نيامده (بدور الأهله ص ١٥)

## ٥- په لړو اوبو کې دنجاست د غورزيدلو په وجه داوبو په پاکۍ او ناپاکۍ کې اختلاف

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په صحيح البخاري ج ١ ص ٣٧ کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب البول فی الماء الدايم) او بيا يې حديث ذکر کړی دی چې رسول الله فرمايي چې: لايبولن أحدكم فی الماء الدايم الذی لايجری ثم يغتسل فيه.

هيڅوک دې په ولاړو اوبو کې متيازې نه کوي، هغه چې رواني نه وي، چې وروسته بيا غسل هم پکې کوي.

ددې حديث څخه معلوميږي چې په ولاړو اوبو کې چې نجاست وغورزيږي نو أوبه نجسيږي برابره خبره ده چې أوصاف ثلاثه يې متغير شوي وي او که نه، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې لږې اوبه تر هغې پورې نه نجسيږي تر څويې چې خوند، رنګ او بوي نوي بدل شوی، لامذهبه نواب نورالحسن ليکي چې: (آب باران، ودريا، وچاه طاهر ومطهر است پليت نمی گردد مگر بنجاستی که بو يامزه يارنگ او را برگرداند (عرف الجادی ص ٩)

لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې: لايفسد ماء البئر ولو كان صغيرا والماء فيه قليلا بوقوع نجاسة اوموت حيوان دموي او غير دموي ولو انتفخ او تفسخ اوتمعط بشرط أن لايتغير أحد اوصافه(نزل الأبرار ج ١ ص ٣١)

## ٦- په غسل کې دمضمضې او استنشاق په وجوب کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز په غسل کې مضمضه او استنشاق واجب نه دي، امام بخاری په صحيح البخاري ج ١ ص ٤٠) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة) ددې لاندې لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې دامام بخاری رحمه الله په نيز په غسل کې مضمضه او استنشاق واجب نه دي داحنافو په نيز په غسل کې واجب او په اودس کې سنت دي او دأهل حديثو په نيز په غسل او اودس دواړو کې واجب دي (تيسير الباری ج ١ ص ١٨٨)

## ۷- داودس په اندامونو کې په مولات کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز په اودس کې داندامونو په مينځلو کې موالات ضروري نه دی، امام بخاري رحمه الله په ج ۱.ص ۴۰) کې باب قائم کړی دی په نوم د(بَابُ تَفْرِيقِ الْغُسْلِ وَالْوُضُوءِ وَيُذْكَرُ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما: «أَنَّهُ غَسَلَ قَدَمَيْهِ بَعْدَ مَا جَفَّ وَضُوءُهُ» او بيا يې دا حديث ذکر کړی دی چې: قَالَتْ مَيْمُونَةُ رضي الله عنها: «وَضَعْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاءً يَغْتَسِلُ بِهِ، فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ، فَغَسَلَهُمَا مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، وَغَسَلَ رَأْسَهُ ثَلاَثًا، ثُمَّ أَفْرَغَ عَلَى جَسَدِهِ، ثُمَّ تَنَحَّى مِنْ مَقَامِهِ، فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ»

لامذهبه وحيد الزمان ددې باب په فايده کې ليکي چې يعنی مولات نه کول، دابو حنيفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ او شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په نيز موالات واجب نه دی ، دامام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم همدا مذهب دی (تيسير الباری ج ۱ ص ۱۹۲)

لکن لامذهبان ليکي چې ترک دمولات بدعت دی، دلامذهبو سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چې: (وترک ولاء در وضوء بدعت است وهرگز از انحضرت صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واز حاکيان وضوئش تفريق ميان اعضاء وضوء ثابت نگشته بلکه يکی را بعد ديگری می شست وميان غسل دوعضو بچيزی ديگر مشتغل نمي شد پس تفريق رد است بر فاعل آن ووی غير خالص است از مبتدع بودن وفعل ابن عمر بتمسک نيرزد زيراکه کرده صحابی حجت نباشد اگر چه بصحت رسد (بدور الأهله ص_ ۲۸)

## ۸- په جماع بلا انزال باندې دغسل د وجوب په باره کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز دجماع بلا انزال په صورت کې غسل نه دی واجب امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ ص ۴۳) کې دغسل دوجوب او دعدم وجوب مختلف احاديث ذکر کړي دي وروسته يې خپله رأيه داسې ذکر کړې ده چې ( قال ابو عبد الله الغسل احوط ) يعنی دجماع بلا أنزال په صورت غسل واجب نه دی البته احتياط دا دی چې غسل وکړی شي .

وحيد الزمان ليکي چې: وههنا مذهب أخر ذهب اليه طائفة من الصحابة واختاره بعض اصحابنا کالامام البخاری وهو أنه لا يجب الغسل بالايلاج فقط اذا لم ينزل عملا بحديث انما الماء من الماء (نزل الابرار ج صـ ۲۳)

لکن ددې په خلاف بعضې غير مقلدين دجماع بلا انزال په صورت کې غسل واجب ګڼي، نواب نور الحسن ليکي چې: وجوب غسل بخروج منی از شهوت ست اگر چه بتفکر باشد وبملاقات هر دوختان اگر چه انزال نه شود (عرف الجاری صـ ۱۴) وهکذا فی صلوة الرسول للحکيم صادق السيالکوټي صـ ۶۳)

## ۹- دحايضې او دجنب لپاره دقرآن دلوستلو په جواز او عدم جواز کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز دحايضې او دجنب لپاره دقرآن لوستل صحيح دي، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ صـ ۴۴) کې داسې باب قائم کړی دی چې (باب تقضی الحايض المناسک کلها الاالطواف بالبيت)

ددې باب باندې امام بخاري رحمه الله ډير اثار ذکر کړي دي، چې دهغوي څخه دا ثابتول غواړي چې دحايضې او دجنب لپاره دقرآن لوستل صحيح دي، وحيد الزمان ليکي چې: دامام بخاری رحمه الله مذهب دا را معلوميږي چې دحايضې او دجنب دواړو لپاره دقرآن لوستل صحيح دي (تيسير الباری ج ۱ صـ ۲۱۵)

لکن ددې په خلاف لامذهبه وکټوري أهل حديث وايي چې: دحايضې او دجنب لپاره دقرآن لوستل صحيح نه دي، نواب نو الحسن ليکي چې: وجنب وحايض را درآمدن بمسجد وخواندن قرآن حرام است نه حلال (عرف الجادی صـ ۱۵)

وهکذا فی صلوة الرسول صـ ۶۹ وصـ ۷۴، فقه محمديه ج ۱ صـ ۳۱)

## ۱۰- دمس المرء په وجه د أودس په ماتيدلو کې اختلاف

دامام بخاری رحمه الله په نيز دمس المرءې په وجه اودس نه ماتيږي، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ صـ ۵۶ کې حديث ذکر کړی دی، حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې: «کُنْتُ

أَنَامُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجْلَايَ، فِي قِبْلَتِهِ فَإِذَا سَجَدَ غَمَزَنِي، زه به درسول الله ﷺ په مخ کې ویده کیدلم او زما پښې به دنبي کریم ﷺ په قبله کې وی، پس کله به چې نبي کریم ﷺ سجده کوله نو زه به یې وسکوندلم.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: وفى هذه الترجمة بيان صحتها ولواصابها بعض جسده (فتح البارى ج١ صـ ٩٥٣)

لکن لامذهبه جعلی اهلحدیث دصحیح البخاری ددې حدیث په خلاف لیکي چې مس المرءة ناقض لپاره داودس دی (تیسیر الباری ج ١ صـ ١٤٢، فتاوی اهلحدیث ج ١صـ ٢٨١)

## ١١- دڅپلیو او دبوټونو سره لمونځ کول

امام بخاري رحمه الله په ج ١ صـ ٥٦ کې باب قائم کړی دی په نوم دباب الصلوة فى النعال ددې لاندې یې دا حدیث ذکر کړی دی چې :عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَزِيدَ الأَزْدِيِّ، قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رضي الله عنه: أَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي نَعْلَيْهِ؟ قَالَ: «نَعَمْ»

وحید الزمان په یوځای کې لیکي چې: مستحبه دا ده چې په څپلیو او په بوټانو کې لمونځ وکړی شي (تیسیر البارى ج ١ صـ ٢٧٨) او په نزل الابرار ج ١ صـ ٦٨) کې لیکي چې : ويسن أن يصلى فى النعلين اذا كان طاهرين ، لکن ددې په خلاف دنن سبا غیر مقلدین په دې باندې عمل نه کوي ،یعنې څپلی او بوټان اوباسي او بیا لمونځ کوي.

## ١٢- داوښانو په غوجل کې دمونځ په مسئله کې اختلاف

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په صحیح البخاري ج ١ صـ ٦١ کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب الصلوة فى مواضع الابل) ددې لاندې وحید الزمان لیکي چې دامام مالک رحمه الله او دامام شافعی رحمه الله په نیز د اوښانو په غوجل کې مونځ مکروه دی ، لکن امام بخاری رحمه الله ورباندې رد کړی دی (تیسیر البارى ج ١ صـ ٣٠٤) ددې څخه وروسته وحید الزمان لیکي چې: دامام بخاری رحمه الله په نیز باندې داوښانو په غوجل کې بلا کراهته لمونځ جایز دی ، لکن ددې په خلاف باندې وحید الزمان خپل نظر

داسې ليکي چې حق داده چې د اوښانو په غوجل کې لمونځ کول حرام دي او که څوک هلته لمونځ وکړي نو اعاده پرې لازمه ده (تيسير الباري ج ١ ص ۴۳۲)

## ۱۳- په مسجد کې دمنبر او دمحراب دجوړولو په باره کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١ ص (۷۱) کې دسلمة بن الأكوع يو حديث ذکر کړی دی چې:(كان جدار المسجد عند المنبر ما كادت الشاة تجوزها) دمسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دقبلې دديوال او منبر په مابين کې دومره فاصله هم نه وه چې يو پسه (گډ) پکې تير شي.

وحيد الزمان ددې په تشريح کې ليکي چې دحديث څخه دا خبره را معلومه شوه چې په مسجد کې محراب او دمنبر جوړول سنت نه دي، دمحراب جوړول خو بالکل نه دی پکار او منبر هم دلرگي څخه جدا جوړول پکار دي، چې دديوال څخه جدا وي زمونږ په زمانه کې دا عموم بلوا ده چې په هر مسجد کې محراب او منبر دخښتو څخه جوړولی شي (تيسير الباري ج ١ ص ۳۴۲)

لامذهبه عبد الستار دده څخه هم يو څو قدمه مخکې ځي او ليکي چې په مسجد کې مروجه محراب ناجايز او بدعت دی (فتاوی ستاريه ج ١ ص ۶۳)

لکن ددې په خلاف نن سبا دغير مقلدينو په ټولو مساجدو کې دمنبر سره محراب هم موجود وي.

## ۱۴- په مکه مکرمه کې دسترې څخه بغير دمونځ کونکي په مخ کې په تيريدلو کې اختلاف

دامام بخاری رحمه الله په نيز په هر ځای کې، (مکه وي او که غير مکه) دسترې څخه بغير دمونځ کونکي په مخ کې تيريدل ممنوع دي، امام بخاری رحمه الله په صحيح البخاری ج ١ ص ۷۲) کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب السترة بمكة وغيرها)، ددې باب لاندې لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې دامام بخاری رحمه الله مقصد دادی چې دسترې لگول په هر ځای کې لازم دي مکه وي او که غير مکه وي او همدا دشوافعو او داحنافو قول هم دی او حنابله ليکي چې په مکه کې دمونځ کونکي مخې ته تيريدل جايز دي (تيسير الباری ج ١ ص ۳۴۴)

لکن د دې په خلاف د غير مقلدينو مسلک دا دی چې په مکه کې بغير د سترې څخه هم د مونځ کونکي مخې ته تيريدل جايز دي (فتاوی أهل حديث ج ۱ صـ ۴۵۷)

## ۱۵- په گرمۍ کې د ماسپښين د مونځ په تاخير کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاری ج ۱ صـ ۷۶)

کې باب قايم کړی دی په نوم د (باب الابراد بالظهر فی شدة الحر) په سخته گرمۍ کې د ماسپښين د مونځ يخول يعنې وروسته کول يې ترڅو چې هوا يخه شي.

بيا امام بخاري رحمه الله د دې باب لاندې ډير احاديث ذکر کړي دي.

(۱) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: إِذَا اشْتَدَّ الحَرُّ فَأَبْرِدُوا بِا الصَّلاَةِ. کله چې گرمي سخته شي نو په يخنۍ کې مونځ کوئ.

(۲) «إِذَا اشْتَدَّ الحَرُّ فَأَبْرِدُوا عَنِ الصَّلاَةِ، فَإِنَّ شِدَّةَ الحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ»

کله چې گرمۍ تيزه شي نو په يخنۍ کې لمونځ کوئ ځکه چې سخته گرمي د جهنم براس دی.

(۳) ابردوا بالظهر فان شدة الحر من فيح جهنم ) د ماسپښين لمونځ په يخنۍ کې کوئ ځکه چې شدة د گرمي د جهنم د براس څخه دی.

لکن د صحيح البخاري د دې احاديثو په خلاف د لامذهبه جعلي أهل حديثو مسلک دا دی چې په هر حالت کې لمونځ په اول وخت کې کول پکار دي. (فتاوی ثنائيه ج ۱ صـ ۵۵۳، صلوة الرسول ۲.۱۴۶)

## ۱۶- د سهار د فرض لمونځ څخه وروسته تر لمر ختلو پورې او د مازيگر لمونځ څخه وروسته تر لمر پريوتلو پورې د لمونځ په کولوکې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاری (ج ۱ صـ ۸۲، صـ ۸۳) کې د دې مضمون لپاره يو څو احاديث ذکر کړي دي.

(عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: " أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ بَيْعَتَيْنِ، وَعَنْ لِبْسَتَيْنِ وَعَنْ صَلاَتَيْنِ: نَهَى عَنِ الصَّلاَةِ بَعْدَ الفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ العَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ).

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوه قسمه خرڅولو او د دوه قسمه اغوستلو او په دوو وختونو کې لمونځ څخه منع کړې ده، یو د سهار د لمانځه څخه وروسته تر څو چې لمر راخيژي او يو د مازيګر د لمونځ څخه وروسته تر څو، چې لمر پريوزي.

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيَّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لاَ صَلاَةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ، وَلاَ صَلاَةَ بَعْدَ العَصْرِ حَتَّى تَغِيبَ الشَّمْسُ»

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: نشته لمونځ وروسته د سهار د لمانځه څخه تر څو چې لمر راخيژي او نه شته مونځ وروسته د مازيګر د لمانځه څخه تر څو چې لمر پريوزي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلاَتَيْنِ: بَعْدَ الفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ العَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ ").

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع فرمايلې ده د دوه لمونځونو څخه اول: وروسته د سهار د لمانځه څخه تر څو چې لمر را وخيژي، دوهم وروسته د مازيګر د لمانځه څخه تر څو چې لمر پريوزي.

لکن د دې احاديثو په خلاف د لامذهبه جعلي اهلحديثو مسلک دا دی چې په دې وختونو کې تحية المسجد، د طواف نوافل او د سهار سنت جايز دي، نواب نور الحسن ليکي چې: نيست نماز بعد از صبح تا آنکه مهر آيد مگر دو رکعت سنت صبح ونه بعد از عصر تا آنکه غايب گردد مگر دو رکعت طواف بلکې اين نما در هر ساعت از روز وشب جايز است (عرف الجادی ص ۱۸)

## ۱۷- د فوت شوو لمونځونو په راګرزولو کې اختلاف

په صحيح بخاري ج ۱ ص ۸۳ کې امام بخاری داسې عنوان لګولی دی چې: باب من صلی بالناس جماعة بعد ذهاب الوقت.

د دې باب لاندې يې دا حديث ذکر کړی دی چې: عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، جَاءَ يَوْمَ الخَنْدَقِ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ، جَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ، وَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا كِدْتُ أَنْ أُصَلِّيَ، حَتَّى كَادَتِ الشَّمْسُ أَنْ تَغْرُبَ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ: «وَاللهِ مَا صَلَّيْتُهَا» فَنَزَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُطْحَانَ، فَتَوَضَّأَ لِلصَّلاَةِ وَتَوَضَّأْنَا لَهَا، فَصَلَّى العَصْرَ بَعْدَمَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ، ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهَا المَغْرِبَ).

همدا حديث امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ صـ ۸۴) (باب قضاء الصلوة الأولى فالاولى ) لاندې هم ذکر کړی دی، په همدې صفحه کې يې يو بل باب لګولی دی په نوم د( باب من نسی صلوة فليصل اذا ذکر) او ددې باب لاندې يې دا حديث ذکر کړی دی چې: (عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﵁، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ نَسِيَ صَلاَةً فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَهَا، لاَ كَفَّارَةَ لَهَا إِلَّا ذَلِكَ {وَأَقِمِ الصَّلاَةَ لِذِكْرِي} [طه: ١٤] "

ددې احاديثو څخه دوه شيان ثابت شو، يو دا چې دعذر، دخوب او يا هيرې له وجې چې لمونځ فوت شي نو دهغې قضائي لازمه ده، نو چې دعذر په صورت کې قضاء لازمه ده نو که ديو چا څخه قصدا لمونځ فوت شوی وي نو په هغه باندې په طريقې اولی سره قضائي لازمه ده.

دوهمه خبره ترينه دا معلومه شوه چې که ديو چا څخه ډير لمونځونه فوت شوي وي نو په ترتيب سره دهغې اداء پکار ده، لکه دخندق دغزوې په موقع باندې فوت شوي لمونځونه نبی کريم ﷺ او صحابه کرامو په ترتيب سره اداء کړل، دامام بخاري رحمه الله ترجمة الباب هم دهمدې تقاضی کوي.

لکن ددې احاديثو په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې په قصد سره دپريښودلي شوو لمونځونو قضائي نشته، صرف توبه او استغفار کافي دی، دستور المتقی صـ ۱۴۹، فتاوی اهل حديث ج ۱ صـ ۴۱۵، فتاوی ستاريه ج ۴ صـ ۱۵۴، رسول اکرم کی نماز صـ ۱۱۵.)

## ۱۸- که امام په ناسته لمونځ کوي نو مقتدي به څرنګه کوي؟

دامام بخاری رحمه الله په نيز که امام په ناسته لمونځ کوي نو مقتدي به ورپسې په ولاړه لمونځ کوي، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ صـ ۹۱) کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب حد المريض أن يشهد الجماعة ) مريض ته ترکومه حده پورې جماعت ته تلل پکار دي؟ ددې باب لاندې امام بخاري رحمه الله دحضرت عايشې رضی الله عنها حديث رانقل کړی دی، خلاصه يې دا ده

چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل مرض الوفات کې ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حکم وکړو چې خلکو ته امامتي ورکړي، يوه ورځ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مرض کې لږ تخفيف راغلو نو مسجد ته يې تشريف ويوړو، ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شاته شو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جانماز باندې کيناستلو او ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولاړ وو شاته مقتديان ولاړ وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې : وَاسْتُدِلَّ بِهِ عَلٰى صِحَّةِ صَلَاةِ الْقَادِرِ عَلَى الْقِيَامِ قَآئِمًا خَلْفَ الْقَاعِدِ) (فتح الباری: ج:٢ص:١٥٦).

همدا دجمهورو صحابه وو رضی الله عنهم تابعينو رحمهم الله اود أئمه يې اربعه وو رحمهم الله مسلک دی، وروسته امام بخاری رحمه الله بل باب قايم کړی دی چې : (انما جعل الامام ليؤتم به) بيا يې ددې لاندې دوه داسې احاديث ذکر کړي دي چې په هغوي کې راغلي دي چې که امام په ناسته لمونځ کولو، نو تاسو هم ورپسې په ناسته باندې لمونځ کوئ، امام بخاري رحمه الله ددې توجيه کوي فرمايي چې : قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: قَالَ الْحُمَيْدِيُّ: قَوْلُهُ: «إِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا» هُوَ فِي مَرَضِهِ الْقَدِيمِ، ثُمَّ صَلَّى بَعْدَ ذَلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا، وَالنَّاسُ خَلْفَهُ قِيَامًا، لَمْ يَأْمُرْهُمْ بِالقُعُودِ، وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ بِالْآخِرِ فَالْآخِرِ، مِنْ فِعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) (بخاری:ج:١ص:٩٦).

ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث وايي چې که امام په ناسته لمونځ کولو نو مقتديان به هم ورپسې به ناسته لمونځ کوي (تيسير الباری ج ١ص٤٤٩)

## ١٩- دامامت په مستحق کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١ص٩٣) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب أهل العلم والفضل احق بالامامة)

ددې باب لاندې يې دابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دامامت والا احاديث ذکر کړي دي، په دغه وخت کې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أقرء (أبی بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) امام نه کړو، لکن ددې احاديثو او دامام بخاري دمسلک په خلاف لامذهبه جعلي أهلحديث ليکي چې اولی بالامامة اقرأ دی، عبد الرحمن مبارکپوري

ليکي چې : قلت الظاهر الراجح عندي هو تقديم الأقرأ على الأفقه(تحفة الأحوذي ج ١صـ ١٩٧، عرف الجادى صـ ٣٦)

## ۲۰- دجماعت دلمانځه په تخفيف کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١ص ۹۷، کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب تخفيف الامام فى القيام و اتمام الركوع و السجود) ددې باب لاندې يې يو حديث ذکر کړی دی، حضرت ابو مسعود انصاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ديو امام څخه شکايت وشو چې اوږد لمونځ کوي، نو رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير په غوصه شو او وې فرمايل چې ايا تاسو خلک متنفر کوئ؟ هرڅوک چې په تاسو کې امامتي کوي نو داختصار لحاظ دې کوي، لکن لا مذهبه جعلي اهلحديث ددې حديث او دامام بخاري رحمه الله دمسلک په خلاف ډير اوږد لمونځ کوي، دنذير حسين سوانح نګار ليکي چې لامذهبه نذير حسين به دسهار لمونځ په ۴۵، دقيقو کې کولو او دماسپښين لمونځ به يې په نيمه ګينټه کې کولو (الحيات بعد الممات ص. ۲۷۷)

## ۲۱- په مانځه کې دبسم الله بالسر په باره کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١ صـ ١٠٢) کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب مايقرأ بعد التكبير) اوددې باب لاندې يې داحديث ذکر کړی دی چې: عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانُوا يَفْتَتِحُوْنَ الصَّلاَةَ بِ {الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ}"

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، ابو بکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دالحمد لله څخه لمونځ شروع کولو، يعنې الحمد لله به يې جهراً لوستله او اعوذ بالله او بسم الله به يې سرا لوستل دا مضمون په ډيرو احاديثو کې راغلی دی، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې په جهري لمونځونو کې بسم الله جهرا لوستل بهتر دي، نواب نور الحسن ليکي چې (ودرنماز جهريه بجهر ودر سريه بسر- بايد خواند) عرف الجادى صـ ٣٦، وهكذا فى دستور المتقى صـ ٩٢، لمحمد يونس دهلوي .

## ۲۲-په مقتدي باندې دسورة دلوستلو په وجوب کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص۱۰۴، کې باب قائم کړی دی په نوم د (بـاب وجـوب القراءة للامام والماموم فى الصلوة كلها) نو امام بخاري په قراءت باندې تعبير کړی دی، داسې يې نه دي ويلي چې (باب وجوب الفاتحـة للامـام والمـاموم) ددې څخه معلوميږي چې په امام او په مقتدي دواړو باندې دسورة فاتحې او د ورپسې سورة لوستل واجب دي، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې په مقتديانو باندې فقط دسورة فاتحې لوستل واجب دي (تيسير الباری ج ۱ص۴۹۸)

## ۲۳-دفرض مونځ په وروستنيو دواړو رکعتونو کې دضم دسورة په باره کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص۱۰۷)

کې باب قايم کړی دی په نوم د (باب يقرأ فى الأخيرين بفاتحة الكتاب)

او ددې باب لاندې يې دا حديث ذکر کړی دی چې: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الكِتَابِ، وَسُورَتَيْنِ، وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الكِتَابِ )

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په اولو دواړو رکعتونو کې سورة فاتحه او دوه سورتونه (په هر رکعت کې يو سورت) لوستل او په وروستنيو دواړو رکعتونو کې به يې سورة فاتحه لوستله، نو په وروستنيو دواړو رکعتونو کې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عمل کې دسورة فاتحې سره دسورة ذکر ونه شو، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې دفرضو په وروستنيو دواړو رکعتونو کې دسورة فاتحې څخه وروسته سورة هم لوستلی شي (يجوز للرجل أن يقرأ بعد الفاتحة السورة فى الأخريين ايضا من الصلوة الرباعية) نزل الابرار ج۱ص۷۸)

## ۲۴- مدرک د رکوع مدرک درکعت دی او که نه ؟

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص۱۰۸، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب اذا ركع دون الصف) او ددې باب لاندې يې دا حديث ذکر کړی دی چې: عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رضي الله عنه، أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ رَاكِعٌ، فَرَكَعَ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الصَّفِّ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «زَادَكَ اللَّهُ حِرْصًا وَلاَ تَعُدْ»

ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په داسې حال کې مسجد ته راغلو چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په رکوع کې وو، نوصف ته درسیدلو څخه مخکې يې رکوع وکړه، نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې الله تعالی دې (په نيکو کارونو کې) نور حرص هم درکړي، لکن بيا داسې مه کوه، ددې حديث څخه دوه خبرې رامعلومې شوې، اول: دا چې مدرک د رکوع مدرک د رکعت دی، او دوهم: دا چې په مدرک د رکوع باندې دسورة فاتحې لوستل واجب نه دي، بلکې بغیر دلو ستلو دسورة فاتحې څخه يې لمونځ کيږي، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې مدرک د رکوع مدرک د رکعت نه دی او نه يې بغير دلوستلو دفاتحې څخه لمونځ کيږي (فتاوی نذيريه ج ۱صـ ۴۹۶) نواب نورالحسن ليکي چې: بې فاتحه نه نماز صحيح است ونه ادراک رکعت معتد به، (عرف الجادی صـ ۲۶، لامذهبه وحيدالزمان ليکي چې: (ولو وجد الامام فی الرکعة لايعتد بتلک الرکعة لأن قرأة الفاتحة فرض عندنا) نزل الابرارج ۱صـ ۱۳۳)

## ۲۵- دجمعې په ورځ دغسل په وجوب او عدم وجوب کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاری ج ۱صـ ۱۲۰، کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب فضل الغسل يوم الجمعة) باب دی په بيان د فضيلت دغسل کې دجمعې په ورځ، علامه ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: قَالَ الزَّيْنُ بْنُ الْمُنِيرِ لَمْ يَذْكُرِ الْحُكْمَ لِمَا وَقع فِيهِ من الْخلاف وَاقْتصر على الفضل لِأَنَّ مَعْنَاهُ التَّرْغِيبُ فِيهِ وَهُوَ الْقَدْرُ الَّذِي تَتَّفِقُ الْأَدِلَّةُ عَلَى ثُبُوتِهِ). (فتح الباری ج ۲صـ ۳۵۷)

امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ دغسل حکم ذکر نه کړو چې فرض دی او که واجب دی او که سنت؟ بلکې يواځې دفضل لفظ يې ذکر کړو دکوم څخه چې مقصود ترغيب دی، ځکه چې دا داسې درجه ده چې أدله ورباندې متفق دي، أيمه اربعه هم په دې متفق دي چې دجمعې په ورځ غسل سنت دی، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث دجمعې دورځې غسل ته واجب وايي، نواب نورالحسن ليکي چې: وبرای جمعه واجب است، (عرف الجادی صـ ۱۴،)

لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې: ولمن يريد أن يصلى الجمعة واجب (نزل الابرار ج ۱صـ ۲۵)

## ۲۶- دجمعې د لمانځه په وخت کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله دصحيح البخاري ج ۱صـ ۱۲۳، کې باب قائم کړی دی په نوم د (بَابُ وَقْتُ الجُمُعَةِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَذَلِكَ يُرْوَى عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَالنُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، وَعَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ) ددې باب لاندې يې دا حديث رانقل کړی دی چې: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الجُمُعَةَ حِينَ تَمِيلُ الشَّمْسُ»

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د زوال څخه وروسته دجمعې لمونځ کولو، حافظ ابن حجر رحمه الله ددې په تشريح کې فرمايي چې: (جَزَمَ بِهَذِهِ الْمَسْأَلَةِ مَعَ وُقُوعِ الْخِلَافِ فِيهَا لِضَعْفِ دَلِيلِ الْمُخَالِفِ عِنْدَهُ). فتح الباری ج ۲صـ ۳۸۷، نو دامام بخاري رحمه الله په نيز علی اليقين دجمعې دمونځ وخت دزوال څخه وروسته دی، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې دجمعې دمونځ اداکول دزوال څخه مخکې هم جايز دي، لامذهبه نواب صديق حسن خان ليکي چې: (وقد ورد ما يدل على أنها تجزء قبل الزوال (الروضة الندیه ج ۱صـ ۱۳۷)

نواب نورالحسن ليکي چې: ووقت نماز جمعه نماز ظهر است وقبل از زوال هم جايز باشد (النهج المقبول فی شرايع الرسول صـ ۲۸)

نواب وحيد الزمان ليکي چې: ووقتها من حين ارتفاع الشمس قدر رمح الى انتهاء وقت الظهر (نزل الابرار ج ۱صـ ۱۵۲)

## ۲۷- دجمعې دلمانځه په دوو أذانونو کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله دصحيح البخاري ج ۱صـ ۱۲۵، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب التأذين عند الخطبة) دخطبې په وخت کې د أذان بيان او ددې باب لاندې يې دا حديث رانقل کړی دی چې: عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمه الله، قَالَ: سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ رضي الله عنه، يَقُولُ: «إِنَّ الأَذَانَ يَوْمَ الجُمُعَةِ كَانَ أَوَّلُهُ حِينَ يَجْلِسُ الإِمَامُ، يَوْمَ الجُمُعَةِ عَلَى المِنْبَرِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ

اللَّهُ عَنْهُمَا، فَلَمَّا كَانَ فِي خِلاَفَةِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، وَكَثُرُوا، أَمَرَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَوْمَ الجُمُعَةِ بِالأَذَانِ الثَّالِثِ، فَأُذِّنَ بِهِ عَلَى الزَّوْرَاءِ، فَثَبَتَ الأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ».

د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به د جمعې اول أذان په هغه وخت کې کيدلو کله به چې امام (خطبې ته) کيناستلو، د حضرت ابو بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې هم همداسې کيدل د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې خلک ډير شول، نو حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دريم أذان (کوم چې د زوال څخه وروسته کولى شي) حکم وکړو، نو د زوراء په مقام کې وکړى شو بيا همدا طريقه په أمت کې پاتې شوه، دا ذان د صحابه وو په موجوده گۍ کې وکړى شو او هيچا هم اعتراض ونکړو نو په دې أذان باندې د صحابه وو اجماع هم شوه، مخکې به دا أذان په زوراء مقام کې کيدلو او بيا په مسجد کې کيدلو او ترننه پورې په مسجد کې کيږي، لکن د خليفه الراشد حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خلاف په هغه وخت کې د موجودو ټولو صحابه وو په خلاف، د ټول امت د متوارث عمل په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ورته بدعت وايي (وګوره فتاوى ستاريه ج ۳ صـ ۸۵، فتاوى علماء حديث ج ۲ صـ ۱۷۹، تيسير البارى ج ۲ صـ ۲۱)

## ۲۸- وتر، تهجد او نفل جدا جدا لمونځونه دي او که يو لمونځ دى ؟

حضرت امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ صـ ۱۳۵، کې يو عنوان قائم کړى دى په نوم د (ابواب الوتر) د دې لاندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (وَلَمْ يَتَعَرَّضِ الْبُخَارِيُّ لِحُكْمِهِ لَكِنْ إِفْرَادُهُ بِتَرْجَمَةٍ عَنْ أَبْوَابِ التَّهَجُّدِ وَالتَّطَوُّعِ يَقْتَضِي أَنَّهُ غَيْرُ مُلْحَقٍ بِهَا عِنْدَهُ) (فتح البارى ج ۱ صـ ۴۷۸، کتاب الوتر)

امام بخارى د وترو حکم بيان نه کړو، چې وتر فرض دي او که واجب دي او که سنت دي، لکن د تهجدو او د تطوع څخه يې دوترو لپاره جدا باب لګولى دى، د دې څخه معلوميږي چې دده په نيز وتر د تهجدو او د نفلو پورې ملحق نه دي، لکن د دې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې وتر، تروايح او تهجد ټول يو لمونځ دى لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې صحيح داده چې تراويح، تهجد، وتر او صلوة الليل ټول يو لمونځ دى (تيسيرا لبارى ج ۲ صـ ۷۷)

## ۲۹- دوترو په دعاء قنوت کې اختلاف چې قبل الركوع دي او که بعد الركوع ؟

امام بخاری رحمه الله په صحيح البخاری ج ا ص ۱۳۶، کې يوروايت ذکر کړی دی : عَنْ عَاصِمٌ رضي الله عنه قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنه عَنِ الْقُنُوتِ، فَقَالَ: قَدْ كَانَ الْقُنُوتُ قُلْتُ: قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْ بَعْدَهُ؟ قَالَ: قَبْلَهُ، قَالَ: فَإِنَّ فُلاَنًا أَخْبَرَنِي عَنْكَ أَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ، فَقَالَ: «كَذَبَ إِنَّمَا قَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا، أُرَاهُ كَانَ بَعَثَ قَوْمًا يُقَالُ لَهُمُ القُرَّاءُ، زُهَاءَ سَبْعِينَ رَجُلًا، إِلَى قَوْمٍ مِنَ المُشْرِكِينَ دُونَ أُولَئِكَ، وَكَانَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ، فَقَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا يَدْعُو عَلَيْهِمْ».

حضرت عاصم رضي الله عنه فرمايي چې ما دحضرت انس رضي الله عنه څخه دقنوت په باره کې پوښتنه وکړه ؟ هغه رضي الله عنه راته وفرمايل چې قنوت شته ، بيا مې ورته وويل چې قبل الركوع دي او که بعدالركوع ؟ حضرت انس رضي الله عنه وفرمايل چې قبل الركوع دي ، بيا مې ورته يو سړی وخودلو چې هغه خو په تا حواله در کوله چې قنوت بعدالركوع دي ، حضرت انس رضي الله عنه وفرمايل چې هغه دروغ وايي، نبی کريم صلی الله علیه وسلم يوه مياشت بعدالركوع قنوت لوستلی وو، او زما په خيال وجه يې دا وه چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم د اوياوو په شا او خواکې قاريان مشرکينو ته ورليږلي وو هغه مشرکينو دمعاهدې با وجود غدر وکړو هغه قاريان يې شهيدان کړل ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم يوه مياشت قنوت (نازله) ولوستلو هغوي ته يې ښيرا کولې ، همدارنګه په صحيح البخاري ج ۲ص ۵۸۶، کې روايت دی چې : (قَالَ عَبْدُ العَزِيزِ وَسَأَلَ رَجُلٌ أَنَسًا رضي الله عنه عَنِ القُنُوتِ أَبَعْدَ الرُّكُوعِ أَوْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ القِرَاءَةِ؟ قَالَ: «لاَ بَلْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ القِرَاءَةِ»

يو سړي دحضرت انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې قنوت درکوع څخه وروسته دی او که (د رکوع څخه مخکې) دقراءت څخه وروسته دی ؟ حضرت أنس رضي الله عنه وفرمايل چې د (رکوع څخه مخکې) او دقراءت څخه وروسته دی، لکن ددې احاديثو په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث وايي چې

قنوت د رکوع څخه وروسته دی، لامذهبه عبدالرحمن مبارکپوري ليکي چې: (يجوز القنوت قبل الركوع وبعده والمختار عندى بعده) تحفة الأحوذى ج١صـ ٢٤٣، وهكذا فى فتاوى علماء حديث ج ٣صـ ٢٠٥، فتاوى اهلحديث ج ١صـ ٦٣٢)

## تور دروغ

په فتاوى علماء حديث کې يې په صحيح البخاری باندې حواله ورکړې ده چې قنوت بعد الرکوع دی، حالانکې دا سخت دروغ دي، په صحيح البخاري کې د قنوت بعد الرکوع يو حديث هم نشته، ديده بايد.

## سخته دوهکه

لامذهبه صادق سيالکوټی دصلوة الرسول صـ ٣٥٩) په حاشيه کې په نسائي او په ابو داؤد باندې حواله ورکړې ده چې وتر بعد الرکوع دي، حالانکې هلته د قنوتِ الوتر بيان نه دی بلکې د قنوت نازله بيان دی.

دمسلم په شارح نووي رحمه الله باندې يې هم حواله ورکړې او دنووي رحمه الله دومره عبارت يې رانقل کړی دی چې: (ومحل القنوت بعد رفع الرأس فى الركوع فى الركعة الاخيرة) حالانکې دامام نووي رحمه الله عبارت دومره نه دی، بلکې دامام نووي رحمه الله دعبارت تعلق هم دقنوت نازله سره دی او ټول عبارت يې داسې دی چې: قَالَ عَبْدُ العَزِيزِ وَسَأَلَ رَجُلٌ أَنَسًا ﷺ عَنِ القُنُوتِ أَبَعْدَ الرُّكُوعِ أَوْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ القِرَاءَةِ؟ قَالَ: «لاَ بَلْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ القِرَاءَةِ»

**٣٠- په مسافت القصر کې اختلاف**

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١صـ ١٤٧، کې داسې باب قائم کړی دی چې: (بَابٌ: فِي كَمْ يَقْصُرُ الصَّلاَةَ وَسَمَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَوْمًا وَلَيْلَةً سَفَرًا» وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ، وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، يَقْصُرَانِ، وَيُفْطِرَانِ فِي أَرْبَعَةِ بُرُدٍ وَهِيَ سِتَّةَ عَشَرَ فَرْسَخًا).

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديوې شپې او ورځې په سفر کې هم قصر کړی دی او عبد الله بن عمر رضی الله عنهما او عبد الله بن عباس رضی الله عنهما په څلورو بُرُدُو کې چې شپاړس فرسخه کيږي

(یعنې په اته څلويښت ميله فاصله) کې قصر کولو، يو فرسخ درې ميله دى، نو (۴۸=۱۶x۳) لکن دامام بخاری رحمه الله ددې قائم کړی باب په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې مسافة القصر حدنه لري او بعضې ورته نهه ميله حد تاکي او بعضې ورته درې ميله حد تاکي، وحيد الزمان ليکي چې حد ورته نه دى مقرر (تيسير الباري ج ۲ صـ ۱۳۶، ثناء الله امر تسري ليکي چې حد يې درې ميله دى، فتاوى ثنائيه ج ۱ صـ ۶۳۰)

مفتي عبد الستار ليکي چې حديې درې او يا نهه ميله دى، (فتاوى ستاريه ج ۳ صـ ۵۷)

لامذهبه اسماعيل سلفي ليکي چې زياته صحيح خبره داده چې مسافه د قصر نهه ميله ده (رسول اکرم کي نماز صـ ۱۰۶)

## ۳۱- دماښام دلمانځه څخه مخکې په نفلو کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ صـ ۱۵۷ کې باب قائم کړی دى په نوم د (باب الصلوة قبل المغرب) ددې باب باندې يې دا دوه حديثونه ذکر کړی دى.

(۱) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ رضي الله عنه، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ الْمُزَنِيُّ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «صَلُّوا قَبْلَ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ»، قَالَ: «فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ كَرَاهِيَةَ أَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً»

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د ماښام دلمانځه څخه مخکې لمونځ کوئ په دريم ځل نبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې دچاچې خوښه وي (هغه دى يې کوي) رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا خبره نه خوښوله چې خلک دې يې سنت جوړ کړي.

(عَنْ مَرْثَدَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْيَزَنِيِّ رحمه الله، قَالَ: أَتَيْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ الْجُهَنِيَّ رضي الله عنه، فَقُلْتُ: أَلاَ أُعْجِبُكَ مِنْ أَبِي تَمِيمٍ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ؟ فَقَالَ عُقْبَةُ: «إِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»، قُلْتُ: فَمَا يَمْنَعُكَ الآنَ؟ قَالَ: «الشُّغْلُ»

ابو تميم رحمه الله به د ماښام دلمونځ څخه مخکې دوه رکعته نفل کول، حضرت مرثد رحمه الله حضرت عقبة رضي الله عنه ته و فرمايل چې ايا زه تا ته دا بو تميم تعجبي خبره و نکړم؟ هغه د ماښام د مانځه

ځخه مخکې دوه رکعته نفل کوي، حضرت عقبة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا مونږ به مونږ دنبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې کولو، حضرت مرثد رحمه الله ورته وفرمايل چې اوس يې ولی نه کوي؟ حضرت عقبة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې اوس مصروف يم.

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ددې دواړو حديثونو ځخه دا ثابتوي چې دادوه رکعته سنت نه دي، خپله رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې ددوو رکعتونو ته سنت ويل مکروه وګڼل، په دوهم حديث کې راغلل چې صحابه کرامو دا دوه رکعته پريښي وو او دا بعيده ده چې صحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی سنت پرېږدي، لکن ددې دواړو حديثونو په خلاف دلامذهبو په نيز دمابنام دمانځه ځخه مخکې دوه رکعته لمونځ سنت دی، بلکې ددې دواړو رکعتونو تارک ظالم او بدعتي دی (فتاوی علماء حديث ج ۴صـ ۲۳۲، صـ ۲۳۵)

## ۳۲- دحضرت عايشې رضی الله عنه داتو رکعاتو والا حديث

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱صـ ۱۵۴ کې باب قائم کړی دی، په نوم د(باب قيام النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالليل فی رمضان وغيره) او ددې باب لاندې يې دحضرت عايشې رضی الله عنها دا حديث رانقل کړی دی چې : عَنْ مَرْثَدَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ اليَزَنِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ، قَالَ: أَتَيْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ الجُهَنِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقُلْتُ: أَلاَ أُعْجِبُكَ مِنْ أَبِي تَمِيمٍ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلاَةِ المَغْرِبِ؟ فَقَالَ عُقْبَةُ: «إِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»، قُلْتُ: فَمَا يَمْنَعُكَ الآنَ؟ قَالَ: «الشُّغْلُ»

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به (ټول کال) په رمضان او غير رمضان کې يوولس رکعته کول (اته رکعته تهجد او درې رکعته وتر) اول به يې ډير اوږده اوښه ځلور رکعته وکړل، بيا به يې همداسې نور ځلور رکعته وکړل، او بيا به يې درې رکعته وکړل، حضرت عايشه رضی الله د رسول الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځخه پوښتنه کوي چې ايا ته د وترو ځخه مخکې اوده کيږئ؟ نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې زما سترګې ويدې وي لکن زړه مې ويښ وي.

لامذهب جعلي اهل حديث دتروايحو په باب کې دحضرت عايشې رضی الله عنها دغه مذکور حديث پيش کوي، حالانکې اولاً خو ددې حديث تعلق دتراويحو سره نه دی بلکې په دې حديث کې دټول

کال (رمضان وغیره) دمونځ یعني دتهجد و بیان دی او ثانیاً دا چې لامذهبان دتراویحو په باب کې هم په دې حدیث باندې عمل نه کوي.

۱- په دې حدیث کې د څلورو څلورو رکعتونو ذکر دی او لامذهبان دوه دوه رکعته کوي.

۲- په دې حدیث کې دانفرادي لمونځ بیان دی او لامذهبیان یې په جماعت سره کوي.

۳- په دې حدیث کې دکور دلمونځ بیان دی او لامذهبان یې په مسجد کې کوي.

۴- په دې حدیث کې وتر دخوب څخه وروسته ذکر شوي دي او لامذهبان یې مخکې کوي.

۵- په دې حدیث کې ټول کال (رمضان وغیر) ددریو رکعتو وترو ذکر دی او لامذهبان ټول کال رچینه خو غوندې ټراری کوي چې وتر یو رکعت دي.

۶- په دې حدیث کې دا هم راغله چې نبی کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتر یواځې کول او لامذهبان یې په جماعت سره کوي.

## ۳۳- دجنازې په مونځ کې دامام د أودریدلو په ځای کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نیز دنارینه وواو دزنانه وو دواړو په جنازه کې امام ته پکار ده چې دمړي دملا په استقامت باندې ودریږي، امام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ په صحیح البخاری ج ۱صـ۱۷۷) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب این یقوم من المرأة والرجل) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: وَلِهَذَا أَوْرَدَ الْمُصَنِّفُ التَّرْجَمَةَ مَوْرِدَ السُّؤَالِ وَأَرَادَ عَدَمَ التَّفْرِقَةِ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ).(فتح الباری: ج:۳ص:۲۰۱).

لامذهبه وحید الزمان لیکي چې دامام بخاری رحمه الله په نیز امام ته پکار دي چې دنارینه او دزنانه دواړو دملا په استقامت ودریږي (تیسیر الباري ج ۲صـ۲۹۲)، لکن ددې په خلاف دلامذهبو مسلک دادی چې امام به دنارینه دسر په استقامت او دزنانه دملا په استقامت باندې اودریږي (تیسیر الباری ج ۲صـ۲۹۱، فتاوی علماء حدیث ج ۵صـ۲۰۸)

## ۳۴- په سماع الموتی کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص ۱۷۸، کې باب قائم کړی دی په نوم د (بَابٌ: المَيِّتُ يَسْمَعُ خَفْقَ النِّعَالِ) او ددې باب لاندې يې حديث ذکر کړی دی چې مړی دخلکو دپښو کشاری اوري (حَتَّى إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ، أَتَاهُ مَلَكَانِ).

لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې ددې حديث څخه سماع الموتی ثابتيږي (تيسير الباری ج ۲ص ۲۹۵) لکن ددې په خلاف دنن زمانې لامذهبان سماع الموتی نه مني او دشرک دروازه ورته وايي (انتخاب رسايل بهاؤ لپوري ص ۳۴)

## ۳۵- دمشرکينو په اطفالو کې اختلاف

دامام بخاری رحمه الله په نيز قول مختار دادی چې دمشرکانو ماشومان جنتيان دي، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص ۱۸۵) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب ماقيل فی اولاد المشرکين) حافظ ابن حجر رحمه الله ددې لاندې ليکي چې : هَذِهِ التَّرْجَمَةُ تُشْعِرُ أَيْضًا بِأَنَّهُ كَانَ مُتَوَقِّفًا فِي ذَلِكَ وَقَدْ جَزَمَ بَعْدَ هَذَا فِي تَفْسِيرِ سُورَةِ الرُّومِ بِمَا يَدُلُّ عَلَى اخْتِيَارِ الْقَوْلِ الصَّائِرِ إِلَى أَنَّهُمْ فِي الْجَنَّةِ كَمَا سَيَأْتِي تَحْرِيرُهُ)(فتح الباری: ج:۲ ص:۲٤٦).

لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې دامام بخاري رحمه الله په نيز باندې مختاره داده چې دمشرکانو اولادونه جنتيان دي (تيسير الباري ج ۲ص ۳۳۰) لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث وايي چې دمشرکانو اولادونه يا جهنميان دي او يا پکې توقف پکار دی (تيسير الباري ج ۲ص ۳۳۱، السراج الوهاج شرح مسلم ج ۲ص ۶۱۲، لنواب صديق حسن خان)

## ۳٦- دميقات څخه مخکې داحرام په تړلو کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز دميقات څخه مخکې داحرام تړل نه دي جايز، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص ۲۰۶، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب فرض مواقيت الحج والعمرة) ددې باب لاندې حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي چې: (وَهُوَ ظَاهِرُ نَصِّ الْمُصَنِّفِ وَأَنَّهُ لَا يُجِيزُ الْإِحْرَامَ بِالْحَجِّ

وَالْعُمْرَةِ مِنْ قِبَلِ الْمِيقَاتِ) دامام بخاري رحمه الله په نيز باندې دميقات څخه مخکې دحج او دعمرې احرام تړل جايز دي ، لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې کيدی شي چې دامام بخاري رحمه الله په مذهب باندې دميقات څخه مخکې احرام ناجايز وي (تيسير الباري ج ٢ صـ ٤٣٨) لکن ددې په خلاف دلامذهبو په نيز دميقات څخه مخکې داحرام تړل جايز دي ، لامذهبه نواب صديق حسن خان ليکي چې: ويجوز الاحـرام بـالحج بمـا فـوق الميقات ابعد من مكة سواء دويرة أهله وغيرها ومن الميقات أفضل (السراج الوهاج ج ١ صـ ٤٠٥)

## ٣٧- داحرام په حالت کې دنکاح په جواز او عدم جواز کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز باندې داحرام په حالت کې دنکاح تړل جايز دي ، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ١ صـ ٢٤٨ ، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب تزويج المحرم) بيا يې دا احاديث ذکر کړي دي . (١)(عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَهُوَ مُحْرِمٌ».

(٢)(أَنْبَأَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: «تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ».

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داحرام په حالت د حضرت ميمونه رضی الله عنها سره نکاح وکړه ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (كأنه يحتج الى الجواز لانه لم يذكر فى الباب شيئا غير حديث ابـن عباس فى ذلک ولم يخرج حديث المنع كأنه لم يصح عنده على شرطه (فتح الباری ج ٩ صـ ١٦٥)

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ دمحرم دنکاح په جواز باندې استدلال کوي ، ځکه چې په دې باب کې يې يوازې دابن عباس رضی الله عنهما دجواز حديث ذکر کړی دی ، کيدی شي چې دمنع حديث دامام بخاري رحمه الله په شرط باندې نه وي برابر ، لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې: کيدی شي چې پدې مسئله کې دامام بخاري رحمه الله نظر دامام ابو حنيفة رحمه الله او دأهل کوفه وو سره متفق وي (تيسير الباري ج ٣ صـ ٤٢)

لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې په حالت داحرم کې نکاح ناجايزه ده (تحفة الأحوذي ج ٢ صـ ٨٨)

## ۳۸- دبخاري روايت ته موضوعي ويل

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۱ص ۵۵۱ ، کې فرمايي چې دنکاح په وخت کې دحضرت عايشې رضی الله عنها عمر شپږ کاله وو او دواده په وخت کې نهه کاله وو.

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «تَزَوَّجَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا بِنْتُ سِتِّ سِنِينَ»

وَنَكَحَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَهِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِينَ، ثُمَّ بَنَى بِهَا وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ»

لکن لامذهبه فيض صديقي عالم دې رواياتو ته موضوعي وايي (صديقه کائنات ص ۸۰)

## ۳۹- دغزوې دخندق په تاريخ کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز غزوه دخندق په څلورم کال دهجرت باندې وه، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۲ص ۵۸۸، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب غزوة الخندق ) او بيا فرمايي چې: (قال موسی بن عقبة کان فی شوال سنة اربع) په څلورم کال دهجرت دشوال په مياشت کې دخندق غزوه پيښه شوه ، لکن ددې په خلاف لامذهبه صفی الرحمن مبارکپوري ليکي چې صحيح داده چې غزوه دخندق په پنځم کال دهجرت وه ،( وکانت غزوة الخندق سنة خمس من الهجرة فی شوال علی اصح القولين (الرحيق المختوم عربی ص ۳۵۱)

## ۴۰- دافک دحديث په باره کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۲ص ۵۹۳) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب حديث الافک ) همدارنګه يې په ص ۶۹۶ کې د(ان الذين جاءوا بالافک ) لاندې اوږد حديث ذکر کړی دی او دا حديث تقريبا ټولو محدثينو او مفسرينو ذکر کړی دی ، لکن لامذهبه فيض عالم صديقي ليکي چې دا واقعه دحضرت عايشې رضی الله عنها نه ده او امام بخاری رحمه الله ددې روايت په معامله کې مرفوع القلم دی ددې واقعې ديو راوي ابن شهاب زهري په باره کې ليکي چې ابن شهاب دمنافقينو او کذابينو څخه وؤ اکثر ګمراه کن او دروغژن روايات ده ته منسوب دي صديقه ،کاينات ص ۱۰۵، ص ۱۰۶، ص ۱۰۷)

## ۴۱- درضاعت په مسئله کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز دقليل او دکثير څخه حرمت درضاعت ثابتيږي، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۲ صـ ۶۴، کې باب قائم کړى دى په نوم د (قَوْله بَاب من قَالَ لا رضاع بَعْدَ حَوْلَيْنِ لِقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ مَا يحرم من قليل الرضاع وكثيرة) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (قَوْله بَاب من قَالَ لا رضاع بَعْدَ حَوْلَيْنِ لِقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ مَا يحرم من قليل الرضاع وكثيرة)، لکن ددې په خلاف دلامذهبو په نيز د حرمت درضاعت لپاره کم ازکم پنځه ځلى دتي رودل ضروري دي (تيسير الباري ج ۷ صـ ۳۲)

## ۴۲- دقرآن په مدة الختم کې اختلاف

دامام بخارى رحمه الله په نيز دختم لپاره موده نه ده متعينه، امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۲ صـ ۷۵۵، کې باب قائم کړى دى په نوم د (باب فى كم يقرأ القرآن)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: كَانَ مُحَمَّد بن إِسْمَاعِيل البُخَارِيّ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ إِذَا كَانَ أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ يجْتَمع إِلَيْهِ أَصْحَابه فيصلي بهم وَيقْرَأ فِي كل رَكْعَة عشْرين آيَة وَكَذَلِكَ إِلَى أَن يخْتم الْقُرْآن وَكَانَ يقْرَأ فِي السحر مَا بَين النّصْف إِلَى الثُّلُث من الْقُرْآن فيختم عِنْد السحر فِي كل ثَلَاث لَيَال وَكَانَ يخْتم بِالنَّهَارِ فِي كل يَوْم ختمة وَيكون خَتمه عِنْد الْإِفْطَار كل لَيْلَة وَيَقُول عِنْد كل ختمة دَعْوَة مستجابة .(هدى السارى مقدمه فتح البارى صـ ۴۸۱)

امام بخاري به د تراويحو په هر رکعت کې شل شل ايتونه لوستل، نو په تراويحو کې همداسې دختم سلسله روانه وه، او په پيشمني (تهجدو) کې به يې دثلث څخه تر نصف پورې قرآن لوستلو، نو په هرو دريو شپو کې به يې دلته هم ختم کولو او روزانه به يې بل ختم هم کولو، نو روزانه به يې د هر روژه ماتي په وخت کې قرآن ختمولو، لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې دامام بخاري رحمه الله په نيز دقرآن دختم لپاره څه معيار نه دى مقرر (تيسير البارى ج ۶ صـ ۵۴۰) لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې ددريو ورځو څخه په کمو کې دقرآن ختمول مکروه دي (تيسير البارى ج ۳ صـ ۱۳۱ ج ۲ صـ ۵۲۵)

## ۴۳- حايضې ښځې ته د ورکړل شوی طلاق په وقوع او لاوقوع کې اختلاف

دامام بخاری رحمه الله په نيز حايضې ښځې ته ورکړل شوی طلاق واقع کيږي، امام بخاری رحمه الله دصحيح البخاری په ج ۲ص۷۹۰) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب اذا طلقت الحايض يعتد بذلک الطلاق) حايضې ښځې ته ورکړل شوی طلاق په طلاقونو کې شميرلی شي، بيايې ددې باب لاندې دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما حديث ذکر کړی دی، دحديث په اخر کې راځي چې: (حسبت علیّ بتطليقة) کوم طلاق چې ماخپلې ښځې ته ورکړی وو هغه په ما باندې شمار کړلی شو، همدا دأيمه اربعو و مسلک هم دی لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث دا طلاق لغوه ګڼي (تيسير الباري ج ۷ص۱۶۴)

## ۴۴- په يو مجلس کې ددريو طلاقونو په درې والي کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز په يو مجلس کې درې طلاقونه به په دريو باندې حسابولی شي، امام بخاري په ج ۲ص۷۹۱) کې باب قائم کړی دی په نوم د (بَابُ مَنْ أَجَازَ طَلَاقَ الثَّلَاثِ لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: {الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ} امام بخاري رحمه الله الطلاق الثلاث مطلق ذکر کړی دی، هغو دريو طلاقونو ته هم ورځي چې په يو ځای باندې ورکړل شوي وي، او هغو دريو طلاقونو ته هم ورځي چې جدا جدا ورکړل شوي وي، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (وَالَّذِي يَظْهَرُ لِي أَنَّهُ كَانَ أَرَادَ بِالتَّرْجَمَةِ مُطْلَقَ وُجُودِ الثَّلَاثِ مُفَرَّقَةً كَانَتْ أَوْ مَجْمُوعَةً) (فتح الباری ج ۷ص۲۳۵) دامام بخاری مطلق درې طلاقه مراد دي په يوه خوله وي او که بيل بيل وي بيا يې دحضرت عايشې رضی الله عنها حديث ذکر کړی دی چې: (أَنَّ رَجُلًا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، فَتَزَوَّجَتْ فَطَلَّقَ، فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَحِلُّ لِلْأَوَّلِ؟ قَالَ: «لَا، حَتَّى يَذُوقَ عُسَيْلَتَهَا كَمَا ذَاقَ الأَوَّلُ»

يو سړي خپله ښځه په دريو طلاقونو باندې طلاقه کړې وه، هغې ښځې بل ميړه وکړو هغه هم طلاقه کړه، بيا دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه پوښتنه و شوه چې ايا اول خاوند ته اوس روا ده؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې نه ده روا، ترڅو پورې چې ورسره دوهم خاوند همبستري نه وي کړي

لکه د اول خاوند په شان، په صحيح البخارى ص(۷۹۲، کې فرمايي چې (قال أهل العلم اذا طلق ثلثا فقد حرمت عليه)

لکن د دې په خلاف دلامذهبه جعلي اهحلديثو مسلک دادی چې په يو مجلس کې درې طلاقه به په يو حسابولی شي.

## ۴۵-په کافرانو ښځه او خاوند کې چې ښځه مسلمانه شي نو په فرقت کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز چې مشرکه ښځه مسلمانه شي او خاوند يې کافر وي، نو فرقت واقع شو (باب اذا اسلمت المشرکة والنصرانية تحت الذمى اوالحربى ) صحيح البخارى ج ۲صـ ۷۹٦، فتح البارى ج ۹صـ ٤۲۰) لکن د دې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې فرقت نه واقع کيږي ،بلکې عدت به تيروي (تيسير البارى ج ۷صـ۱۹۹)

## ۴۶- دقرباني په ورځ کې اختلاف

دامام بخارى رحمه الله په نيز دقربانۍ لپاره صرف يوه د ذوالحجې ورځ مقرره ده، امام بخارى رحمه الله باب قائموي په نوم د (باب من قال الأضحى يوم النحر) صحيح البخارى ج ۲صـ ۸۳۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې دامام بخارى رحمه الله د دې باب څخه معلوميږي چې دقربانۍ لپاره صرف يوه د ذوالحجې ورځ مقرره ده (وقيل مراده لاذبح الا فيه خاصة يعنى کما تقدم نقله عمن قال به (فتح البارى ج ۱۰صـ۸) لکن د دې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث ليکي چې دقربانۍ ورځې څلور دي.

## ۴۷- په عيدګاه کې دقربانۍ په مسئله کې اختلاف

امام بخارى رحمه الله په صحيح البخاري ج ۲صـ۸۳۳، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب الأضحى والمنحر بالمصلى) بيا يې احاديث ذکر کړی دی چې: (عن نافع قال كان عبد الله ينحر فى المنحر، قال عبيد الله يعنى منحر النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ).

(عَنْ نَافِعٍ رضي الله عنه، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى»

عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمل مطابق په عيدگاه کې قرباني كوله ، لکن ددې په خلاف تاسو گورئ چې دلامذهبانو معمول په کورونو کې د قرباني كول دي .

## ۴۸- دمصافحې باليدين په باره کې اختلاف

امام بخاري رحمه الله په صحيح البخاري ج ۲ص ۹۲۶، کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب المصافحة) وريسې يې متصل بل باب قائم کړی دی په نوم د (بَابُ الأَخْذِ بِالْيَدَيْنِ وَصَافَحَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، ابْنَ الْمُبَارَكِ بِيَدَيْهِ رَحِمَهُمَا اللَّهُ) باب دی په باره دسترې مشي کې په دواړو لاسونو ، حماد بن زيد عبد الله بن مبارک سره په دواړو لاسونو باندې سترې مشي وکړه (تيسير الباری ج ۸ص ۱۷۸)

ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث په يو لاس باندې مصافحې ته سنت او په دواړو لاسونو باندې مصافحې ته خلاف سنت وايي (فتاوی نذيريه ص ۴۲۰)

## ۴۹- په حجيت القياس کې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز قياس حجت دی، امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په صحيح البخاری ج ۲ص ۱۰۸۸، کې باب قائم کړی دی په نوم د (مَنْ شَبَّهَ أَصْلًا مَعْلُومًا بِأَصْلٍ مُبَيَّنٍ، قَدْ بَيَّنَ اللَّهُ حُكْمَهُمَا، لِيُفْهِمَ السَّائِلَ).ديو معلوم تشبيه ورکول ديو واضح أمر سره، دكوم حكم چې الله بيان کړی وي ترڅو چې پوښتنه کونکی پوه شي، ددې لاندې يې بيا احاديث ذكر كړی دی چې په هغوي کې د قياساتو واقعات دي .

۱-دښځې دبچي قياسول د اوښ په بچي باندې .

۲-د الله تعالی د قرض قياسول دبندگانو په قرض باندې ، لکن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث دحجية القياس څخه منکر دي ، (نواب نور الحسن ليکي چې: وبعد از آن که اجماع چيزی نيست قياس مصطلح که انرا دليل رابع قرار داده ان خود مكفى المؤنة شد ونماند ، مگر انکه ادله دين اسلام وملت حقه خيرالانام منحصردر دو چيزاست يکی کتاب عزيز وديگر سنت مطهره وما ورای اين هردو حجت نيره وبرهان قاطع نيست (عرف الجادی ص ۳)

لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې: واصول الشرع اثنان الكتاب والسنة وزاد بعضهم الاجماع مطلقا والقياس الصحيح ايضا ، والحق أن الاجماع الظنى والقياس ليستا بحجتين ملزمتين ولكن

مظهرتان أقناعيتان (هدية المهدى ج ١صـ ٢) پدې چيغو خو نور دلامذهبيانو خولې وشكيدې چې:
(الحديث کی دو اصول: اطيعوا الله واطيعوا الرسول)

## ۵۰- په حجية الاجماع كې اختلاف

دامام بخاري رحمه الله په نيز اجماع حجت ده، امام بخاري په صحيح البخاري ج ٢صـ١٠٨٩، كې يو باب قائم كړی دی په نوم د (بَابُ مَا ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَضَّ عَلَى اتِّفَاقِ أَهْلِ العِلْمِ، وَمَا أَجْمَعَ عَلَيْهِ الحَرَمَانِ مَكَّةُ، وَالمَدِينَةُ... الخ).

لكنددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث اجماع حجت نه گڼي، (لغات الحديث ج ٢صـ٩١)

## ۵۱- داجتهاد په جواز كې اختلاف

امام بخاري رحمه الله اجتهاد جايز گڼي، امام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ په صحيح البخاري ج٢صـ ١٠٩٢ كې باب قائم كړی دی په نوم د (باب أجر الحاكم اذا اجتهد فأصاب او أخطأ) بيا يې ددې باب لاندې حديث ذكر كړی دی چې: (عَنْ عَمْرِو بْنِ العَاصِ رضي الله عنه، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِذَا حَكَمَ الحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ، وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ»

مجتهد ته دخطائي په صورت كې يو اجر دی او حق ته درسيدلو په صورت كې ورته دوه أجره دي، لكن ددې په خلاف لامذهبه جعلي اهلحديث داجتهاد اتو سره سخت مخالف دي، نور بې شماره مثالونه دي چې غير مقلدينو پكې دامام بخاري رحمه الله دمسلك او دصحيح البخاري دحديثونو سره مخالفت كړی دی.

١- لكه په صحيح البخاري ج ١صـ ٣٣، كې راغلي دي چې نبی صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو مُد اوبو باندې اودس كولو، لكن غير مقلدين پرې عمل نه كوي.

٢- په صحيح البخاري ج ١صـ٣٩ كې راغلي دي چې نبی كريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په يو صاع اوبو باندې غسل كولو، لكن غير مقلدين پري عمل نه كوي.

۳- په صحيح البخاري ج ۱ص ۵۱ ، کې حديث دی چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يوه جامه کې لمونځ کولو ،لکن د غير مقلدينو پرې عمل نشته.

۴- په صحيح البخاري ج ۱ص ۷۴، کې يو باب دی په نوم د (باب اذا حمل جارية صغيرة على عنقه في الصلوة ) لکن غير مقلدين پرې عمل نه کوي، نور هم داسې په سلګونو مسائل دي چې لامذهبه جعلي اهلحديث پرې عمل نه کوي، حقيقت دا دی چې لامذهبان نه قرآن مني او نه حديث مني او نه د صحيح البخاري سره مينه لري، د دوي سره صرف او صرف حديث النفس دی او بس.

## د صحيح بخاري په باره کې د غير مقلدينو يو څو نظرونه

د غير مقلدينو په بخاري شريف باندې مشهوره شرحه تيسير الباري ده، د دې څخه ما سوا نورې دومره تفصيلي شرحې نه لري، لدې وجې به د دې شرحې څخه يو څو حوالې را نقل کړو.

۱- امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په ج۱/ ص۳۹ کې باب لګولی دی په نوم د (باب من بدأ بالحلاب أو الطيب عند الغسل) د دې باب لاندې ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ د اسماعيلي خبره را نقلوي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دی په امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ باندې رحم وکړي او د غلطۍ څخه هيڅوک ندی خلاص، امام بخاري دا ګمان کړی دی چې حلاب يو قسم خوشبويي ده حالانکې حلاب لوښي ته وايي (إنما الحلاب إناء). [فتح الباري ج۱/ ص۳۸۳].

دلته وحيد الزمان ليکي چې: اکثر خلک وايي چې هر څو مره غټ عالم هم چې وي غلطي ترينه کيږي، د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ څخه هم دلته غلطي شويده ، هغوی ګمان کړی دی چې حلاب د لګولو کوم شی دی حالانکې حلاب يو قسم لوښی دی. [تيسير الباري ج۱/ ص۱۸۷].

۲- امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په ج۱/ ص۱۳۲ کې باب لګولی دی په نوم د باب فضل العمل في أيام التشريق، او د دې باب لاندې يې د (واذكروا الله في أيام معلومات) ألفاظ را نقل کړي دي، د دې لاندې علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې اصل الفاظ د قرآن داسې دي چې : ويذكروا اسم الله في أيام معلومات. الآية[فتح الباري ج۳ ص۱۱۰].

پدې باندې وحيد الزمان ليکي چې: د امام بخاري الفاظ په قرآن کې نشته بلکې په سورة الحج کې ايت داس پدی چې: ويذكروا اسم الله في أيام معلومات. الآية [تيسير الباري ج۲/ ص۵۹].

۲- امام بخاري رحمه الله په جلد اول صفحه ۱٦۲ کې باب لګولی دی په نوم د (باب إذا قيل للمصلي تقدم او انتظر فانتظر فلا بأس) ددې لاندې يې حديث راوړی دی چې: فقيل للنساء لاترفعن رؤسكن حتى يستوى الرجال جلوسا. ددې څخه ثابتيږي چې د امام بخاري رحمه الله په نيز دا خبره ښځو ته په هغه وخت کې وشوه چې کله هغوي د مانځه په حالت کې وي، پدې باندې علامه ابن حجر رحمه الله د اسماعيلي قول رانقلوي چې د امام بخاري رحمه الله دا خيال غلط دی. [فتح الباري ج۳/ ص۲۲۸].

ددې لاندې وحيد الزمان ليکي چې: پدې حديث کې په کوم ځای کې راغلي دي چې دا کلام ښځو ته په هغه وخت کې ويلی شوی چې کله هغوی په مانځه کې وي؟ نو د باب دا مطلب را ايستل د حديث څخه مشکل دي. تيسير الباري ج۲/ ص۲۵۱].

٤- امام بخاري په جلد اول ص٤٠۳ کې باب لګولی دی په نوم د (باب حمل النساء القرب الى الناس في الغزو) ددې لاندې ليکي چې: دتزفر معنی ده ګنډل دلته وحيد الزمان ليکي چې: دا صحيح نده ځکه چې د تزفر معنی ده اُوچتول [تيسير الباري ج٤/ ص۹۸].

علامه ابن حجر رحمه الله هم فرمايي چې: ددې معنی له وجې په امام بخاري رحمه الله باندې اعتراض کيږي. [فتح الباري ج٦/ ص٤۲۰].

۵- امام بخاری رحمه الله په دوهم جلد ص٦۵۸ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابُ {وَإِنْ خِفْتُمْ أَنْ لاَ تُقْسِطُوا فِي اليَتَامَى} او ددې باب لاندې يې يو روايت په داسې الفاظو ذکر کړی دی چې: (قَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها: وَقَوْلُ اللَّهِ فِي الآيَةِ الأُخْرَى: {وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ} [النساء: ۱۲۷] ).پدې باندې وحيد الزمان اعتراض کړی دی چې: دا ظاهره ده چې د امام بخاري رحمه الله څخه په روايت کې يو څه

غلطي شويده ځکه چې وترغبون أن تنکحوهن په بل آيت کې ندی، بلکې په همدې يعنې د ويستفتونک في النساء په آيت کې دی. [تيسير الباري ج٦/ ص٨٠].

حافظ ابن حجر فرمايي چې: د صالح په روايت کې همداسې دی حالانکې دا بل آيت ندی. [فتح الباري ج٩/ ص٣٠٨].

٦- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٦٦٥ کې باب لګولی دی په نوم د باب ما جعل الله من بحيرة) ددې لاندې يې ليکلي دي چې المايدة د مفعول په معنی دی، لکه په عيشة راضية کې چې راضية د مفعول په معنی دی او لکه په تطليقة باينة کې چې باينة د مفعول په معنی سره دی، پدې باندې غير مقلد وحيد الزمان اعتراض کړی دی چې: د بائنة تفصيل صحيح ندی. [تيسير الباري ج٦/ ص١١٦].

او حافظ ابن حجر رحمه الله هم ددې په ترديد کې د ابن التين قول رانقل کړی دی او فرمايلي يې دي چې: فهي فاعل على بابها. يعنې دا پخپله فاعلي معنی دی. [فتح الباري ج٩/ ص٣٥٢].

٧- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٧٣٢ کې باب لګولی دی په نوم د (وُدّاً ولاسواعاً ولايغوث ويعوق ونسراً) الآية. ددې لاندې يې يو روايت راوړی دی، په هغې روايت کې يو راوي د عطاء په نوم دی، ددې لاندې حافظ ابن حجر ليکلي دي چې: دا راوي عطاء الخراساني دی مګر امام بخاري دا ګمان کړی دی چې دا عطاء بن أبي رباح دی. [فتح الباري ج١٠/ ص٢٩٣ وص٢٩٤].

وحيد الزمان ليکي چې دا راوي ضعيف دی، او دلته امام بخاري په خپل ګمان کې غلط شوی دی. [تيسير الباري ج٦/ ص٤٣٥].

٨- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٨٦٧ کې باب لګولی دی په نوم د باب الثياب البيض او ددې لاندې يې يو روايت راوړی دی او بيا يې فرمايلي دي چې: ددې حديث مطلب دا دی چې کوم سړی چې د زنکدن په وخت کې او يا ددې ځخه مخکې د خپلو ټولو ګناهونو ځخه توبه اوباسي او شرمنده شي، او لاإله

إلا الله ووايي نو الله ﷻ يې ګناهونه ببنې، حافظ ابن حجر رحمه الله دلته ليكي چې د امام بخاري رحمه الله دا خبره د حديث د ظاهر څخه مخالفه ده. [فتح الباري ج١٢/ ص٣٩٩]. او وحيد الزمان ليكي چې: زه وايم چې دا د امام بخاري رحمه الله رأيه ده په حديث كې د توبې ذكر نه شته. [تيسير الباري ج٧/ ص٥٥٩].

٩- امام بخاري رحمه الله په ج٢/ ص٦٥٦ باب لګولی دی په نوم د (باب لاتحسبن الذين يفرحون بما اتوا) د دې باب لاندې د روايت د راوړلو څخه وروسته يې ليكلي دي چې: تابعه عبد الرزاق عن ابن جريج، يعنې هشام چې د ابن جريج څخه كوم روايت راوړی دی نو عبد الرزاق يې متابعت كړی دی، دلته وحيد الزمان ليكي چې خلكو په امام بخاري طعن كړی دی چې دا روايت يې ولې راوړی دی؟ حالانكې نيله امام بخاري د بسره بن صفوان حديث چې د مس الذكر په باب كې دی ندی راوړی ځكه چې په هغه حديث كې چې مروان كوم سړی بسرې ته د دې حديث د اوريدلو لپاره ورليږلی وو، هغه مجهول الاسم او مجهول الحال دی، له همدې وجې امام مسلم دا حديث ندی راوړی. [تيسير الباري ج٦/ ص٧٣].

١٠- امام بخاري په جلد اول ص٥١١ كې د حضرت ابوموسى رضي الله عنه روايت راوړی دی، په هغه روايت كې دا الفاظ دي چې: (عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، - أُرَى - عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) يعنې زما په ګومان دوي دا روايت د نبي ﷺ څخه كوي، پدې ځای كې علامه ابن حجر رحمه الله ليكي چې: (وَالْقَائِلُ ذَلِكَ هُوَ الْبُخَارِيُّ كَأَنَّهُ شَكَّ هَلْ سَمِعَ مِنْ شَيْخِهِ صِيغَةَ الرَّفْعِ أَمْ لَا) يعنې ددې قايل امام بخاري دی، لكه چې دده شك وي چې دوي د خپل شيخ څخه د مرفوعوالي صيغه اوريدلې ده او كنه؟ [فتح الباري ج٨/ ص٣٧٩].

او وحيد الزمان ليكي چې: دا قول د امام بخاري دی، د امام بخاري پدې كې شك دی چې محمد بن علاء دا حديث مرفوع كړی دی او كه نه؟ ليكن امام مسلم بلاشكه مرفوع كړی دی. [تيسير الباري ج٤/ ص٦١٥].

**د صحيح البخاري درواياتو څخه غلطياني او شكونه**

۱- امام بخاري رحمه الله باب لګولی دی په نوم د (بَـابٌ: إِذَا أُقِيمَـتِ الصَّـلٰوةُ فَـلاَ صَـلٰوةَ إِلَّا المَكْتُوبَةَ) ددې لاندې يې روايت راوړی دی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: حفاظو فرمايلي دي چې دلته د شعبه څخه دوه وهمه شوي دي. [فتح الباري ج۲/ ص۲۹۰] او وحيد الزمان ليکي چې: دا د شعبة غلطي ده صحيح عبد الله بن مالک ابن بحينة دی. [تيسير الباري ج۱/ ص۴۳۸].

۲- امام بخاري رحمه الله په ج۱ ص۲۴۰ کې باب لګولی دی په نوم د باب المعتمر إذا طاف طواف العمرة، ددې لاندې يې روايت راوړی دی، په کوم کې چې داسې الفاظ دي چې: (فَنَـادَى بِالرَّحِيـلِ فِي أَصْحَابِهِ، فَارْتَحَلَ النَّـاسُ)، علامه ابن حجر دلته ليکي چې: (وَالَّذِي يَغْلِـبُ عِنْـدِي أَنَّـهُ وَقَـعَ فِيهِ تَحْرِيفٌ). [فتح الباري ج٤/ ص١١]. او وحيد الزمان هم ليکلي دي (تيسير الباري ج ۳ ص ۱۱)

۳- امام بخاري باب لګولی دی په نوم د (باب من ينكب أو يطعن في سبيل الله) ج۱/ ص۳۹۳ ددې لاندې يې د حضرت أنس رضي الله عنه روايت راوړی دی، په هغه کې داسې راغلي دي چې: رسول الله ﷺ د بنو سليم قبيلې اويا کسان د بنو عامر طرفته وليږل، پدې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايلي دي چې: تحقيقي خبره داده چې دا کسان د بنو عامر د قبيلې څخه وو، او غداري ورسره بنو سليم (وَالْوَهْمُ فِي هَذَا السِّيَاقِ مِنْ حَفْصِ بْنِ عُمَرَ شَيْخِ الْبُخَارِيِّ). [فتح الباري ج٦/ ص٣٥٦]. او همدا خبره وحيد الزمان هم کوي. [تيسير الباري ج٤/ ص٥١].

٤- امام بخاري رحمه الله په ج۱/ ص٤٣١ کې باب لګولی دی په نوم د (باب العون بالمدد) ددې لاندې په روايت کې راځي چې د بنو لحيان د قبيلې خلک رسول الله ﷺ ته راغلل، او د خپل کافر قوم په خلاف يې ترينه امداد وغوښتلو، رسول الله ﷺ ورسره اويا انصاري صحابه وليږل، بيا دوي د بئر معونة په مقام کې ورسره غداري وکړه، او دا صحابه يې شهيدان کړل، دلته وحيد الزمان ليکي چې: ويلی کيږي چې دلته د راوي څخه غلطي شويده ده ځکه چې دا صحابه رضي الله عنهم عامر بن طفيل وژلي وو. [تيسير الباري ج٤/ ص٢٢٢]. او فتح الباري هم دلته د راوي د وهم ذکر کړی دی. [ج٦/ ص٥٢١].

٥- امام بخاري رحمة الله عليه په جلد اول ص٤٣٤ کې باب لګولی دی په نوم د (باب ما يقول إذا رجع من الغزو) ددې لاندې يې د أنس بن مالک رضي الله عنه روايت راوړی دی چې د عسفان څخه د راواپس کيدلو ذکر پکې دی، پدې باندې علامه ابن حجر رحمه الله اعتراض کړی دی چې د عسفان غزوة په سنة ٦ هـ کې وه او رسول الله ﷺ چې أمّنا حضرت صفية رضي الله عنها د ځان پسې رديفه کړې وه، هغه په سنة ٧هـ کې وه [فتح الباري ج٦/ ص٥٣٣]. او وحيد الزمان ليکي چې: دا د راوي غلطي ده، صحيح دا ده چې کله رسول الله ﷺ د خيبر څخه راواپس کيدلو. [تيسير الباري ج٤/ ص٢٣٥].

٦- امام بخاري رحمه الله په جلد اول ص٥٤٤ کې باب لګولی دی په نوم د (باب ما لقي النبي ﷺ وأصحابه من المشركين بمكة) ددې لاندې يې روايت کړی دی، پدې کې داسې راغلي دي چې کله رسول الله ﷺ سردارانو د قريشو ته ښيراوې وکړې نو أمية بن خلف، يا أبي بن خلف وويل، د شعبة پدې کې شک وو، امام بخاري رحمه الله پخپله دا وضاحت کړی دی چې د شعبة پدې کې شک وو، لکن وحيد الزمان ليکي چې: صحيح أميه بن خلف دی لکه څرنګه چې په نورو روايتونو کې راځي. [تيسير الباري ج٥/ ص١٥١].

٧- امام بخاري باب لګولی دی په نوم د باب قتل کعب بن الأشرف ج٢/ ص٥٧٦ ددې لاندې په روايت کې د يو وسق او د دوو وسقونو په مابين کې ترديد ذکر شوی دی، علامه ابن حجر رحمه الله د شک نسبت علي بن المديني ته کړی دی. [فتح الباري ج٨/ ص٣٤٠]. وحيد الزمان ليکي چې: دا شک د راوي دی او حافظ رحمه الله علي بن المديني ته منسوب کړی دی. [تيسير الباري ج٥/ ص٢٩٥].

٨- امام بخاري رحمه الله په جلد ٢/ ص٥٧٨ کې په باب د غزوة الأحد کې د عبد الله بن عباس رضي الله عنه روايت راوړی دی چې داسې الفاظ پکې دي چې (قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ:)، وحيد الزمان ليکي چې: مشهوره دا ده چې نبي عليه السلام دا خبره په غزوة د بدر کې کړې وه. دأحد لفظ کيدی شي چې د راوي غلطي وي. [تيسير الباري ج٥/ ص٣١٢].

او حافظ ابن حجر ليکي چې: (حَدِيثُ بن عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ هَذَا جِبْرِيلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ الْحَدِيثَ وَهُوَ وَهمٌ مِنْ وَجْهَيْنِ. [فتح الباري ج٨/ ص٣٥٢].

۹- امام بخاري رحمه الله په جلد ۲/ ص٥٨٥ کې باب لګولی دی په نوم د باب غزوة الرجيع او ددې لاندې يې داسې الفاظ رانقل کړی دي چې: ( وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ رضي الله عنه» وَهُوَ جَدُّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا).

حافظ ابن حجر رحمه الله پدې باندې نيوکه کړې ده چې: تقدم أنه خال عاصم لاجده. [فتح الباري ج٨/ ص٣٨٣] او وحيد الزمان ليکي چې دلته غلطي شوې ده ځکه چې عاصم بن ثابت د عاصم بن عمر ماما دی. [تيسير الباري ج٥/ ص٣٢٤].

۱۰- امام بخاري رحمه الله په جلد ۲ ص٥٩١ کې باب لګولی دی، په نوم د باب مرجع النبي ﷺ من الأحزاب، ددې لاندې يې داسې الفاظ راوړي دي چې: «لاَ يُصَلِّيَنَّ أَحَدٌ العَصْرَ إِلَّا فِي بَنِي قُرَيْظَةَ» وحيد الزمان ليکي چې: د مسلم شريف په روايت کې د عصر په ځای د ظهر لفظ دی، او د دواړو روايتونو سند يو دی نو دا ضروري ده چې پدې دواړو کې يو روايت غلط دی، او بعضو بې تکلفه تطبيق کړی دی. [تيسير الباري ج٥/ ص٣٥٥]. او حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چې: زما په نزد قوي خبره داده چې دا اختلاف د راوي د حافظې د کمزورۍ له وجې دی. [فتح الباري ج٨/ ص٤١٢].

۱۱- امام بخاري رحمه الله په دوهم جلد ٦٢٠ صفحه کې (باب غزوة الطايف في شوال) لاندې په يو روايت کې داسې الفاظ راوړي دي چې: رسول الله ﷺ په جعرانة کې پړاو وکړ، چې د مدينې او د طايف په مينځ کې يو ځای دی، علامه ابن حجر رحمه الله ليکي چې: شارح الدراور دي، ددې ترديد کړی دی ځکه چې د جعرانة په نوم ځای د مدينې او د طايف په مينځ کې ندی؛ بلکې د مکې او د طايف په مينځ کې دی. [فتح الباري ج٩/ ص١٠٨]. او وحيد الزمان ليکي چې: دا د راوي غلطي ده، صحيح داده چې جعرانة د مکې مکرمې او د طايف په منځ کې دی. [تيسير الباري ج٥/ ص٤٨٧].

۱۲- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٦٢٨ کې د أسود عنسي لعنة الله عليه د قصې لاندې په يو روايت کې داسې الفاظ رانقل کړي دي چې: (وهي أم عبد الله بن عامر) يعنې هغه ښځه د عبد الله بن عامر مور وه، وحيد الزمان ليکي چې راوي د غلطي لوجې يو عبد الله حذف کړی دی صحيح داده چې دا د عبد الله بن عبد الله بن عامر مور وه. [تيسير الباري ج٥/ ص٥٢٧]. او حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي چې: (الصَّوَابُ أُمُّ أَوْلَادِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَامِرٍ). [فتح الباري ج٩/ ص١٥٤].

۱۳- امام بخاري په جلد دوهم ص٦٣٢ کې د باب حجة الوداع لاندې يو روايت راوړی دی، او د روايت په آخر کې يې ليکلي دي چې: (قال ابو اسحاق وبمكة أخرى) يعنې رسول الله ﷺ يو حج په هغه وخت کې هم کړی وو کله چې په مکه مکرمه کې اوسيدلو. وحيد الزمان دلته په ابو اسحاق اعتراض کړی دی چې: دا د ابو اسحاق خيال دی، صحيح داده چې رسول الله ﷺ په مکة کې د اوسيدلو په وخت کې ډېر حجونه کړي وو. [تيسير الباري ج٥/ ص٥٤٤ وكذا في فتح الباري ج٩/ ص١٧٠].

۱٤- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٦٥٥ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابُ {إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ} او ددې لاندې يې د روايت په سند کې داسې ويلي دي چې: أراه قال حدثنا أبوبكر. علامه ابن حجر رحمه الله ليکي چې: امام بخاري د خپل شيخ الشيخ په باره کې شکي دی. [فتح الباري ج٩/ ص٢٩٦]. او وحيد الزمان ليکي چې: دا امام بخاري رحمه الله احتياط ته وګورئ چې د خپل شيخ الشيخ په باره کې يې لږ شک وو نو هغه يې ظاهر کړو. [تيسير الباري ج٦/ ص٦٨].

۱۵- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٢٦١ کې د (بَابُ {لاَ يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لاندې يو روايت راوړی دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: ( بَابُ {لاَ يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ. يعنې فلانی راولئ کله چې هغه راغلو پداسې حال کې چې هغه سره مشوانۍ او تخته يا د ملا هډوکی وو. وحيد الزمان ليکي چې: دا د راوي شک دی چې دا تخته وه او که د ملا هډوکي وو. [تيسير الباري ج٦/ ص٩٥].

١٦- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٨١٦ کې باب لګولی دی په نوم د (باب ما كان السلف يدخرون في بيوتهم) او ددې لاندې يې داسې الفاظ رانقل کړي دي چې: وقال ابن جريج قلت لعطاء أقال حتى جئنا المدينة قال: لا. وحيد الزمان ليکي چې: کيدای شي چې د عطاء څخه ددې حديث په بيانولو کې غلطي شوي وي. [تيسير الباري ج٧/ ص٣٠٢].

١٧- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٨٢٣ کې باب لګولی دی په نوم د (باب الخذف والبندقة) ددې لاندې په روايت کې يې داسې الفاظ رانقل کړي دي چې: نهى عن الخذف أو كان يكره الخذف.

وحيد الزمان ليکي چې: دا د راوي شک دی، لکن د امام أحمد په روايت کې بغير د شک څخه داسې دي چې: نهى عن الخذف .[تيسير الباري ج٧/ ص٣٤٣] وفتح الباري ج١٢ ص٢٦].

١٨- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٨٣٧ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابُ تَرْخِيصِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الأَوْعِيَةِ وَالظُّرُوفِ بَعْدَ النَّهْيِ) ددې لاندې په يو روايت کې يې داسې الفاظ راوړي دي چې: لما نهى النبي ﷺ عن الأسقية. يعنې څکه چې نبي عليه السلام په مشکونو کې د شربت جوړولو څخه منع کړې وه. پدې باندې وحيد الزمان په اعتراض کې ليکي چې: پدې روايت کې غلطي شويده او صحيح داده چې: (نهى عن الانتباذ الا فى الاسقية). [تيسير الباري ج٧/ ص٤١٧] او علامه ابن حجر رحمه الله د قاضي عياض څخه رانقلوي چې د الأسقية لفظ د راوي وهم دی په اصل کې د عن الأوعية الفاظ دي. [فتح الباري ج١٢/ ص١٥٩].

١٩- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٨٩٠ کې باب لګولی دی په نوم د باب طيب الكلام او ددې لاندې يې په يو روايت کې ليکلي دي چې: (قَالَ شُعْبَةُ: أَمَّا مَرَّتَيْنِ فَلاَ أَشُكُّ).. وحيد الزمان ليکي چې: رسول الله ﷺ داسې ويلي دي لکن په دريم ځل کې زما شک دی. [تيسير الباري ج٨/ ص٢٩].

۲۰- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص۹٦٥ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابٌ: يَقْبِضُ اللَّهُ الأَرْضَ يَوْمَ القِيَامَةِ) ددې لاندې يې روايت راوړی دی او په هغې کې يې داسې الفاظ راوړي دي چې قال: سهل او غيره وحيد الزمان ليکي چې: دا د راوي شک دی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: ماته ددې دويم سړي نوم ندی معلوم. [تيسير الباري ج۸/ ص۳۵٤] او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (وَالْغَيْرُ الْمُبْهَمُ لَمْ أَقِفْ عَلَى تَسْمِيَتِهِ). [فتح الباري ج١٤/ ص١٦٣].

## په صحيح بخاري کې منسوخ روايات هم شته

١- امام بخاري رحمه الله په جلد دوهم ص٦١٩ کې باب غزوة الطايف کې يو روايت د حضرت يعلی رضي الله عنه څخه را نقل کړی دی ددې په باره کې وحيد الزمان ليکي چې: قسطلاني رحمه الله فرمايلي دي چې: د حجة الوداع حديث ددې لپاره ناسخ دی. [تيسير الباري ج۵/ ص٤٨٨].

۲- امام بخاري رحمة الله عليه په جلد ۲/ ص۸۳۵ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابُ مَا يُؤْكَلُ مِنْ لُحُومِ الأَضَاحِيِّ وَمَا يُتَزَوَّدُ مِنْهَا) ددې لاندې يې د حضرت علي رضي الله عنه روايت راوړی دی چې رسول الله ﷺ ددې څخه منعه کړې ده چې د قرباني غوښه د دريو ورځو څخه زياته وساتل شي، پدې ځای باندې وحيد الزمان ليکي چې: صحيح داده چې د نهي حديث منسوخ دی. [تيسير الباري ج۷/ ص٤٠۵].

## کيدای شي چې راوي ته د خپل روايت خلاف نوي رسيدلی

١- امام بخاري رحمه الله په جلد اول ص۲٤٠ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابُ الاِعْتِمَارِ بَعْدَ الحَجِّ بِغَيْرِ هَدْيٍ)، ددې لاندې وحيد الزمان ليکي چې: حضرت عايشة رضي الله عنها خو دلته وايي چې: ما بغير د قرباني حج کړی دی لکن د مسلم په روايت کې راځي چې رسول الله ﷺ د حضرت عايشې رضي الله عنها له طرفه هم قرباني وکړه خو کيدای شي چې حضرت عايشة رضي الله عنها نوي خبره شوي. [تيسير الباري ج۳/ ص۹].

٢- امام بخاري په ج١/ ص٤٠٧ کې باب لګولی دی په نوم د ( بَـابُ المِجَـنِّ وَمَـنْ يَـتَّرِسُ بِـتُرْسِ صَاحِبِهِ)ددې لاندې د حضرت علي ﷺ په روايت کې راځي چې رسول الله ﷺ د حضرت سعد ﷺ څخه بغير بل چا ته « فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي»نه دي استعمال کړي، پدې باندې وحيد الزمان ليکي چې: په غزوة د خندق کې هم رسول الله ﷺ دا جمله حضرت زبير ﷺ ته استعمال کړې وه، خو کيدای شي چې حضرت علي ﷺ ته خبر نوي رسيدلی. [تيسير الباري ج٤/ ص١١٤].

٣- امام بخاري ﷫ په جلد اول ص٤١٥ کې باب لګولی دی په نوم د (باب التوديع عند السفر) ددې لاندې په روايت کې يې راوړي دي چې په اور باندې عذاب ورکول د الله ﷻ خاصه ده، پدې باندې وحيد الزمان ليکي چې: د حضرت علي ﷺ څخه د لوطي په باره کې په اور باندې سوځول منقول دي خو کيدای شي چې دا روايت ورته نوي رسيدلی. [تيسير الباري ج٤/ ص١٤٦].

٤- امام بخاري ﷫ په جلد اول ص٥٤١ کې باب لګولی دی په نوم د (باب أيـام الجاهليـة)ددې لاندې يې د حضرت عايشې ﷺ حديث رانقل کړی دی. وحيد الزمان دلته ليکي چې : کيدای شي چې حضرت عايشې ﷺ ته د هغې احاديثو خبر نوي رسيدلی چې په هغې کې جنازې ته د اودريدلو حکم راغلی دی او اوس جنازې ته اودريدل واجب ندي، لکن مستحب دي او که مکروه؟ پدې کې دوه قوله دي: امام نووي ﷫ فرمايي چې: مکروه دي. [تيسير الباري ج٥/ ص١٤٠].

٥- امام بخاري ﷫ په جلد ٢/ ص٨٣٥ کې باب لګولی دی په نوم د (بَابُ مَـا يُـؤْكَلُ مِـنْ لُحُومِ الْأَضَاحِيِّ وَمَا يُتَزَوَّدُ مِنْهَا)ددې لاندې يې د حضرت ابو عبيدة ﷺ روايت راوړی دی په هغې کې راغلي دي چې حضرت علي ﷺ د اختر په ورځ خطبه ولوستله او په هغې کې و فرمايل : رسول الله ﷺ تاسو ددې څخه منع کړي يئ چې د قرباني غوښه د دريو ورځو څخه زياته وساتئ. ددې لاندې وحيد الزمان ليکي چې: کيدای شي چې حضرت علي ﷺ ته هغه حديث نوي رسيدلی چې په هغې کې د دريو ورځو څخه زيات د ساتلو اجازت راغلی دی. [تيسير الباري ج٧/ ص٤٠٥].

# په بخاري شريف کې د کاتب څخه غلطياني

۱-امام بخاري رحمه الله په جلد اول ص۸۷ کې په (بَابُ الأَذَانِ بَعْدَ الفَجْرِ)کې په يو روايت کې داسې الفاظ رانقل کړي دي چې: (كَانَ إِذَا اعْتَكَفَ المُؤَذِّنُ لِلصُّبْحِ)پدې باندې وحيد الزمان داسې اعتراض کړی دی چې: دا د کاتب څخه غلطي ده، داسې پکار وو چې: إذا سكت المؤذن. [تيسير الباري ج١/ ص٤١٥].

۲-امام بخاري په ج۱/ ص۴۸۳ کې د (بَابُ (يَعْكِفُونَ عَلَى أَصْنَامٍ لَهُمْ) لاندې د حضرت جابر رضي الله عنه روايت راوړی دی. ددې حديث په تشريح کې وحيد الزمان ليکي چې: ددې حديث مناسبت د ترجمة الباب سره مشکل دي او مخکې ليکي چې: کاتبانو په غلطۍ سره دا حديث ددې باب لاندې راوړی دی. [تيسير الباري ج٤/ ص٤٧٣].

۳-امام بخاري رحمه الله په ج۲/ ص۶۱۹ کې د ( بَابُ غَزْوَةِ أَوْطَاسٍ)لاندې په يو روايت کې دا الفاظ راوړي دي چې: (وَعَلَيْهِ فِرَاشٌ). وحيد الزمان ليکي چې: پدې کې غلطي شوې ده، ما نافية پکې پاتې شوې ده. [تيسير الباري ج٥/ ص٤٨٣].

٤-امام بخاري په ج۲/ ص۶۸۱ کې د سورة ابراهيم لاندې په يو روايت کې ويلي دي چې: (قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: {هَادٍ} [الرعد: ٧]: «دَاعٍ». وحيد الزمان ليکي چې: دلته کاتب غلطي کړې ده، ځکه چې دا کلمه په سورة رعد کې ده ددې آيت په تشريح کې چې: (إِنَّمَا أَنْتَ مُنْذِرٌ وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ [تيسير الباري ج٦/ ص١٩٠].

۵-امام بخاري رحمه الله په جلد ۲/ ص۶۸۷ کې د سورة الکهف لاندې داسې الفاظ رانقل کړي دي چې: (وقال سعيد عن ابن عباس الرقيم اللوح من رصاص) پدې باندې وحيد الزمان ليکي چې: دا تفسير د رقيم سره لګيږي، شايد کاتب په غلطۍ دلته ليکلې وي. [تيسير الباري ج٦/ ص٢١٧].

٦- امام بخاري رحمه الله په جلد ٢/ ص٦٩٣ کې د سورة الأنبياء لاندې ليکلي دي چې: (عميق بعيد) يعنې د عميق معنی ده لرې. دلته وحيد الزمان ليکي چې: دا لفظ په سورة الحج کې دی: (مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ). کيدای شي چې کاتب په غلطۍ سره دلته ليکلی وي. [تيسير الباري ج٦/ ص٢٤٥].

٧- امام بخاري په جلد ٢/ ص٧٣١ کې د سورة نوح لاندې ذکر کړي دي چې: وقال غيره دياراً أحداً پدې باندې وحيد الزمان ليکي چې: مخکې د هيچا ذکر ندی شوی، کيدای شي چې: کاتب په غلطۍ سره مخکې د چا ذکر پريښی وي. [تيسير الباري ج٦/ ص٤٣٤].

٨- امام بخاري په ج٢/ ص٧٧٤ کې د بلا عنوانه باب لاندې د حضرت أنس رضي الله عنه روايت راوړی دی، ددې لاندې وحيد الزمان ليکلي دي چې: ددې حديث مناسبت د باب الوليمة سره دی، کيدای شي چې کاتب په غلطۍ سره دلته ليکلی وي. [تسير الباري ج٧/ ص٧٨].

٩- امام بخاري رحمه الله په ج٢/ ص٩٩٩ کې د باب ذوی الارحام لاندې په يو روايت کې داسې الفاظ راوړي دي چې: ( فَلَمَّا نَزَلَتْ: {وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ} [النساء: ٣٣] " قَالَ: " نَسَخَتْهَا: (وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ) " ).

. الآية. وحيد الزمان ليکي چې: په اکثرو نسخو کې چې کوم عبارة منسوخ شوی دی دا د کاتب غلطي ده. [تيسير الباري ج٨/ ص٥١٥].

١٠- امام بخاري رحمه الله په ج٢/ ص٧٤٥ کې د ( بَابُ نَزَلَ القُرْآنُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ) لاندې د حضرت صفوان بن يعلی يو روايت راوړی دی، پدې باندې وحيد الزمان ليکي چې: اکثر علماء فرمايي چې ددې حديث ددې باب سره هيڅ تعلق نشته، بلکې د راروان باب سره يې تعلق دی، کيدای شي چې کاتب په غلطۍ سره پدې باب کې شريک کړی وي. [تيسير الباري ج٦/ ص٤٩٦].

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمين

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## دحرمينو د علماوو او د غيرمقلدينو سخت اختلاف

په حرمينو کې (۸۰۰) کاله أحنافو علماوو دامامت او دخطابت خدمت کړی دی، بیا (۴۰۰) کاله پکې څلور جاینمازه وه، کله چې دانګریزانو په سازش باندې عثماني ترکي خلافت دمحمد بن عبد الوهاب نجدي او دمصطفی کمال اتاترک په لاس باندې ختم شو نو اوس هم د حرمينو علماء غير مقلدين نه دي. بلکه هغوي اکثر حنبلي مذهبي دي. لامذهبان د عوامو په ذهنونو کې دا وسوسه ور اچوي چې: د حرمينو حکومت او امامان زمونږ په شان غير مقلدين دي. که زمونږ مسلک غلط وې نو په حرمينو کې به نه وو، بیا که څوک ترینه پوښتنه وکړي چې ستاسو سره د دې څه دلیل دی چې د حرمينو حکومت او امامان غير مقلدين دي؟ نو غير مقلدين ورته جواب ورکوي چې ګوره هغوي هم زمونږ په شان رفع اليدين او آمين بالجهر او قراءت خلف الامام کوي، حالانکه دا خبره بالکل غلطه ده، ځکه چې په دوه درې مسئلو کې شرکت د مذهب دوحدت دلیل نه شي کیدلی، که دا سې شي نو بیا خو به روافض (شیعه ګان) هم وائي چې د حرمينو حکومت او امامان روافض او شیعه ګان دي، ځکه چې رفع اليدين او قراءت خلف الامام خو شیعه ګان هم کوي. د لامذهبو او د حرمينو دهغو علماوو په مابین کې چې رفع اليدين کوي دبعضو څلماوو ډير فرقونه دي. اول دا چه د حرمينو علماء په مانځه کي رفع اليدين کوي. ليکن ورسره دا هم مني چې د نبي عليه السلام، د صحابه وو، او د تابعينو، او د تبع تابعينو څخه ترک د رفع اليدين هم په تواتر سره ثابت دی، او غير مقلدين دا نه مني. دوهم دا چې اهل حرم دا مني چې د ترک د رفع اليدين والا مونځ د سنتو سره مطابق دی، ليکن غير مقلدين دروغ وائي چې نبي عليه السلام په ټوله زندګی کې یو مونځ هم بې رفع اليدين نه دی کړی. دریم دا چې د اهل حرمينو څخه چې پوښتنه وشي چې تاسو رفع اليدين ولې کوئ؟ نو هغوي صفا وائي چې مونږ حنبليان يو. او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز رفع اليدين راجح دی او د لامذهبو څخه چې پوښتنه وشي چې تاسو رفع اليدين ولې کوئ؟ نو دوي وائي چې زما تحقيق دا دی چې رفع اليدين ضروري دي، مخکې د رفع اليدين په تفصيل کې فرقونه ليکل شوي دي.

## د لامذهبو (غير مقلدينو) داهل الحرمين څخه د براءة اعلان

د حرمينو اكثر علماء حنبليان دي . او بيا په حنبليانو كې په حنبلي عالمانو ابن تيميه رحمه الله او په محمد بن عبد الوهاب نجدي الحنبلي باندې زيات اعتماد كوي ، بل طرفته د دې ملكونو د غير مقلدينو سر گروه نواب صديق حسن خان ليكي چې : عبد الوهاب او د ده ځوى محمد دواړه حنبليان وو ، او زمونږ د ملكونو خلک يا حنفيان دي ، او يا عاملين بالحديث دي، او يا شيعه گان دي . په دې ملكونو كې يو حنبلي هم نشته . ترجمان وهابيه صـ ٣٢ همدارنگه ليكي چې : محمد بن عبد الوهاب النجدي حنبلي وو . او مونږ د هيڅ يو په مذهب هم نه يو .ترجمان وهابيه صـ ٢١]. همدارنگه ليكي چې : محمد بن عبد الوهاب د امام احمد بن حنبل په مذهب وو . محمد بن سعود او د ده زوي عبد العزيز د محمد بن عبد الوهاب مذهب ته ډير رواج وركړو . ترجمان وهابيه صـ ٣٢].

**١-د رسول الله عليه السلام عمل او فرمان :** د مكې او د مدينې والا وو په نيز د رسول الله عليه السلام فرمان او عمل هم حجت دى . [فقه الايمة الاربعة ص٢٠٣ روضة الناظر لابن قدامه الحنبلي صـ ٤٦] او د لا مذهبو په نيز د رسول الله عليه السلام فرمان او عمل حجت نه دى . [بدور الاهله صـ ٧٨ ، طريق محمدي صـ ٥٩].مقدمة نور العينين)

**٢-په يو وخت دخومره ښځوسره نكاح جائزه ده ؟:** د مكې او د مدينې د خلكو په نيز په يو وخت كې د څلورو څخه د زياتو ښځو سره نكاح نه ده جائزه، العدة شرح العمدة فى فقه احمد بن حنبل صـ ٣٧٢ منار السبيل فى شرح الدليل ج ٢ صـ ١٤٤ ] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز چې د څومره ښځو سره غواړى نكاح كولى شئ . [عرف الجادي صـ ١١١].

**٣-د نكاح لپاره شاهدان:** د مكې او د مدينې د خلكو په نيز په نكاح كې دوه شاهدان شرط دي ، [عمدة الفقه ص٩٠] او د اهل حديثو د فرقې غير مقلدينو په نيز د نكاح لپاره د شاهدانو ضرورت نشته، [عرف الجادي ص١٠٧].

**٤-د اهلحديث لقب :** په مكه او په مدينه كې د اهلحديث په نوم هيڅ مسجد .هيڅ مدرسه او هيڅ محله نشته او د اهلحديثو غير مقلدينو د فرقې مسجدونه او مدرسې د اهل حديثو په نوم باندې دي .

**۵ - د اهل حدیث معنی :** د مکې او د مدينې خلک اهل حديث يو علمي لقب گڼي. لکه اهل النحو، او اهل الصرف وغيره، يوه خاصه مذهبي فرقه ئي نه گڼي. او د اهلحديثو غير مقلدينو فرقه ئې د يوې ډلګې يعني د منکرينو د فقې لپاره لقب گڼي.

**٦- په نريو جرابو باندي مسح :** د مکې او د مدينې خلک په نريو جرابو باندې مسح ته حرامه وائي. عمدة الفقه صـ ١٦] او د اهلحديثو غير مقلدينو فرقه په نريو جرابو باندې مسح کوي.

**٧- د ښځي سره لواطت :** د مکې او د مدينې خلک د ښځې سره لواطت ته حرام وائي، المغني ج ٨ صـ ١٣١ او د اهل حديثو فرقه غيرمقلدين ئي جائز گڼي، نزل الابرار ج ٢ صـ ٣٥ هدية المهدي صـ ١١٨]

**٨- د استرحت جلسه:** د مکې او د مدينې د خلکو په نيز جلسه د استراحت ضروري نه ده، عمدة الفقه صـ ٢٥] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز سخته ضروري ده، عرف الجادي صـ ٨٣ صلوٰة الرسول صـ ٢٢٨].

**٩- په خطبه کې د خلفائ راشدينو ذکر:** د حرمينو خلک په خطبه کې د خلفاء راشدينو ذکر کوي، المغني ج ٢ صـ ١٥٧ او فرقه اهل حديث غير مقلدين په خطبه کې د خلفاء راشدينو د ذکر کولو ته بدعت وائي. [هدية مهدي صـ ١١٠، نزل الابرار ج ١ صـ ١٥٣]

**١٠- په مسجدونو کې محرابونه :** په مکه او په مدينه کې په هر مسجد کې محراب شته، او فرقه اهلحديث غير مقلدين په مسجد کې د محراب جوړولو ته بدعت وائي، فتاوي ستاريه ج ١ صـ ٣٦، فتاوي اهل حديث ج ١ صـ ٣١٣

**١١- د مانځه لپاره د بدن پاکوالی :** د مکې او د مدينې د خلکو په نيز د مانځه لپاره د بدن پاکوالی شرط دی، عمدة الفقه صـ ٢٣] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مانځه لپاره د بدن پاکوالی نه دی ضروري. [بدور الاهله صـ ٣٨].

**١٢- د مانځه لپاره د جامو پاکوالی :** د مکې او د مدينې د خلکو په نيز د مانځه لپاره د جامو پاکوالی شرط دی، عمدة الفقه صـ ٢٣ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مانځه لپاره د جامو پاکوالی شرط نه دی. [کنز الحقائق صـ ٢٧، بدور الاهله صـ ٣٩ و صـ ٤٠]

**۱۳- د ځائ پاکوالی** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز په مانځه کې د ځائ پاکوالی شرط دی، العدة شرح العمدة ص۶۸ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مانځه لپاره د ځائ پاکوالی شرط نه دی، [کنز الحقائق صـــ ۲۷، بدور الاهله صـ ۴۰]

**۱٤- په مانځه کې تلل راتلل** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز په مانځه کې په تللو راتللو سره مونځ فاسديږي، منارالسبيل ج ۱ صـــ ۱۰۹ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز په مانځه کې په تللو راتللو سره مونځ نه فاسديږي. [کنز الحقائق صـــ ۲۷، فتاوي نذيريه ج ۱ صـــ ۵۰۸].

**۱۵- د قربانۍ ورځې** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز د قربانۍ ورځې درې دي. يعنې ۱۰-۱۱-۱۲ د ذولحجې، عمدة الفقه صـــ ۵۱] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د قربانۍ ورځې څلور دي. يعني ۱۰-۱۱- ۱۲-۱۳ د ذولحجې، فتاوي نذيريه ج ۳ صـــ ۲٤۰؛ رسائل بهاولپوري صـــ ۱۲۵].

**۱۶- د قربانۍ د کونکو تعداد** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز يوه قرباني صرف د يو سړي لپاره کافي ده، عمدة الفقه صـــ ۵۱ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز يوه قرباني د ټول کور لپاره کافي ده، اګرچې په کور کې سل کسان وي، فتاوي نذيريـه ج ۳ صـــ ۲٤۵؛ فتـاوي اهلحـديث ج ۲ ص۸۷ رسائل بهاولپوري ص۱۲۶].

**۱۷- په چرګ او په هګۍ باندې قربـاني**: د مکې او د مدينې د خلکو په چرګ او په هګۍ باندې قرباني نه صحيح کيږي، منارالسبيل ج۱ ص۲۷۰ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز په چرګ او په هګۍ باندې هم قرباني صحيح کيږي. فتاوي ستاريه ج ٤ ص۱٤۰].

**۱۸- د ختو خوړل**: د مکې او د مدينې د خلکو په نيز د ختو خوړل حرام دي، منارالسبيل ج ۲ صـــ ۳۷۷ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د ختو خوړل جائز دي، عرف الجادي صـــ ۲۳۶؛

**۱۹- د مږک او دملا چرګک خوړل** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز د مږک او د ملا چرګک خوړل حرام دي، منارالسبيل ج ۲ صـــ ۳۷۳

او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د مږک او د ملا چرګک خوړل حلال دي، کنز الحقائق صـــ ۱۸۶

**۲۰- د پيل او د ځنګلي پيشو خوړل** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز د پيل او د ځنګلي پيشو خوړل حرام دي، منارالسبيل ج ۲ صـ ۳۷۲
او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز د پيل او د ځنګلي پيشو خوړل حلال دي، کنز الحقائق صـ ۱۸۶

**۲۱- د عرفې ښځه مخکې همبستري** :د مکې او د مدينې د خلکو په نيز په حج کې د وقوف عرفې ښځه مخکې په همبستري باندې حج فاسديږي ،العدة ۱۷٤ او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز نه فاسديږي ؛ عرف الجادي صـ ۱۰۱

**۲۲- د مونځونو قضائي** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز چې کوم مونځونه قضا شوي دي دعذر له وجې يا بغير د عذر ځخه د هغې قضائي شته ، المغني ج ۱ صـ ٦٤۱] او د فرقه اهلحديث غير مقلدينو په نيز چې کوم مونځونه بلا عذره قضا شي ، د هغې قضائي نه شته ، فتاوي اهلحديث ج ۱ صـ ٤۱۵

**۲۳- د مونځ فساد:** د مکې او د مدينې د خلکو په نيز چې د امام مونځ فاسد شي نو د مقتديانو مونځ هم ورسره فاسديږي، منارالسبيل ج ۱ صـ ۱۱۱] او د فرقه اهل حديث غير مقلدينو په نيز چې د امام مونځ فاسد شي نو د مقتديانو مونځ ورسره نه فاسديږي ، فتاوي اهلحديث ج ۲ صـ ۲٤۱ و ۲٤۲

**۲٤- په مانځه کې ستر د عورت** : د مکې او د مدينې د خلکو په نيز په مانځه کې د عورت پټول فرض دي . او د ښځې ټول بدن عورت دى، ما سوى د مخ ، د لاسونو او قدمونو ځخه، عمدة الفقه في المذهب الحنبلي صـ ۲۲ والمغني ج ۱ صـ ٦۱۵] او د فرقه اهل حديث سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چې: د ښځې بربنډ مونځ هم صحيح دى. د ميړه په ځنګ کې وي او که د بل چا به ځنګ کې وي. په هر صورت کې صحيح دى. بدور الاهله صـ ۳۹ ، عرف الجادي صـ ۲۲ و هکذا في نزل الابرار ج ۱ صـ ٦۵].

اويو ځو نور اختلافات په لاندې نقشه کې وګورئ:

| شمیره | دمکې معظمې اودمدينې منورې دخلکو نظريه | شمیره | افغان، پاک، هند دغير مقلدينو (نظريه) |
|---|---|---|---|
| ۲۵ | دمکې او مدينې خلق د صحابه | ۲ | فرقه اهل حديث (غيرمقلدين) دصحابه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | رضي الله عنه كرامو داجماع او دامت داجماع قايل دي. (۱) | ۲۵ | كرامو داجماع او دامت داجماع څخه منكردي. (۲) |
| ۲۶ | دمكې اودِمدينې خلک دقياس شرعي قائل دي. (۳) | ۲۶ | فرقه اهل حديث (غيرمقلدين) دقياس شرعي څخه منكردي. (۴) |
| ۲۷ | دمكې اودمدينې دخلكو په نيز هريوكس ته داجتهاد حق ندې حاصل. (۵) | ۲۷ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدين) په نيز هرعالم او جاهل ته داجتهاد اودتحقيق كؤلو حق حاصل دى. (۶) |
| ۲۸ | دمكې اودمدينې دخلكو په نظر كې دغير مجتهد دپاره اجتهاد حرام اوتقليد واجب دى. (۷) | ۲۸ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدينو) په نيز دغير مجتهد دپاره هم تقليد كول حرام او اجتهادكول واجب دي. (۸) |
| ۲۹ | دمكې اودمدينې بعضې خلک دامام احمدبن حنبل اوبعضي نور دنورو مذاهبو ثلاثه وو مقلدين دى. (۱) | ۲۹ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدينو) په نيز دهريوامام تقليد حرام اوشرک دى. (۲) |

---

۱- مكتوب الشيخ محمدبن عبدالله السبيل بحواله شرعي فيصلي ۶۴۸،تاريخ وهابيت حقائق كې ائنې مين ص ص ۱۷۱.

۲- طريق محمدى ص ۱۸۱، عرف الجادى ص ۱۱۱، آپى عقيده سيكهى ص ۲۷۳

۳- فتاوى ابن تيميه ج ۱۹ ص ۷۶۲. بحواله شرعى فيصلى.

۴- معيارالحق ص ۷۹،۱۳۱ هدية المهدى ص ۸۲، عرف الجادى ص ۳، عقيده مسلم ص ۴۹، فتاوى ستاريه ج ۱ ص ۱۷۸.

۵- شرعى فيصلى ۱۳۴، وهابيت حقائق كې آئينى مين ص ۹۸.

۶- آپى عقيده سيكهى ص ۲۵۳.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۰ | دمكې اومدينې دخلكو په نيز ټول مقلدين احناف، شوافع، مالكيان، او حنبليان اهلسنت والجماعت فرقه ناجيه دي.(۳) | ۳۰ | دفرقه اهل حديث (غير مقلدينو) په نيز دالله پاک دلوئ جنت مالکان صرف (اهل حديث) دي باقي ټول. بدعتيان اومشركان دي |
| ۳۱ | د مكې او مدينې خلک دفقهې قائل دي.(۴) | ۳۱ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دفقهې څخه منكر دي. (۵) |
| ۳۲ | په مكه او په مدينه كې د فقهې نظام موجود دی. (۶) | ۳۲ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دفقهې نظام دكفر سره برابر گڼي.(۷) |
| ۳۳ | دمكې او مدينې دخلكو په نيز دپيغمبر ﷺ دسنتو پشان دخلفائې راشدينو سنت هم ددين حصه ده. | ۳۳ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دخلفائې راشدينو دسنتو څخه منكر دي.(۸) |
| ۳۴ | دمكې او مدينې خلک د پيغمبر ﷺ صحابهٔ دحق معيار گڼي. | ۳۴ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) صحابه كرام دحق معيار نه گڼي اوددې څخه |

[1] - سيرت شيخ محمدبن عبدالوهاب ص ۵۶، مكتوب الشيخ محمدبن عبدالله السبيل بحوالهٔ شرعى فيصلى ص ۲۱۷، تاريخ وهابيت حقائق كې آيينى مين ص ۹۸.

[2] - الظفرالمبين ص ۱۷، عقيده مسلم ازگوندلوی، طريق محمدی ص ۱۸۷.

[3] - شرعى فيصلى ص ۶۵۳، تاريخ وهابيت حقائق كې آينې مين ص ۹۷.

[4] - شرعى فيصلى ص ۳۲۰، تاريخ وهابيت حقائق كې آينى مين ص ۶۷، ۹۸، ۱۷۴.

[5] - ترجمان وهابيه ص ۲۴، عقيده مسلم ص ۴۷ برفقه كې معنى كې تحريف كردى.

[6] - ترجمان وهابيه ص ۳۲۲، تاريخ وهابيت ص ۶۷.

[7] - التحقيق فى جواب التقليد.

[8] - بدورالاهله ج ۱ ص ۲۸، عرف الجادى ص ۱۰۱، ۲۰۷، فتاوى نذيريه ج ۲ ص ۱۹۶، سيرت ثنائى ص ۱۹۶.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | منكردي. (١) |
| ٣٥ | دمكې اومدينې خلک د ايصال ثواب قائل دي. (٢) | ٣٠٥ | فرقه اهل حديث (غيرمقلدين) دايصال ثواب څخه منكردي. (٣) |
| ٣٦ | دمكې اومدينې دخلكو په نيز نبي ﷺ په قبر مبارک کې ژوندی دی. اوعندالقبر دخلكو صلوة اوسلام بالذات أوري. (٤) | ٣٦ | فرقه اهل حديث (غيرمقلدين) دحياة النبي ﷺ څخه منكردي اوڅوک چې دسماع النبي قائل وي هغوئی ته مشرکان وايي. (٥) |
| ٣٧ | دمكې اومدينې دخلكو په نيز دپيغمبر اقدس ﷺ د روضې مبارکې حفاظت او خدمت ضروري دی. | ٣٧ | دفرقه اهل حديث (غيرمقلدينو) په نيز دنبی کريم ﷺ روضه شرک اوبدعت دی. اودې روضې ورانول واجب دی. (٦) |
| ٣٨ | دمكې اومدينې خلكو په نيز په يو مجلس کې ورکړی شوي درې (٣) طلاقونه به هم درې شميرلی کيږي. (٧) | ٣٨ | فرقه اهل حديث (غيرمقلدين) په يومجلس کې درې طلاقه يو شماري اوښځه دخاوند دپاره حلاله گڼي. (٨) |

١- طريق محمدی ص ٨٧، فتاوی ثنائيه ج ٢ ص ٢٥٢، فتاوی ستاريه ج ٢ ص ٦٦.
٢- تاريخ وهابيت حقائق کي آينې مين.
٣- ترجمان وهابيه ص ١٦٢.
٤- تاريخ وهابيت ص ٩٠، ١٤١، فتاوی ابن تيميه ج ١٨ ص ٣٤٢.
٥- فتاوی ثنائيه ج ١ ص ١٠٧، عقيده مسلم ازگوندلوی ص ٣٥٥ ملخصا، مجموعه رسائل بهاولپور ص ١٠٨.
٦- عرف الجادی ٦٠، الروضة النديه ج ١ ص ١٧٨، به مزاريه ميلی ص ١٦.
٧- مجله البحوث الاسلاميه.
٨- فتاوی ثنائيه ج ٢ ص ٢١٥،٥ فتاوی اهل حديث ج ٢ ص ٥٠٥، اهل حديث كامذهب ص ٩٥، تنويرالافاق فی مسئلة الطلاق.

| ۳۹ | د مکې او د مدينې خلک د درې طلاقو څخه وروسته د شرعي حلالې قائل دي. | ۳ ۹ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) د درې طلاقو څخه وروسته د شرعي حلالې څخه منکر دي (۱) |
|---|---|---|---|
| ۴۰ | دمکې او دمدينې خلک سرتور سر مونځ نه کوي او په بازار کې هم سرتور سر نه ګرزي. (۲) | ۴ ۰ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) سرتور لمونځ کوي او سنت يې هم ګڼي. (۳) |
| ۴۱ | دمکې او دمدينې خلک په لمانځه کې د نامه دپاسه يا د نامه دلاندې لاسونه تړي او هيڅ يو ته خلاف سُنّت نه وايي. | ۴ ۱ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) په لمانځه کې لاسونه په سينه تړي او خپل عمل سنت ګڼي، او د نامه څخه لاندې دلاسونو تړلو ته خلاف سنت او بې کاره عمل وايي. (۴) |
| ۴۲ | دمکې او دمدينې امامان دسحر، ماښام او ماخوستن په لمونځونو کې د سورة فاتحې څخه مخکې بسم الله په زوره (تيز آواز) سره نه لولي او نه ئې سنت ګڼي. | ۴ ۲ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) دسحر، ماښام او ماسخوتن په لمونځونو کې بسم الله په زوره لولي او دا سنت ګڼي. (۵) |
| ۴۳ | دمکې او دمدينې خلک سجدې ته دتللو په | ۴ | فرقه اهل حديث (غير مقلدين) سجدې ته |

[1] - حلاله کې چهری.

[2] مجله البحوث الاسلاميه.

[3] - محمدی نماز ص ۱۷۲ ۱۷۳.

[4] - قول حق ص ٦٢، صلوة النبی ﷺ ۱۵۷، اختلاف امت کاالميه ص ۷۸.

[5] - صلوة النبی کی حسين مناظر.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | وخت کې دګونډو څخه مخکې لاسونه په زمکه نه ږدي([1]). | ٣ | دتللو په وخت دګونډو څخه مخکې په زمکه لاسونه ږدي او دا سنت ګڼي ([2]). |
| ٤٤ | دمکې او دمدينې دخلکو په نيز جلسه داستراحت سنت نده. او په نه کولو کې يې څه نقصان نشته. | ٤<br>٤ | فرقه اهل حديث (غيرمقلدين) جلسه استراحت ډيره زياته ضروري ګڼي. ([3]) |
| ٤٥ | دمکې او دمدينې دخلکو په نيز دامام پسې دسورة فاتحې لوستل واجب ندي او دامام پسې دنه لوستونکي لمونځ صحيح دی ([4]). | ٤<br>٥ | دفرقه اهل حديث په نيز دامام پسې فاتحه لوستل فرض دي بغير دفاتحې دمقتدي لمونځ باطل دی([5]). |
| ٤٦ | دمکې او دمدينې دخلکو په نيز کوم کس چې دامام سره د رکوع په حالت کې شامل شي نو دهغه رکعت اوشو. | ٤<br>٦ | دفرقه اهل حديث په نيز امام پسې دفاتحې دلوستلو څخه غيرکوم يوسړي چې دامام سره درکوع په حالت کې شامل شي نو دهغه رکعت ونشو، بلکې هغه به دارکعت دوباره ادا کوي ([6]). |

---

[1] كيفية صلوة النبي ﷺ للشيخ عبدالعزيز بن عبدالله بن باز.

[2] محمدی نماز ص ١٤٠.

[3] رسول اكرم ﷺ كا طريقه نماز ص ٨٣، عرف الجادى ص ٣٠.

[4] كيفية صلوة النبى ﷺ.

[5] فتاوى نذيريه ج ١ ص ٣٩٨، عرف الجادى ص ٢٦.

[6] دستورالمتقى ص ١١١، نزل الابرار ج ١ ص ١٣٣، فتاوى نذيريه ج ١ ص ٤٩٦، عرف الجادى ص ٢٦.

| ۴۷ | دمکې او دمديني خلک د رمضان په مياشت کې او ددې مياشتې څخه بغير هم درې رکعته وتر کوي (۱). | ۴۷ | فرقه اهل حديث د روژې په مياشت کې درې او بغير د روژې څخه يو رکعت وتر اداکوي.(۲) |
|---|---|---|---|
| ۴۸ | دمکې او دمديني خلک د جمعې په لمانځه کې د دوؤ اذانونو قايل دي او دا سنت ګڼي. | ۴۸ | فرقه اهل حديث د جمعې د يو اذان قائل دي. او د دوئم اذان څخه منکر دي. او دې ته بدعت وائى. (۳) |
| ۴۹ | دمکې او دمديني امامان د جمعې په خطبه کې د خلفائې راشدينو او دصحابه ﷺ کرامو ذکر کول فخر ګڼي. | ۴۹ | د فرقه اهل حديثو په نيز د جمعې په خطبه کې د حضراتو خلفائی راشدينو او دصحابه کرامو ذکر کول بدعت دی. (۴) |
| ۵۰ | دمکې او دمديني د خلکو په نيز (۲۰) شل رکعته تراويح مسنون دي د پيغمبر ﷺ د زمانې څخه واخله تر دې وخته پورې په مسجد حرام او مسجد نبوي کې صرف او صرف (۲۰) شل رکعته تراويح اداء کيږي. | ۵۰ | فرقه اهل حديث (۲۰) شل رکعته سنت تراويحو ته بدعت وايي او اته رکعته تراويح کوي. (۵) |
| ۵۱ | دمکې او دمديني خلک د جنازې لمونځ په ورو ورو آواز سره لولي. (۶) | ۵۱ | فرقه اهل حديث د جنازې لمونځ جهراً لولي. (۷) |

۱ - الهدى النبوة للشيخ محمدصابونى.

۲ - دستورالمتقى ص ۱۴۴، عرف الجادى ص ۳۳.

۳ - فتاوى ستاريه ج ۳ ص ۸۵ و ۸۷، فتاوى علمآء هند ج ۲ ص ۱۷۹.

۴ - هدية المهتدى ج ۱ ص ۱۱۰ نزل الابرار ج ۱ ص ۱۵۳.

۵ - دستورالمتقى ص ۱۴۲، صلوة الرسول.

۶ - رساله التراويح للشيخ عطيه سالم مدرس مسجد نبوى ﷺ وقاضى مدينه منوره، رساله ينابيع لمهر غلام رسول.

۷ - فتاوى ثنائيه ج ۱ ص ۵۲، فتاوى علماء حديث ج ۵ ص ۱۵۲.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵۲ | دمکې اومدينې دخلکو په نيز داحاديثو په رڼاکې د ښځو اودسړو په لمانځه کې فرق دی. | ۵ ۲ | فرقه اهل حديثو په نيز دزنانه و اودسړو دلمانځه په طريقه کې هيڅ فرق نشته. بلکه دوي فرق کولو ته په دين کې مداخلت وائی. (۱) |
| ۵۳ | دمکې اومدينې دخلکو په نيز امام ابوحنيفه رحمه الله د مسلمانانو امام دی اود هغوی متبعين به ترقيامته پورې موجود وي (۲). | ۵ ۳ | دفرقه اهل حديثو په نيز امام ابوحنيفه رحمه الله جهمي مرجئي، بدعتي او گمراه وو. العياذبالله. (۳) |
| ۵۴ | دمکې اومدينې خلک خلفايې راشدين رضی الله عنهم دنصوصو شرعيه وو فرمان بردار گڼي. | ۵ ۴ | او غير مقلدين ليکي چې: د خلفای راشدينو رضي الله عنهم هغه احکام چې هغه دنصوص شرعيه وو څخه خلاف وو امت هغه احکام رد کړي دي. (۴) |

* * *

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم، امابعد:

قال الله تبارک وتعالى: ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَأَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾

محترموورونو! دا وخت د فتنو دوردی، هرورځ نوې نوې فتنې سرراپورته کوي کفري طاقتونو په يواتحاد داسلام په بنيادونو حمله کړې ده، دبې حيائۍ، بې شرمۍ، عياشۍ اوفحاشۍ بازارېې ګرم کړی دی. د حالاتو تقاضی دا ده چې مسلمانانو خپل اختلافات شاته غورزولي وای اود اتحاد اواتفاق په جذبه کفري سيلاب ته يو فولادي بلاک جوړشوی وي، خومتاسفانه کله چې داسلام اود کفر جنګ ارمقابله راغلې ده نوکفارو داحکمت عملي په کاراچولې دی، چې د مسلمانانو څخه يې يو څوکسان په سرواوسپينواخستې دي اود خپلو اصولو مطابق يې چې ډيوائډاينډرول (Divide and Rul) (وجنګوه اوحکومت وکړه) په خپل منځي اختلافاتو کې مصروف کړي دي.

دهندوستان دفتح پيش ګوئي د رسول الله ﷺ په مبارکه ژبه داسې جاري شوې ده چې رسول الله ﷺ فرمايي: چې دوه ډلې به الله ﷻ د دوزخ داور څخه ازاده کړي، يو هغه ډله ده چې د هندوستان سره جهاد کړي، دوهمه ډله هغه ده چې د حضرت عيسى عليه السلام سره په جهاد کې شرکت کوي. (مسند احمد ج ۵ ص۲۷۸ ج ۲ ص۵۲ ومجمع الزاويد ج ۵ص ۲۸۲ وکنزالعمال ج۱۷ ص: ۲۶۷)

او دا پيش ګوئی الله ﷻ داهل السنة والجماعة احنافو په لاس باندې پوره کړه، دحنفي بادشاهانو په قيادت کې دهند فاتحين ټول صرف اوصرف احناف مجاهدين وو، رسول الله ﷺ دې فاتحينو ته دخپل امت

بهترین خلک ویلي دي، او صحابه وو رضوان الله علیهم په دې فاتحینو کې د شریکدلو تمنا کړې وه. الحمد الله دا د احنافو لپاره ډیر د فخر خبره ده ځکه چې په دې احادیثو کې د احنافو په بهترۍ تقریبا تصریح شوې ده.

د اسلام د ورتلو څخه وروسته هلته تر دولس سوه کلونو پورې صرف او صرف هغه نبوي ﷺ قوانین جاري وو چې د احنافو مجاهدینو په واسطه ورښودل شوي وو، تر دولس سوه کلونو پورې ټولو مسلمانانو صرف او صرف هغه نبوي ﷺ لمونځ کولو چې د حنفي مجاهدینو په ذریعه ورخودل شوی وو، تر دولس سوه کلونو پورې هیچا د امام پسې الحمد الله نه لوستله، هیچا د رکوع رفع الیدین نه کول، هیچا په زوره امین نه ویلو، هیچا په سینه باندې لاسونه نه کیښودل، هیڅ د اختلاف بوي نه وو، ځکه چې ټول اهل السنة والجماعة احناف وو، د دې حقیقت اعتراف غیر مقلد نواب صدیق حسن خان داسې کوي:

(خلاصه دا چې د هندوستان د مسلمانانو دا حال دی چې د کله نه اسلام دلته راغلی دی، چونکه اکثر خلک د بادشاهانو طریقه او مذهب خوښوي، نو د اسلام د راتلو څخه تر ننه پورې دا خلک د حنفي مذهب پابند وو او دي. او د همدې مذهب عالمان، فاضلان قاضیان، مفتیان او حاکمان وو). [ترجمان وهابیه ص۱۰]

او علامه شکیب ارسلان دا حقیقت داسې ښکاره کوي چې: (د مسلمانانو اکثریت د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ پیروان او مقلدین دي، ټول د ترک او د بلقان مسلمانان او ټول د روس او افغانستان مسلمانان، ټول د چین او هندوستان مسلمانان، او د عربو اکثر مسلمانان، د شام او د عراق اکثر مسلمانان حنفي مسلکي دي. (حاشیه حسن المساعی ص۶۹)

په (۱۹۱۱ عیسوي) کې چې کومه مردم شماري شوې ده د هغې تفصیل دا دی چې په دنیا کې دي:

۱- اثناعشري: یو کروړ او اووه دیرش (۳۷) لکهه. ۲- زیدي: دیرش لکهه. ۳- حنبلي: دیرش لکهه. ۴- مالکي: یو کروړ. ۵- شافعي: لس کروړه. ۶- احناف: له اووه دیرش (۳۷) کروړو نه زیات.

(انسائیکلو پیډیا اف اسلام)

پدې کې يې د غير مقلدينو ذکر نه دی کړی : ليکن کله چې دانګريزانو منحوس قدم هندوستان ته داخل شو، او اسلامي حنفي حکومت يې ختم کړو، په (١٩٥٧م) کې دازادۍ په جنګ کې احناف مجاهدين دانګريزانو سره په مقابله مصروف وو، چې په زرګونو علماوته دانګريزانو لخوا اعدام ورکړل شو، اوتره ډيرو ورځوپورې يې قتل عام روان کړی وو، نويوطرف ته داحنافو مجاهدينو قتلول او تعذيبول روان وو، اوبل طرف ته ملکې وکټوري د مذهبي ازادۍ اشتهارونه خپاره کړل، چې حنفي مذهب پرېږدئ غيرمقلدين اولامذهبه شئ، نو دبرطانوي حکومت خيرخواهان به وپيژندل شئ او څوک چې په حنفي مذهب کلک وي، هغه به د برطانوي حکومت څخه باغي شميرلې شي، ددې حقيقت اظهار غيرمقلدعالم نواب صديق حسن خان داسې کړی دی چې (بعضې خلکو دانګريزي حکومت په امر حنفي مذهب پرې نه ښود وهغوی دانګريزانو دښمنان دي، اومونږ دانګريزي حکومت دومره خدمت وکړواوددوي په خدمت کې مودومره قرباني ورکړه چې مذهب موپرېښودولامذهبه شو او دسرکاربرطانيه ددروازې فقيران شو.

مونږ به څرنګه ستاسو مخالفت وکړو؟ د ملکې عالی معظمی دام اقبالها اشتهار د ټولوسره د مذهبي ازادي وعده کړی ده ) [ترجمان وهابيه ص ۴۵].

انګريزانو پخپلو کې د مسلمانانو د جنګولو لپاره هرقسم امدادونه تيار کړل، اختلاف جوړونکوته بې شماره دولت اوغټې غټې جائيدادونه ورکړل اوددغې زرخريد وغلامانو په کوشش سره يې دامت مسلمه اتحادټوټه ټوټه کړو او مختلفو فتنوسرراپورته کړو ، په دې فتنوکې يوه فتنه په اکابروباندې دعدم اعتماد (غير مقلديت ) وه. ددې فتنې بانيينو دعمل بالحديث په نوم باندې دتقليد څخه انکار کولو، دهغو اعمالو درواجولو کوشش يې کولو چې يادائمه يې اربعه وو په مينځ کې اختلافي وو، اويابالکل متروک وو ، په مساجدو کې يې اختلافات راوپارول، په اسلافويې بدزبانۍ شروع کړی، چې دهغې په وجه دالله ﷻ په کورونو کې د عبادت په ځای جنګونه شروع شول، فروعي مسائل يې د کفر اودا سلام معيار وګرځول، رفع اليدين او امين بالجهر وغيره فروعی مسائل يې د تضليل اودتفسيق

سبب جوړ کړل، په هره اجتماع کې به يې په ډېر شور او زور سره بيانول، د احنافو په خلاف يې اشتهارونه خپرول او د زرګونو روپيو انعامي چيلنجونه يې ورکول.

د اکابرو علماو د ديوبند هميشه دا مسلک را روان دی چې اجتهادي او فروعي مسائل او دمخکې څخه مختلفٌ فيها مسائلو باندې دومره زورندي پکار چې مقابل طرف ته په کې د جهل او فسق نسبتونه وشي، او نه په عامو جلسو او تقريرونو کې د هغې بيانول پکار دي، ځکه چې فروعي مسائل د اهل سنت والجماعت د علماء په نيز تبليغي او تکذيبي مسائل ندي، بلکې صرف ترجيحي مسائيل دي. لکن بالعکس دغې زرخريدو غلامانو د خپلو ځانونو څخه بغير ټولو اهل سنتو ته کافران، بدعتيان، فاسقان، جاهلان او بې نمازان ويل اکابرو ته جاهلان او فاسقان ويل يې اهمه فريضه وه، او په هر ځای کې فتنه او فساد جوړول يې لوی ديني کارګڼلو.

د دوی دا فتنه دوامداره شوه، زمونږ په زمانه کې چې کله روسانو په افغانستان يرغل وکړو او په ميلونونو افغانان شهيدان شول، په ميلونونو ماشومان يتيمان شول، او د وينو سيلابونه روان وو، او د وينو او د سرونو په قيمت د کفر مقابله کيدله نو دغې لامذهبو د خپلو اکابرو په نقش قدم د اختلافاتو بازار ګرم کړی وو. په مجاهدينو کې هم ننوتي وه او دوه تنظيمونه يې لرل.

د يو تنظيم مشري سياف کوله چې اوس په صليبي پارلمان کې د پيغلو جينکيو سره په يوه چوکۍ کې ناست وي او شپه او ورځ د ديموکراسۍ رباب وهي. او د بلې ډلې مشري مولوي جميل الرحمن کوله. دده د تنظيم د مطبوعاتو مشر غير مقلد مسلم دوست چې کله د کيوبا د زندان څخه را خلاص شو نو يو کتاب يې وليکلو په نامه د: (ماتې زولنې) په هغې کې يې چې دده بد تاريخ څومره را ښکاره کړی دی، نو په لوستلو يې خوله او په ليکلو يې قلم شرميږي.

يو د هغې نه دا چې دا د سي آی ای ( $CIA$ ) او آی ايس آی ( $ISI$ ) ايجنټ وو. وريرونو (د تنظيم مرکزي غړو) به يې د آی ايس آی جرنيلانو ته د زنا لپاره جينکۍ وروستلې، يعنې د تنظيم په سطحه به يې مرده ګاوي کوله، د يتيمانو زخميانو او شهيدانو په نوم به چې څومره روپۍ ورته راتلې هغه به يې

بالکل شخصي سرمايه گرزوله، او د صليبي يرغل په وخت کې يې وريرونو په امريکايانو باندې عرب مجاهدين خرڅول ... صاحب البيت أدرى بما فيه، مونږ داهم وايو چې که ته پکې شريک نوې نو څرنګه ورسره په تنظيم کې پاتې وې؟

خلاصه دا چې کله د امريکا په مشرۍ ټولو کفري طاقتونو په افغانستان باندې حمله وکړه او صليبي جنګ يې اعلان کړو، نو بيا هم دغو زرخريد و غلامانو دخپلو روحاني پلرونو سره هرقسم امداد وکړو.

لامذهبه سياف او لامذهبه سميع الله نجيبي چې د جميل الرحمن د مرګ څخه وروسته يې د دوی د تنظيم مشري کوله د صليبيانو سره په ښکاره ودريدل، د صليبيانو په مقابله کې يې د جهاد د حرمت فتواګانې ورکړې، او مجاهدينو او فدايانو ته يې د باغيانو نسبتونه وکړل. انګريزانو هم ښه رياستونه او منصبونه ورکړل.

زمونږ د ولايت ننګرهار مرکزي مدرسې، او مسجدونه يې ورته حواله کړل، د حج او اوقاف رياستونه يې ورکړل، دايف ايم راډيو ګانې يې ورته جوړې کړې، ترڅو د جهاد درسونه بند شي او دهغې په ځای خلک د رفع اليدين او آمين بالجهر په جنګونو کې مصروف شي.

کله چې زه د لغمان د عليشنګ په لاره کې د اسلام اباد د پول سره د صليبيانو په يو کمين وربرابر شوم او د مرتد صليبي زمريالي قومندان لخوا ونيول شوم د شپې په اته بجې: ١/ ٨/ ١٤٣٢هـ ق، ٤/١٢ /١٣٩٠هـ ش او د لغمان د استخباراتو او د کابل د نود (٩٠) او د هفتده (١٧) په رياستونو کې د سخت تعذيب لاندې وم، نو همدغو زرخريد و غلامانو به د خپلې غلامۍ پوره حق ادا کولو او زمونږ د علاقې لامذهبه به ډک ډک فلاينکو چونه زما په خلاف راتلل او زما تعذيب او توهين به يې زياتاوه. صرف په دې تعصب چې ما به د حنفي مذهب دفاع کوله او د دوی په مخ کې يو خنډ وم. او چې کله د پلچرخي صليبي محبس ته نقل کړی شوم په پنځلسم د شوال سنه ١٤٣٢ هـ هلته هم يو څو لامذهبو بنديانو اختلافاتو ته لمن وهله. د لامذهبو کتابونه يې تقسيمول او د عوامو ذهنونه يې داسې جوړول چې حنفي لمونځ د قران او د حديث څخه خلاف دی.

مونږ ترېو څه وخته پورې د خپلو اکابرو په طريقه صبر او تحمل کولو، ليکن کله چې حنفي عوامو بيا بيا پوښتنې کولې چې ايا واقعی زمونږ مذهب د قران او د حديث څخه خلاف دی ؟ ايا واقعي په ترک د قرائت خلف الامام او په ترک د رفع اليدين وغيره مسائلو باندې د احنافو سره يو حديث هم نشته ؟

نو ديو څو مضمونونو د ليکلو اراده مې وکړه، خو چونکه زه په زندان کې يم او اسباب راسره نشته، له دې وجهې به يې د اختصار سره وليکم. د زيات تفصيل لپاره د سرفرازخان صفدر رَحِمَهُ اللهُ او د محمد امين صفدر اوکاړوی رَحِمَهُ اللهُ کتابونه مطالعه کړئ.

والسلام

رحيم الله الحقانی النجرهاری

المحبوس فی جدر الصليبين پلچرخي

٢٣/ ٣ /١٤٣٣هـ ق

٢٧/١١/ ١٣٩٠ هـ ش ١٦/ ٢/٢٠١٢م

**داهل سنت والجماعت احنافو مسلک:** په جهري او سري دواړه قسمه لمونځونو کې د مقتديانو لپاره د. الحمد لله لوستل مکروه تحريمي دي (الدرالمختار ج ۱ص۵۴۴، اللباب فی شرح الکتاب للمیدانی، ج اص۳۹.

**دلامذهبو ويکټوري اهل حديثو مسلک:** د امام پسې شاته د سورة فاتحې لسوتل فرض دي بغير د لوستلو د الحمد لله څخه د مقتدي لمونځ نه کيږي (فتاوی علماء حديث ج ۳ص ۱۱۲)

## د لامذهبو مغالطه

لامذهبان عوامو ته وايي چې: ستاسو لمونځ بې فاتحې دی او په يو حديث کې هم دا نه دي راغلي چې بې فاتحې لمونځ کېږي. او کله کله عوامو ته وايي چې: مونږ به داسې حديث پيش کړو چې: په هغې کې راغلي وي چې بې فاتحې لمونځ نه کيږي. او تاسو داسې حديث پيش کړئ چې په هغې کې راغلي وي چې بې فاتحې لمونځ کيږي.

الجواب: د فقهې مسئله داسې نه ده چې: بې فاتحې لمونځ کيږي. نو چې داسې مسئله پکې نشته نو دليل څرنګه درته پيش کړم؟

د فقهې مسئله داسې ده چې: د يو امام قرئت د ټولو مقتديانو له پاره کافي دی.

نو د حنفي مقتدي مونځ بي د فاتحي څخه نه دی لکه د يو کس اذان چې د ټولې محلې لپاره کافي دی، او د ټولې محلې مونځ سره د آذانه دی او د يو امام خطبه د ټول مسجد د مقتديانو لپاره کافي ده او د ټولې محلې مونځ سره د خطبې د ي. همدارنګه په تراويحو کښې ۱۱۳ سورتونه چې قاري په تراويحو کښې لولي نو دا د ټولو مقتديانو لپاره کافي دي او د ټولو مقتديانو تراويح سره د ختمه د قران دي نو همدارنګه د يو امام الحمد لله د ټولو مقتديانو له طرفه الحمد لله ده او د ټولو مقتديانو مونځ سره د الحمد لله دی اوس زمونږ دعوه دا ده چې د امام الحمد لله د مقتديانو الحمد لله ده، او د مقتديانو لپاره د امام الحمد لله کافي ده، نو د مقتديانو مونځ د الحمد لله سره اوشو، په دې باندې مونږ بې شماره احاديث لرو لکه د څلورم نمبر حديث لاندې به راشي ان شاء الله او د لامذهبو دعوه دا شوه چې د امام الحمد لله د

مقتديانو لپاره نه ده کافي.نو دوي دي د عدم کفايت لپاره صرف يو حديث پيش کړي، د جمعي د خطبي په باره کښې په يو حديث کښې د لاصلوة الا بفاتحة الکتاب په شان الفاظ دي، چې: لا جمعة الا بخطبة ،سنن الکبري للبهيقي ج ٣ ص ـ ٩٦ ، نو د جمعې په ورځ صرف يو امام خطبه وائي بيا چې کله د مقتديانو څخه تپوس وشي چې ستاسو مونځ سره د خطبې دي ، او که بغير د خطبې دی ؟ نو دوي ټول وائي چې سره د خطبې دی اوس که څوک دی مقتديانو ته ووائي چې تاسو خو خطبه نه ده لوستلې نو ستاسو مونځ بې خطبې دی نو دا به غلط وي ، ځکه چې دوي به ورته وائي چې د امام خطبه زمونږ لپاره کافي ده ، او د امام خطبه زمونږ خطبه ده ، همدارنګه د امام الحمد لله د مقتديانو لپاره کافي ده .همدارنګه د تراويحو د ختم القران څخه وروسته چې کله د مقتديانو څخه تپوس وشي چې تاسو ختم کړی دی ؟ نو دوي وائي چې هو کړی مو دی نو اوس که څوک ورته ووائي چې تاسو خو قران ندی لوستلې نو تاسو ختم نه دی کړې نو دا به غلطه خبره وي ځکه چې د قاري لوستل د ټول مسجد د مقتديانو له طرفه لوستل دي ، نو چې په يو سلو ديارلسو سورتونو کښې د امام لوستل د مقتديانو لپاره کافي دي ، نو يوا ځي سورة فاتحې څه ګناه کړې ده چې دلته د امام لوستل د مقتديانو لپاره نه دي کافي ؟ حالانکه د کافي والي حديثونه هم شته دی

## قراءة خلف الامام

چونکه قرآن کريم رباني کلام او آسماني صحيفه ده، له دې وجهې په أدلـه وو أربعه وو کې د ټولو څخه اوچت مقام لري او زمونږ د اختلافاتو فيصله کن کتاب دی، له دی وجهې په ټولو مسلمانانو لازمه او واجبه ده چې په کومه مسئله کې د دوي په مابين کې اختلاف وي، د هرڅه څخه مخکې دی قران کريم ته رجوع وکړي ، که د مسئلې حل په قران کې پيدا شو ، نو د قران په روشنائي کې دي د خپل ځان لپاره د عمل لاره متعينه کړي، ځکه چې د قران کريم فيصله د خالق کاينات فيصله ده، او د خالق کاينات د فيصلې څخه مخ اړول لوی هلاکت او بربادي ده.

په حديث شريف کې راځي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي. وَمَنْ ابْتَغَى الهُدٰى فِي غَيْرِهِ أَضَلَّهُ اللّٰهُ، وَهُوَ حَبْلُ اللّٰهِ الْمَتِينُ، وَهُوَ الذِّكْرُ الحَكِيمُ، وَهُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ، )وَمَنْ عَمِلَ بِهِ أُجِرَ، وَمَنْ حَكَمَ بِهِ عَدَلَ، وَمَنْ دَعَا إِلَيْهِ هَدٰى إِلٰى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ.. [ترمذی شريف، ج ۱، مشکوة شريف ج ۱ص ۱۸٦].

کوم سړی چې قران پرېږدي او په بل شي کې هدايت لټوي الله ﷻ به يې ګمراه کړي، دا قران کريم دالله ﷻ مظبوط رسۍ د ه، دا ذکر حکيم او صراط مستقيم دی، کوم سړی چې دده په تعليماتو او اصولو باندې روان وي او عمل پرې کوي هغه ته اجرور کولی شي، او څوک چې د قراني تعليماتو طرف ته خلک رابلي هغه ته به د صراط مستقيم هدايت وکړی شي.

يعنې په هر حال کې مسلمان ته پکار دي چې د خپلې نيک بختۍ لپاره خپله عقيده او نظريه د قران ماتحت کړي، او د قران په هره اشاره باندې په زرګونه وارې د ځان قربانولو ته تيار شي.

نو محترمو! راځي چې متنازعه مسئله (د امام پسې دالحمد الله الخ دلوستلو څه حکم دی؟) د قراني تعليماتو په روشنائي کې حل کړو:

## امام پسې دالحمدلله لوستل
## د قران کريم په رڼاکې مکروهِ تحريمي دي

الله ﷻ فرمائي: (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَأَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ) [پ ۹ سورة اعراف].

ترجمه: او کله چې ولوستلې شي قران، نو غوږ کيږدئ تاسې هغه ته او چُپ اوسئ له پاره ددې چې رحم درباندې وشي.

د جمهور سلفو او خلفو اتفاقی فيصله ده چې په دې ايت کريمه کې د قراءة خلف الامام مسئله پوره واضحه شوې ده، او په دې باره کې يې صاف او ناطق حکم صادر کړې دی، يعنې د امام او مقتدي کارونه او وظيفې يې جدا جدا معينې کړي دي.

امام بخاري رحمه الله د لاتحرک به لسانک معنی داسې رانقلوي چې: فاستمع له وانصت ج ١صـ ٣ـ نو شونډې خوزول د استماع او د انصات سره منافي دي، همدارنګه امام بيهقي فرمايي چې لافرق بين السكوت والانصات (كتاب القراءت صـ ٨٤).

**دامام وظيفه :** (قراءت کول دي) او دمقتدي وظيفه : (چپ دريدل او توجه کول دي.

مناسبه داده چې د مذکوره ايت کريمه په تشريح او تفسير کې د صحابه وو رضوان الله عليهم او د تابعينو، او د تبع تابعينو رحمهم الله ارشادات عاليه او اقوال مبارکه پيش کړو، چې دې مقدس جماعت د دې ايت څه مطلب بيان کړې دی؟

(١) - صحابه رضوان الله عليهم ټول د علم غرونه او د هداية ستوري وو، ليکن بعضې صحابه کرام ﷺ د بعضې نورو څخه په علم، او فضل، فقهی فهم او بصيرت کې مخکې وو، په دوي کې يو حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دی، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته الله ﷻ بعضې داسې جزئي فضائل ورکړي وو چې بل هيڅ صحابی ورسره په کې نو وو شريک، د قران په معلمينو کې عبدالله بن مسعود ﷺ د ټولو څخه ممتاز او فائق وو، په معلمينو د قران کې دده نمبر د ټولو څخه مخکې وو، رسول الله ﷺ فرمائی چې : استقرؤوا القران من اربع :

(١) من عبدالله بن مسعود ﷺ (٢) و سالم مولي ابي حذيفه ﷺ (٣) وابي بن كعب ﷺ. (٤) ومعاذ بن جبل ﷺ. ( بخارى شريف جلداول ، ص ٥٣١، ترمذى شريف جلد٢ ص ٢٢٢).

ای صحابه وو! تاسو قران کريم د دې څلورو صحابه وو څخه زده کړئ! د عبدالله بن مسعود ﷺ څخه .. د سالم ﷺ مولی دابی حذيفه ﷺ څخه. د أبی بن کعب ﷺ څخه. او د معاذ بن جبل ﷺ څخه. او په دې څلورو کې اول نمبر عبدالله بن مسعود ﷺ دی. حافظ الدنيا حافظ ابن حجر عسقلانی رَحِمَهُ اللَّهُ تعالی د دې حديث په تشريح کې ليکلي دي چې : وان البداية بالرجل في الذكر على غيره في امر يشترك فيه مع غيره يدل على تقدمه فيه .

يعنې چې د يو څو کسانو شرکت په يو فضيلت کې ذکر کړل شي، نو په دې کسانو کې چې د چانوم اول ذکرشوی دی، په هغه کې دا فضيلت د نورو څخه زيات وي.

ددې حديث راوي حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ فرمائی چې په معلمينو د قران کې ډېر لوڅخه مخکې نوم دعبدالله بن مسعود ﷺ دی، له دې وجهې زه دده سره سخت محبت کوم، او دا زما دخاصو محبوبينو څخه دی، په يو بل حديث کې رسول الله ﷺ د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په باره کې داسې فرمائی چې:

تمسكوابعهدابن ام عبد (ترمذی شريف جلد٢ص ٢٩٣) دابن مسعود ﷺ په هدايت او حکم باندې کلکی منګولې ولګوئ!

په مسلم شريف دوهم جلدص ٢٩٣ ) کې دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې: وَالَّذِي لَآاِلٰهَ غَيرُهُ، مَامِن كِتَابِ الله سُورَةٌ اِلَّآ اَنَا اَعلَمُ، حَيثُ نزلت وما من آية الّا انآ اعلم فيمآانزلت ولوأعلم أحدا هوأعلم بكتاب الله منّي تبلغه الآبل لركبت اليه.

په هغه الله ﷻ قسم کوم چې دهغه څخه سوی بل معبود نشته، په قران کې هيڅ داسې سورت او ايت نشته چې ماته يې شان نزول نه وي معلوم چې په کومه موقع او په کوم حالت کې نازل شوی دی، او ما د خپل ځان څخه د قران کريم بل غټ عالم نه دی ليدلی، که په دغه دوريعنې دصحابه وو ﷺ په دور کې زما څخه دقران کريم بل غټ عالم وی او رسيدل ورته ممکن وی، نو ما به دهغه طرف ته رجوع کړی وی، او دهغه څخه به مې استفاده کړی وی نو دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه ددې ايت کريمه په باره کې لاندې روايت منقول دی.

صلي ابن مسعود ﷺ فسمع ناسا يقرءون مع الامام قال اما ان لكم ان تفهموا اما آن لكم ان تعقلوا! (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ) [تفسيرابن جرير، ج ٩ ص ١٠٣].

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ يوه ورځ لمونځ کولو او يو څو کسانو په امام پسې قرائت لوستلو، کله چې عبدالله بن مسعود ﷺ ددوی قرائت واوريدو (نو دلمانځه څخه وروسته يې) ورته وفرمايل چې ايا

په تاسو هغه وخت نه دی راغلی چې د پوهې او د عقل څخه کار واخلئ! کله چې قران لوستلی شي نو تاسې هغه ته غوږ کیږدئ او چپ اوسئ!.

**اول راوي ابن جریر**: احد ائمة الاعلام. [بغدادی/ ۳/ ص ۱۶۳].

**دوهم راوي ابو کریب**: حافظ، ثقه، محدث الکوفة. [تذکره/ج ۲/ص ۷۳/ تهذیب التهذیب/ ج ۹/ص ۳۸۶].

**دریم راوي محاربی**: د ده نوم یحیی بن یعلی دی. ابو حاتم او ابن حبان ورته ثقه ویلي دي. [تهذیب التهذیب/ج ۱۱/ص ۳۰۳].

**څلورم راوي داود بن ابـی هنـد دی.** چې امام احمد سفیان ثوری، ابن معین، ابو صالح او نسائی و غیرهم ورته ثقه ویلي دي. [تذکرة/ج ۱/ص ۱۳۸].

**پنځم راوي یسر بن جابر**: ثقه دی. وقیل صحابیٌ. [تهذیب التهذیب/ج ۱۱/ص ۳۷۹].

## (۲) د مذکور ایت کریمه تفسیر د رئیس المفسرین حِبر الأمة حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه:

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ پسې دلوی درجې مفسر حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دی، رسول الله ﷺ ورته داسې دعا کړې ده چې: اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَعَلِّمْهُ التَّاوِيْـلَ. (مسـند احمد ج ۱ص ۳۲۸، ابن کثیر، ج ۱ص ۳).

یاالله ده ته په دین کې پوهه ورکړه، او د قران کریم په تأویل او تفسیر کې مهارت ورکړه.

د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه بل روایت دی چې: ضمني الیه رسول الله ﷺ قـال اللّٰهُمَّ علمـه الحکمة. (ترمذی شریف، ج ۲ص ۲۲۳)

زه رسول الله ﷺ د خپلې مبارکې سینې سره یو ځای کړم او وی فرمایـل: یاالله ده تـه په دین کې پوهه ورکړه! جلیل القدر صحابی، د لوی مرتبې مفسر، او بې نظیره محدث، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ

دعبدالله بن عباس په باره کې فرمائي چې : قال عبدالله يعني ابن مسعود رضی الله عنه نعم ترجمان القران ابن عباس .(تفسيرابن كثير، ج ١ص ٣)

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي چې عبدالله بن عباس رضی الله عنه د قران كريم بهترين مفسراو شارح دى.

دومره لوی مفسرددې ايت كريمه په باره كې داسې فرمائي چې :

ان رسول الله ﷺ قرء فى الصلوٰة فقرأ اصحابه وراءه فخلطوا عليه فنزل: وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَ اَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ)فهذه مكتوبة ثم قال ابن عباس رضی الله عنهما: وان كنا لانستمع لمن يقرأ انا اذا لاجفى من الحمير.

رسول الله صلى الله عليه وسلم په لمانځه كې قراءت كولو صحابه وو هم ورپسې قراءت كولو، نو په رسول الله صلى الله عليه وسلم قراءت ګډوډ شو نو الله تعالى دا ايت نازل كړو چې (وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَ اَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ)بيا عبدالله بن عباس رضى الله عنه وفرمايل چې كه مونږ قرآن ته غوږ نه كېږدو نو مونږ به د خره څخه هم ډير ظالمان يو اسناده حسن (كتاب القراءت للبيهقى رقم ٢٢٣)

فانقيل: چې ددې حديث په سند كې ابن لهيعه ضعيف دى؟

قلنا ١- ابن لهيعه د مسلم، ابوداؤد، ترمذي، او ابن ماجه راوي دى امام احمد فرمايي : لم يكن بمصر مثل ابن لهيعه وكثرت حديثه وضبطه واتقانه امامان دحديثو ورته الحافظ ، الامام الكبير، عالم محدث وايي، وګوره (العبر للذهبى ج١صـ ١٣٥، تذكرة الحفاظ للذهبى، ج ١صـ ١٧٤، سيراعلام النبلاء للذهبى، ج ٦صـ ٢٨٤، التهذيب لابن حجر ج ٣صـ ٢٤١، التقريب لابن حجر ج١ صـ ٣٠٩)

ترمذي په ،باب ماجاء مايحل من اموال اهل الذمة كې دده حديث ته حسن ويلي دي، علامه هيثمي په مجمع الزوائد كې په ډيرو ځايونو كې دده حديث ته حسن ويلي دي، مثلا دحضرت جابر حديث چې لايدخل الجنة (رواه احمد وفيه ابن لهيعه واسناده حسن ج ١صـ ٢١٣.

دعبدالله بن حارث دحديث په اخر کښ فرمايي چې: رواه البزار والطبراني فى الكبير وفيه ابن لهيعه وحديثه حسن ج ١صـ ٣٨٧)

دمعاويه بن خديج دحديث په اخر کښ فرمايي چې : رواه احمد والطبراني وفيه ابن لهيعه وهو حسن الحديث ج ٣صـ ٤٢٨)

او حافظ ابن كثير فرمايي چې: الحسن وهو فى الاحتجاج كالصحيح عند الجمهور ،الباعث الحثيث لابن كثير النوع الثانى صـ ٣٥،

دوهم جواب: دعبدالله بن عباس رضى الله عنهما موقوف روايت دديې مؤيد دى ، غير مقلد زبير على زى يو ضعيفه مرفوع ته د تائيد دموقوف له وجې صحيح وايي (نورالعينين لعلى زى صـ ٢٣٣)او او د عبد الله بن عباس رضى الله عنهما روايت ضعيف ندى بلكې حسن دى نو دموقوف روايت نه وجهې نور هم ورته قوت حاصليږي د عبدالله بن عباس موقوف روايت دادى چې:

عن ابن عباس ﷺ في قوله تعالي : وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ) يعني في الصلوة المفروضة ، ( تفسيرابن كثير، ج ٢ص ٢٨ ،تفسيرابن جرير، ج ٩ ص ١٠٣، كتاب القراءة ص ٨٨ .روح المعانى ، ج ٩ ص ١٥٠)

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائى چې د(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهُ وَاَنْصِتُوْا) شان نزول فرضي لمونځ دى .

## (٣ ) دمذكوره ايت كريمه تفسيرد حضرت مقدادبن اسود ﷺ څخه :

وذكرالبغوي عن المقدادانه سمع ناسايقرءون مع الامام فلما انصرف قال امان لكم أن تفهموا (واذاقرى القران فاستعموا له وانصتوا ) كماامركم الله .

امام بغوی د حضرت مقداد بن اسود ﷺ څخه روایت کوي چې ده دیو څو کسانو څخه واوریدل چې
د امام پسې یې قرائت کولو حضرت مقداد ﷺ ورته وفرمایل چې ایا په تاسو هغه وخت نه دی راغلې چې
عقل او د پوهې څخه کار واخلئ کله چې قران لوستلی شي نو تاسې هغه ته غوږ کیږدئ او چپ اوسئ.

## (۴) دمذکوره ایت کریمه تفسیر دمحمدبن کعب القرظی ﷺ څخه:

عن محمدبن كعب القرظى قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا قرء فى الصلوة أجابه من ورائه، اذا قال بسم الله الرحمن الرحيم قالوا مثل مايقول حتى تنقضى الفاتحة والسورة فلبث ماشاء الله ان يلبث ثم نزلت واذا قرء القرآن فاستمعوا له وانصتوا لعلكم ترحمون فقرأ وانصتوا ، (اسناده صحيح على شرط مسلم، تفسير ابن ابى حاتم الرازى ج ٤صـ صـ ٢٥٩، رقم ٩٤٩٣)

صحابه وو به د نبي کریم صلی الله علیه وسلم پسې سورة فاتحه او وروسته سورة لوستل بیا دا ایت نازل شو چې واذا قرء القرآن فاستمعوا له، نو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم قراءت کولو او صحابه چپ وو.

فانقیل: دا روایت مرسل دی ځکه محمد بن کعب القرظی تابعي دی؟

قلنا: مرسل حدیث د جمهورو په نیز حجت دی ، قال الامام ابو جعفر محمد بن جرير الطبرى اجمع التابعون بأسرهم على قبول المرسل ولم يأت عنهم انكاره ولا عن احدٍ من الأئمة بعدهم الى رأس المائتين(قواعد فى علوم الحديث للعمانى صـ ١٤٦)

قال الامام عبدالرحمن الشهير بابن رجب الحنبلى قد استدل كثير من الفقهاء بالمرسل و حكى الاحتجاج بالمرسل عن اهل الكوفة وعن اهل العراق وحكاه الحاكم عن ابراهيم النخعى وحماد بن ابى سليمان وابى حنيفة وصاحبيه (شرح على الترمذى لابن رجب صـ ٢٤٤، قال الامام المحدث ظفر احمد العثمانى، اما الاجماع فهو ان الصحابة والتابعين أجمعوا على قبول المراسيل من العدل ،قواعد فى علوم الحديث صـ ١٤٠)

۲- ددې مرسل رویت تاید د عبد الله بن مسعود رضی الله عنهما او د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وغیره روایاتو څخه کیږي لهذا دا مرسل معتضده دی او مرسل معتضده اتفاقا حجت دی.

## (۵) د مذکوره ایت تفسیر د حضرت مجاهد بن جبیر رَحِمَهُ اللهُ څخه:

په تابعینو عظامو کې د ټولو څخه لوی مفسر حضرت امام مجاهد بن جبیر رَحِمَهُ اللهُ دی دا مبارک پخپل دور کې د ټولو څخه لوی مفسر وو ، د حضرت سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ دا قول دا امام مجاهد په باره کې مشهور دی چې : اذاجاء ک التفسیرعن مجاهد فحسبک به.(تفسیرابن کثیرج ۱ص ۵).

چې کله د امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ تفسیر در ته ورسیږي نو د بل چا تفسیر ته حاجت نشته . حضرت امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې : عرضت المصحف علي ابن عباس رضی الله عنه ثلث عرضات من فاتحته الي خاتمته اوقفه عندکل اية وأسأله عنه. ( تفسیرابن کثیر، ج ۱ص ٤ )

ما قران کریم دا ول څخه تر اخره پورې درې ځلې رئیس المفسرین حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه ته وړاندې کړو د قران کریم په هر ایت باندې به مې هغه ته وقف کولو ، او د هغې په باره کې به مې ترینه پوښتنه کوله، امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ د دې ایت کریمه په تفسیر کې فرمائي چې :

عن مجاهد فی قوله تعالی : (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَأَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ) في الصلوة.

(تفسیرابن جریرج ۹ ص ۱۰۳ ، تفسیرابن کثیرج ۲ص ۲۸۱، کتاب القراءة ،ص ۱۰) یعنې مذکور ایت کریمه د لمانځه په باره کې نازل شوی دی .

عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله عليه قَالَ: " كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ فَسَمِعَ قِرَاءَةَ فَتًى مِنَ الْأَنْصَارِ فَنَزَلَتْ {وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا} (کتاب القراءت للبیهقی رقم ۲۱۶)، یو انصاري صحابي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم شاته قرائت کولو نبي صلی الله علیه وسلم واوریدلو نو دا ایت نازل شو چې اذا قرء القرآن فاستمعوا له وانصتوا.

## (٦) د حضرت سعید بن مسیب رَحِمَهُ اللهُ تفسیر :

عن سعیدبن المسیب (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَأَنْصِتُوْا) قال في الصلوة. [تفسیرابن جریر ،ج ۹ ص ۱۰۳ کتاب القراءت ،ص ۱۹]. یعنې مذکور ایت کریمه د لمانځه په باره کې نازل شوی دی.

## (۷) د حضرت سعیدبن جبیر رَحِمَهُ اللّٰهُ تفسیر :

عن سعیدبن جبیر (وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) في الصلوة المكتوبة . (تفسيرابن جرير، ج۹ ص ۱۰۳ تفسيرابن كثير، ج ۲ص ۲۸۱). حضرت سعيدبن جبيرتابعي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائی چې دغه مذكورايت كريمه دفرضي لمونځ په باره كې نازل شوی دی .

## (۸) د حضرت حسن بصری رَحِمَهُ اللّٰهُ تفسیر:

عن الحسن(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا) قال في الصلوة) حسن بصری صاحب فرمائي چې داايت كريمه دلمانځه په باره كې نازل شوی دی . (كتاب القراءة ، ص ۹۱)

## (۹-۱۰) دحضرت عبيد بن عمير او حضرت عطاء بن ابي رباح رَحِمَهُ اللّٰهُ تفسير:

قال عبيد بن عمير وعطاء بن ابي رباح انما ذالک في الصلوة ((وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا). [تفسير ابن جرير ج۹ ص ۱۰۳]. حضرت عبيدبن عمير رَحِمَهُ اللّٰهُ او حضرت عطاء بن ابی رباح تابعی رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي چې دمذكورايت كريمه شان نزول لمونځ دی .

## (۱۱-۱۶) دحضرت ضحاک، حضرت ابراهيم نخعی، حضرت قتادة،حضرت شعبی، حضرت سدی اوحضرت عبدالرحمن بن زيدبن اسلم رَحِمَهُمُ اللّٰهُ تفسير:

قال الضحاک ، وابراهيم النخعي، وقتادة ، والشعبي، والسدي، وعبدالرحمن بن زيدبن اسلم ان المرادبذلک في الصلوة . ( تفسيرابن كثيرج ۲ص ۲۸۱ ) .

دا پورتني علماء كرام ټول پدې قايل دي چې: داايت كريمه دلمانځه په باره كې نازل شوی دی .

## (۱۷) دحضرت امام احمدبن حنبل رَحِمَهُ اللهُ تفسير:

علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ د امام احمدبن حنبل رَحِمَهُ اللهُ قول د مذکوره ایت کریمه په باره کښ رانقل کوي چې ددې ایت کریمه شان نزول لمونځ دی. وذکرابن حنبل الاجماع علي انهانزلت في الصلوة وذکرالاجماع علي انهالاتجب القراءة علي المأموم حال الجهر. (فتاوی ابن تيميه، ج۲۲ص ۱۲۸ ص ۱۵۰).

امام احمد په دې خبره اجماع نقل کړې ده، چې ددې ایت شان نزول لمونځ دی، او همدارنګه يې په دې اجماع نقل کړې ده چې کله امام په جهر قراءت کوي نو په مقتدی باندې قراءت واجب نه دی.

په يو بل ځای کښ علامه ابن تيميه فرمائي چې:

و قول الجمهورهوالصحيح فان الله سبحانه وتعالي قال(وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ) قال احمداجمع الناس علي انهانزلت في الصلوة. (فتاوی کبری، ج ۲۲ص ۱۶۸ المغنی لابن قدامة ج ۲ص ۱۱۷)

د جمهورو قول صحیح دی ځکه چې الله ﷻ فرمائي چې کله قران لوستلی شي نو تاسو هغه طرفته توجه کوئ او چپ اوسئ، ددې لپاره چې په تاسو رحم وشي، امام احمد فرمائي چې په دې خبره د ټولو اجماع او اتفاق دی چې دا ایت کریمه دلمانځه په باره کښ نازل شوی دی.

په يو بل ځای کښ فرمايي چې: ( فالنزاع من الطرفين لكن الذين ينهون عن القرائة خلف الامام جمهور السلف والخلف ومعهم الكتاب والسنة الصحيحة والذين اوجبوها على المأموم فحديثهم ضعفه الائمة. ) [ تنوع العبادات / ص ۸٦ ].

په دې مسئله کښ نزاع د دواړو طرفونو څخه ده، لکن کوم خلک چې د قرائة خلف الامام څخه منعه کوي جمهور سلف او خلف دي، او د دوي سره کتاب او سُنت صحيحه دی. او کوم خلک چې قرائة خلف الامام ته واجب وايي د هغوی أیمه ؤ حدیث ضعیف ګڼلی دی.

## (۱۸) ده مذکوره حضراتو څخه علاوه نور جليل القدرمفسرين مثلا:

صاحب دتفسيرروح المعانى ، ج ۹ ص ۱۵۱ ،صاحب دتفسير مظهرى ، ج ۳ص ۵۰۷ ، صاحب دتفسيربيضاوى ، ص ۳۰۸ ، صاحب دتفسيرمعالم التنزيل ص ۲۷۲ ، صاحب دتفسير ابو السعود، ج ۲ص ۵۰۲ ، صاحب دتفسيركشاف ،ج ۱ص ۵۲۳.

نومحترمو ! دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه نيولې تر علامه الوسي رَحِمَهُ ٱللَّهُ پورې تفاسيروائي چې داايت كريمه دلمانځه په باره كې نازل شوى دى .

خلاصه دا چې په هندوستان باندې دانګريزد دورې څخه مخكې چې كوم تفسيرونه ليكل شوي دي دعوى په نيزداايت كريمه دلمانځه په باره كې نازل شوى دى .

دابن تيمه عبارت مو ولوستلو چې امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائى چې په دې خبره دټول اهل اسلام اجماع اواتفاق دى چې داايت كريمه د لمانځه په باره كې نازل شوى دى، اوددې اجماع رانقلونكي څه معمولي سړى نه دى، بلكې د اهل سنتو امام دى دمسلمانانو پيشوا دى، لوى مجتهد او دامام بخارى رَحِمَهُ ٱللَّهُ په شان محدثينو استاذ دى .

ددې وزني دلايلو څخه وروسته كه څوك وائي چې داايت كريمه د خطبې په باره كې نازل شوى دى يا دكفارو اود مشركانو په باره كې نازل شوى دى، نوتاسو پوه شى چې هغه دتعصب په اغزي لرونكې كنده كې غورزيدلى دى، اود ( غُلُو ) په بې پايانه صحرا كې ورك او حيران دى، اودحق لمن يې دلاسونو څخه وتلې ده .

## د لامذهبو يو خندونكى حركت

دغيرمقلدينو يو شرميدلي خوي او عادت دا دى چې په هرځاى كې د دوي دمطلب سره موافقه خبره ورته پيداشي برابره خبره ده چې هغه هر څو مرُه ضعيفه اوكمزورې وي، هر څو مره بيهوده اوبيكاره وي،

هر څومره چې وهمي او خيالي وي، هغه د خپلې سينې پورې نښلوي، د خپلې غاړې هار ترينه جوړوي، او مضبوطې منګولې وربانديې لګوي.

ليکن کومه خبره چې د دوي د مذهب او د رائي څخه مخالفه وي، هغه شاته غورزوي، اعراض ترينه کوي، بې ځايه تاويلات په کې کوي، ضعيفه او بيهوده توجيهات ورته جوړوي، اګر که هغه د صحابه کرامو رضوان الله تعالى عليهم، تابعينو عظامو او تبع تابعينو رحمهم الله څخه ثابته وي، دوي د حقايقو څخه ستر ګې پټوي، واقعيت شاته غورزوي، د صحيحو احاديثو څخه چشم پوشي کوي، د ضعيفو احاديثو څخه استدلال کوي.

د غير مقلدينو دا شرميدلې خوي د دينه ښه واضحه کيږي چې د دې ايت کريمه په باره کې صحابه کرام رضى الله عنهم فرمايي چې د دې شان نزول لمونځ دى، تابعين عظام رحمهم الله فرمايي چې: د دې ايت کريمه شان نزول لمونځ دى، امام احمد بن حنبل د ټولو سلفو او خلفو اجماع رانقلوي چې د دې ايت کريمه شان نزول لمونځ دى، ليکن غير مقلدين دا ټول شاته غورزوي، د ټولو څخه ستر ګې پټوي او د دې په مقابل کې يو ضعيف او مرجوح تفسير د سينو سره نښلوي، د غاړې هار ترې جوړه وي، په ستر ګوئي لګوي، او ساده مسلمانان وربانديې غلطوي، او هغه مرجوح تفسير دا دى چې دا ايت کريمه د کفارو او د مشرکينو په باره کې نازل شوى دى، کفارو او مشرکينو ته په کې حکم شوى دى چې هغوي قران کريم په پوره توجه سره واوري شور او غال مغال ونکړي.

حالانکه دا تفسير نهايت مرجوح او ضعيفه دى، بلکې غلط او باطل دى، ليکن ظاهرًا د دوي د مطلب سره موافق دى، له دې وجهې څخه يې قبول کړى دى، او د جمهورو سلفو او خلفو صحيح تفسير چونکه د دوي د مطلب څخه مخالف دى، نو له دى وجهې ورپورې ټوقې او مسخرې کوي. (نعوذبالله من ذلک)

دې ته وائي مطلب پرستي، خودغرضي، او د تعصب په سمندر کې غوټې وهل. د غير مقلدينو دا خبره چې دا ايت کريمه د کفارو او د مشرکانو په باره کې نازل شوى دى، غلطه او باطله ده ځکه چې.

(۱) - مخکې ظاهره شوه چې احاديث صحيحه، دامت اجماع، اود مفسرينو تصريحات ټول په دې گواه دي چې د دې ايت کريمه شان نزول لمونځ دی، د دې ټولو باوجود د اخبره کول چې د اايت کريمه د کفارو او د مشرکانو په باره کې نازل شوی دی تفسير بالرای، بدعت سيئه، او د ايت کريمه د حقيقت څخه د انکار سره مترادف دی.

الله ﷻ دې خپل بندگان د دومره ناروا زړه ورتيا او غلط حرکت څخه محفوظ کړي.

(۲) - که په طريقې د فرض المحال د دې آيت نزول د کافرانو په باره کې شي، نو تر کافرانو پورې بې منحصرول غلط دي، ځکه چې په قران کريم کې هيڅ داسې حکم نشته چې د هغې تعميل صرف په کافرانو باندې واجب وي او په مسلمانانو باندې په هغې عمل کول ممنوع او حرام وي.

(۳) - که غير مقلدين خپل د دې سرچپه منطق ته صحيح وائي نو بيا د هغې عمومي احکامو په باره کې څه وائي چې ظاهرًا د کافرانو او مشرکانو په باره کې نازل شوی دی. مثلًا په يو ځای کې الله ﷻ فرمائي چې: قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَلَا تَقْتُلُوْا اَوْلَادَكُمْ مِّنْ اِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ وَلَاتَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَاظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَاتَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ) [پاره ۸].

ترجمه: و وايه ای محمده! دوی ته چې راشئ! چې زه ولولم هغه چې حرام کړي دي رب ستاسې پر تاسې باندې، چې شريکان مه نيسئ تاسې له د غه الله ﷻ سره هيڅ شی. او نيکي کوئ تاسې له مور او پلار سره په نيکې کولو سره، او مه وژنې تاسې اولاد خپل له ويرې د فقر او خوارۍ نه، مونږ رزق درکوو تاسو ته، او همدوی ته او مه نيږدې کيږی. ناروا کارونو ته، هغه چې ښکاره وي له دې بدو کارونو څخه او هغه چې پټ وي، او مه وژنئ تاسې نفس، هغه نفس چې حرام کړې دي الله ﷻ وژل يې مگر وژنې يې په حقه سره، دا (څلور نهی او پنځه امر) حکم کړی دی الله ﷻ تاسې ته په دې سره لپاره د دې چې عقل وچلوئ په کې تاسې.

نو ايا د غير مقلدينو د منطق موافق دا ويل صحيح دي چې د دې احکامو مخاطبين صرف کافران او مشرکان دي؟ د کافرانو او مشرکينو لپاره شرک کول، د والدينو نافرماني کول، د اولاد قتلول،

فحاشي ته نژدې کيدل حرام او ګناه ده، او د مسلمانانو لپاره دا کارونه جايز او مستحسن دي، مومنان دې شرک او قتل وغيره کارونه کوي؟

(۴) که په طريقې د فرض المحال دا خبره ومنو چې مذکوره ايت کريمه د کافرانو او د مشرکانو په باره کې نازل شوې دی، نو ايا دا ويل صحيح دي چې کافران او مشرکان د قران کريم د تلاوت په وخت کې د شور او د غال مغال څخه منع دي، ليکن مسلمانانو ته جايز دي چې د قران کريم د تلاوت په وخت کې شور او غال مغال وکړي؟

(۵) که په طريقې د فرض المحال ومنو چې د دې ايت کريمه شان نزول کافران او مشرکان دي، خو بيا هم د ټول امت په دې اتفاق دی چې د کوم ايت سبب د نزول اګرچې خاص وي ليکن حکم به يې عام وي. لکه څرنګه به چې خلکو د رسول الله ﷺ متبنی حضرت زيد ﷺ ته زيد بن محمد ويلې، نو الله ﷻ دا ايت شريف نازل کړو چې (مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ) الاية. لکن د دې حکم عام دی هر بچی به خپل حقيقي پلار ته منسوبيږي.

نو ايا غير مقلدين د دې ايت هم دا مطلب بيانوي چې صرف حضرت زيد بن ثابت ﷺ رسول الله ﷺ ته په ولديت مه منسوبوئ او نور متبنی ګان منسوبوئ يا نورو افرادو ته د رسول الله ﷺ ولد ويل جايز دي؟

امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې: کله د آيت شان نزول بل شی وي لکن د احکامو دارومدار په الفاظو باندې دی. [کتاب الأم / ج ۵ / ص ۲۴۱]. ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې: د قرآن کريم عمومي احکام تر اسبابو د نزول پورې مقيد کول باطل دي. [الصارم المسلول / ص ۵].

ابن کثير رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې: اعتبار عموم د لفظ لره نه وي، نه خصوص د سبب لره وي. [تفسير ابن کثير / ج ۲ / ص ۹].

ابن قيم رَحِمَهُ ٱللَّهُ ليکي چې: د کومو اسبابو له وجهې چې عبادات مشروع شوي د هغې دوام نه دی ضروري. لکه څرنګه چې په طواف کې د رَمل او په صفا او مروه کې د سعيې سبب د مشرکانو اعتراض و

لکن سره ددې چې اوس هلته مشرکان نه شته، خو بيا هم دا حُکم تر قيامته پورې باقي دی. [بدايع الفوايد /ج ۳/ص ۱۶۱].

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ فرمايلي دي چې: اعتبار عموم د لفظ ته وي، نه خصوص د سبب ته. [فتح الباری /ج ۸/ص ۱۴۱]. علامه سيوطی رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ فرمايي چې: اعتبار عموم د لفظ لره وي، نه خصوص د سبب ته. [اتقان/ج ۱/ص ۷۴]. قاضي شوکانی هم همدا ليکلي دي. [نيل الاوطار /ج ۲/ص ۱۲۹].

نواب صديق حسن خان ليکي چې: خصوص د سبب ته هيڅ اعتبار نه وي. [دليل الطالب /ص ۴۱۳ /بدور الاهله /ص ۲۰۹].

**فان قيل:** چې دا خبره لوی امام علامه امام رازي رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ کړې ده چې: دا آيت د کفارو په باره کې نازل شوی دی.

**قلنا:** امام رازي په منطق او فلسفه کې امام دی، لکن په نقلياتو کې سخت کمزوری دی، له دې وجهې دده په تفسير کې ټول رطب او يابس راجمع دي. [لسان الميزان/ج ۴/ص ۴۲۶].

امام سيوطي رَحِمَهُ‌ٱللَّهُ فرمايي چې: د امام رازي په تفسير کې نور هر څه شته ما سوا له تفسير څخه. [درمنثور /ج ۳/ص ۱۵۵].

نواب صديق حسن خان ليکي چې: مؤلف وی در علوم کلام و فنون رسميه امام اهل زمان بعضی از اهل معرفت بعلوم کتاب و سنت گفته اند. فيه کل شئ الا التفسير. [اکسير /ص ۱۰۴]. په بل ځای کې ليکي چې: رازی از علم حديث خبر ندارد. [اکسير /ص ۱۱۳].

**فان قيل:** چې بيا يې د سياق او د سباق سره څه ربط دی؟

**قلنا:** د مؤمنانو درې مرتبې دي.

**اول:** د عين اليقين والا مرتبه. دوی ته (اصحاب البصيرت) وايي، چې توحيد او معرفت ورته مشاهد دي.

**دوهم:** د علم اليقين والا مرتبه. چې دی حقايقو ته ځان په استدلال باندې رسوي. دوی هاديان او مهتديان دي.

**دريم :** د حق اليقين والا مرتبه ده. چې نه ورته اوله مرتبه حاصله ده او نه دوهمه. يوازې د الله جل جلاله احکامو ته يې سر ټيټ کړی دی، دا عام مؤمنان دي چې د رحمت اميدوار دي. نو په مخکې آيت کې په ( هَذا بَصَائِرُ ) کې د لومړنۍ طبقې او په (هُدی ) کې د دوهمې طبقې فضيلت او په ( وَرَحْمَةٌ ) کې د دريمې طبقې فضيلت ذکر شوی دی. او په ( لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ) کې يې درې واړو ته د مومن لقب ورکړی دی. او په وروسته آيت کې مؤمنانو ته امر کوي چې د قرآن کريم د قرائت په وخت کې چُپ شئ او غوږ ورته کېږدئ! نو د مخکني آيت خاتمه په مؤمنانو ده او د وروستني آيت ابتداء په خطاب باندې ده، مؤمنانو ته؛ همدارنګه په مخکې آيت کې د دريو طبقو فضيلت وو او په وروسته آيت کې د بصيرت، هدايت، او رحمت د سرچشمې قرآن ذکر دی. همدارنګه په مخکې آيت کې د رحمت ذکر دی او په وروسته آيت کې په ( لعلکم تُرحمون ) سره مستحقين د رحمت ذکر کوي. او وروسته په ( واذکر ربک فی نفسک ) کې د مؤمنانو د سردار سره خطاب دی، نو ددې څخه بل غټ ربط کوم دی ؟

**فان قيل:** چې امام رازي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: که دا خطاب مؤمنانو ته وي نو بيا د (لعل) لفظ ورسره نه لګيږي، ځکه چې (لعل) د ترجی له پاره راځي. او مؤمنان په هر حال کې د رحمت خداوندي مستحق دي.

**قُلنا :** لفظ د (لعل) د الله جل جلاله په جانب کې په معنا د وجوب مستعمليږي. [ مدارک/ج ١/ ص ٧٥ / کشاف/ج ١/ص ٩٢ / بيان القرآن/ج ١/ص ١٠ / ].

په قرآن کريم کې په بې شمېره ځايونو کې مؤمنانو ته د (لعلکم تُرحمون) او د (لعلکم تفلحون) الفاظ مستعمل شوي دي (يا ايهاالذين كتب عليكم الصيام كما كتب على الذين من قبلكم لعلكم تتقون وتوبوا الى الله جميعا ايها المؤمنون لعلكم تفلحون) همدارنګه مؤمنانو ته هم رحمت په طريقې د لزوم او وجوب نه دی، بلکې فضل الهي دی.

همدارنګه که څوک ووائي چې دا د خطبې په باره کې نازل شوی دی نو دا ایت خو مکي دی نو ایا په مکه مکرمه کې د جمعې لمونځ فرض وو؟

## د لامذهبو د اعتراضونو څخه جوابونه

**اول اعتراض:** لا مذهبه عبدالرحمن مبارکپوري لیکي چې علامه زیلعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نصب الرایة ج ۲ صفحه ۱۴ کي د بیهقي په حواله باندې د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ دا قول رانقل کړې دی چې پدې باندې اجماع ده چې دا آیت کریمه د لمانځه په باره کي نازل شوی دی، حالانکه دا خبره صحیح نه ده ځکه چې ما د بیهقي معرفت السنن والاثار اوکتاب القراءة مطالعه کړل او دا قول مې پکې پیدا نکړو. (تحقیق الکلام ص۶۰ ج ۲، تحفة الاحوذي ج ۱ ص۲۰۹)

**اول جواب** :علامه زیلعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نقل کې ډیر محتاط او ثقه دی. (الفوائد البهیه ص ۲۲۸) او بیا یې د امام بهیقي د کوم خاص کتاب نوم نه دی اخستی. امام بهیقي رَحِمَهُ اللّٰهُ کثیر التصانیف دی نو مباکپوري د دوو کتابونو د کتلو څخه وروسته څرنګه د عدم وجود اعتراض کوي؟

**دوم جواب** : نواب صدیق حسن خان د جمهورو سره پدې خبره اتفاق کړی دی چې (وعدم علم او علم بعدم نیست ) ( بدورالاهله ص ۳۷۹ )

مبارکپوري پخپله په یو ځائ کې لیکي چې عدم نقل عدم وقوع لره مستلزم نه دی. (تحقیق الکلام ج ۲ ص۱۳)

بعضې امامانو د حدیث د قلتین د تصحیح نسبت امام طحاوي رَحِمَهُ اللّٰهُ ته کړی دی، نو مولانا شوق نیموي رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي دي. چې ما په شرح معاني الا ثار کې دا تصحیح پیدا نکړه نو مبارکپوري هلته په نیموي رَحِمَهُ اللّٰهُ باندې اعتراض کوي چې د تصحیح دَ نسبت کونکو د امام طحاوي رَحِمَهُ اللّٰهُ د کوم خاص کتاب نوم نه دي اخستی لهذا نیموي رَحِمَهُ اللّٰهُ ته پکار دي چې د امام طحاوي رَحِمَهُ اللّٰهُ نور کتابونه وګوري. نو مبارکپوري چې نیموي رَحِمَهُ اللّٰهُ ته دا مشوره ورکوي نو د خپل ځان په باره کې ئي ولې هیروي؟

**دريم جواب:** يو اځې علامه زيلعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د دې قول ناقل نه دی. بلکه دا قول علامه موفق الدين ابن قدامه الحنبلي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په المغني ج ۱ ص۔ ۶۰۵ کې علامه شمس الدين ابن قدامه رَحِمَهُ ٱللَّهُ په شرح مقنع للكبير ج ۲ ص۔۱۳ کې او حافظ ابن الهمام په فتح القدير ج ۱ ص۔ ۲۴۱ کې او ملا علي القاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ په شرح نقايه ج۱ ص۔۸۳ کې او ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ په خپله فتاوي ج ۲ ص۔۱۲۸ و ص۔۱۶۸ او په تنوع العبادات ص۔۸۶ کي هم د امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ دا قول را نقل کړی دی، مبارکپوري دی دا کتابونه مطالعه کړي چې د علامه زيلعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د قول صداقت ورته معلوم شي.

**څلورم جواب:** د مبارکپوري هم مسلک عالم لا مذهبه عبدالصمد پشاوري ليکي چې: و الاصح کونها فی الصلوة لما روی البهيقي عن الامام احمد قال اجمعوا على انها فی الصلوة ( اعلام الاعلام في قراءة خلف الامام ص۔۱۹۰ ) صحيح دا ده چې دا آيت کريمه د مانځه په باره کي نازل شوی دی ، ځکه چې بيهقي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه نقل کړی دی چې پدې باندې اجماع ده چې دا آيت کريمه د مانځه په باره کې نازل شوی دی دا کتاب د نواب صديق حسن خان د کتاب لقطة العجلان سره ضميمه دی او دواړه يو ځائ چاپ شوي دي.

**دوهم اعتراض :** دا آيت مکي دی، نو دا آيت په فاقرءو ما تيسر من القران مدني آيت باندي منسوخ دی او د (فاقرؤا ماتيسر) د مدني والي دلائيل يي دا دي :

۱) چې په دې آيت کې د جهاد او د قتال حکم دی او جهاد په مدينه کې فرض شو. [قيام الليل ص۔۲]

۲ ) همدارنګه امام سيوطي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې سورة مزمل نور ټول مکي دی إلاهذه الاية فاقرءوا ماتيسر من القران، الاتقان ج ۱ ص۔۱۳ ].

۳) همدارنګه په دې آيت کې د زکات حکم هم دی او زکوة په مدينه منوره کې فرض شوی دی.

**الجواب :** د فاقرأو ما تيسرمن القران آيت هم مكي دى، او پدې آيت كې د قتال حكم نه دى ذكرشوى بلكه دا سې پكې راغلي دي چې: (علم ان سيكون منكم مرضى و اخرون يضربون فى الارض) نو سين د استقبال ئي راوړى دى نو په استقبال كې يې د قتال او د جهاد زيرى وركړى دى، فتح الباري ج۱ صـ۳۹۳ ]

همدارنګه سيوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ لكه څرنګه چې ورته په اول كې مدني ويلي دي ، ليكن وروسې يې په پوره زور سره د دې ترديد كړى دى، او ليكلي يې دي چې څوك چې دې آيت ته مدني وائي هغوي د غلط نهمۍ ښكار دي . همدارنګه زكات په مكه كې فرض شو ، او د مقدار تعين او د وصولولو ترتيب يې په مدينه كې جوړ شو. تفسير ابن كثير ج ۴ صـ ۴۳۹ ځكه چې سورة المؤمنون سورة حم السجده سورة لقمان وغيره سورتونه مكي دي او د زكوة حكم پكې موجود دى.

**دريم اعتراض:** مباركپوري ليكي چې كه ومنو چې دا آيت د فاقروا ما تيسر له وجهې منسوخ نه دى ليكن د نسخ احتمال خو يې شته واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال؟

**الجواب :** ۱) د نسخ مسئله ډيره غټه مسئله ده په نفس احتمالا تو باندې نه ثابتيږي ، بلكه د نسخ د اثبات لپاره د قطعيو او محكمو د لائلو ضرورت دى.

۲) دا احتمال د مباركپوري څخه مخكې په څه د پاسه ديارلس سوه كلنه دوره د اسلام كې بل چا نه دى ذكر كړي، نو كه دا احتمال په څه دليل باندې بناء وى نو په هندوستان باندې د انګريزانو د دورې څخه كوم مخكني عالم به ذكر كړى وو .

۳) خپله مباركپوري ليكي چې د فاقروا ما تيسرمن القران څخه د قراءت فرضيت نه ثابتيږي تحفة الاحوذي ج ۱ صـ ۲۰۷ نو د هر مقتدي لپاره ترينه د قراءت وجوب څرنګه ثابت شو ؟

۴) خپله مبارکپوري ليکلي دي چې سورة مزمل مخکې نازل شوی دی، او دا إذا قرئ القران آيت وروسته نازل شوی دی. تحقيق الکلام ج ۲ صـ۲۹ نو په مخکې آيت باندې به وروستني آيت څرنګه منسوخ شي؟

۵) د لامذهبو سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چې: دروي يک يا دو آيت منسوخ است باقي همه محکم. اول خذ العفو و أمر بالعرف، دوم وأعرض عن الجاهلين افادة الشيوخ صـ۶۰ نو محکم آيت څرنګه منسوخ شو؟

**څلورم اعتراض:** لامذهبان وائي چې د احنافو په نيز د دې دواړو آيتونو په مينځ کي تعارض دی لکه ملاجيون رَحِمَهُ ٱللَّهُ او صاحب د تلويح رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې ليکلي دي، نو د دې تعارض سره به څرنګه ترينه استدلال صحيح شي؟

**الجواب:** زمونږ خبره په اشخاصو باندې نه ده بنأ بلکه په دلايلو باندې بنأ ده، او د دلائلو په اعتبار په دې دواړو آيتونو کې هيڅ تعارض نشته. ځکه چې حافظ ابن حجر رَحِمَهُ ٱللَّهُ د دوؤ حکمونو د تعارض لپاره څلور شرطونه ليکلي دي.

- ❖ **اول شرط** دا دی چې د دې دواړو حکمونو محل به يو وي.
- ❖ **دوهم شرط** دا دی چې د دواړو حکمونو تقدم او تأخر به نه وي معلوم.
- ❖ **دريم شرط** دا چې يو ته به په بل باندې ترجيح نه وي حاصله.
- ❖ **څلورم شرط** دا چې د دواړو په مينځ کې به تطبيق هم ممکن نه وي شرح نخبة الفکر صـ۴۷ او په دې دواړو آيتونو کې د تعارض دا يو شرط هم نشته.

۱) د دواړو آيتونو محل جدا جدا دی، د اذا قرئ القران ايت د فرضي مونځ په باره کې نازل شوی دی او دفاقرءو ما تيسر من القران آيت د تهجد و د مونځ په باره کې نازل شوی دی په ابوداود ج۱صـ۱۹۲ په عون المعبود ج۱صـ۵۰۳ وغيره کې په دې باندې تصريح شوې ده امام بيهقي ليکي چې و هذا مشهور

نهاية ابن اهل العلم، كتاب القرءت صـ۱۵۳ حافظ ابن قيم ليكي چې دا آيت د تهجد و د مونځ په باره کې نازل شوی دی. اعلام الموقعين ج۲ صـ۳۷۸ خطيب شربيني رَحِمَهُ اللهُ ليكي چې ددې آيت كريمه شان نزول د تهجد و مونځ دی. السراج المنير ج ۴ صـ۲۴۸ علامه ابو السعود ليكي چې دا آيت د تهجد و د مونځ په باره کې نازل شوی دی، تفسير ابو السعود بر كبير ج ۸ صـ ۴۸۰ مباركپوري هم د روح المعاني نه هم دا مضمون را نقل كړی دی، تحفة الاحوذي ج ۱ صـ ۲۰۷].

۲) تقدم او تاخريي هم معلوم دی، خپله مباركپوري ليكي چې سورة مزمل مخكې او سورة الاعراف وروسته نازل شوی دی. تحقيق الكلام ج۲ صـ۲۹].

۳) بالفرض كه د دواړو آيتونو محل يو شي او تقدم او تأخريي معلوم نه شي نو بيا هم اذا قرئ القران ته ترجيح وركول پكار دی ځكه چې په صحيحو رواياتو كې د صحابو، او د جمهورو سلفو، او د خلفو نه دا ثابته ده چې په واذا قرئ القران الخ كې مقتدي د قراءت خلف الامام نه منع شوی دی.

۴) همدارنګه د دواړو آيتونو په مينځ كې تطبيق هم آسان دی هغه دا چې د واذا قرئ القران آيت د مقتدي په باره كې دی چې فرض مونځ په جماعت باندې كوي، او د فاقرءوا ما تيسر من القران آيت د تهجد و د مونځ په باره كې دی چې يو اځي ادا كيږي.

او يا دا چې په إذا قرئ القران كې سورة فاتحه مراد ده، او په فاقرءو ما تيسر من القران كې ما زاد علي الفاتحه مراد ده، لكه څرنګه چې د عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په صحيح سند باندې مروي دی، چې د فاقرؤو ما تيسر نه ما زاد على الفاتحه مراد ده. كتاب القراءت صـ٦ و صـ۱۵۳ و صـ۱۵۴ او چونكه ما زاد على الفاتحه مقتدي نه شي لوستلی، لهذا دا به د منفرد په حق كې وي، او يا د واذا قرئ القران حكم د مقتدي لپاره دی او د فاقرءوا ما تيسر حكم د امام لپاره دی، نو چې كله د جمع او د تطبيق دا صورتونه شته نو د تعارض دعوه باطله ده.

**پنځم اعتراض:** مبارکپوري ليکي چې کوم خلک چې دا آيت د قرأت خلف الامام د منسوخوالي لپاره پيش کوي هغوي دې اول دا ثابته کړي چې دا آيت د پنځو مونځونو د فرض والي څخه وروسته نازل شوی دی. تحقيق الکلام ج ۲ ص ۲۵

**جواب:** د قرأت خلف الامام د ممانعت، او د افتراض د صلواتو خمسو په مينځ کې کوم تلازم دی؟ عقلي دی او که عرفي دی او که عادي دی؟ آيا د قرأت خلف الامام څخه ممانعت صرف په دې صورت کې متصور دی چې پنځه مونځونه فرض شي؟ او آيا د پنځو مونځونو څخه په کمو کې دا متصور نه دی؟

**شپږم اعتراض:** مبارکپوري ليکي چې دا آيت مکي دی، او د قرأت خلف الامام حکم په مدينه منوره کې راغلی دی، نو په مکي مقدم آيت باندې د متأخر مدني حکم په خلاف استدلال صحيح نه دی او په مدينه کې د قرأت خلف الامام په جواز باندې دا دلائل دي.

۱) د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دی چې څوک چې د امام پسې الحمد لله ونه لولي د هغه مونځ نه کيږي، موطا امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ص ۲۹].

۲) د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې يو ځلې رسول صلي الله عليه وسلم صحابه وو ته مونځ ورکړو، کله چې د مانځه څخه فارغ شو نو وې فرمائل، چې په تاسو کې چا زما پسې قرأت کړی دی؟ د دې حديث په آخر کې دي چې د امام پسې د سورة فاتحه څخه بغير بل هيڅ شئ مه لولئ. کتاب القرأت ص ۵۱

او حافظ ابن جحر په دې اجماع را نقل کړې ده چې ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ۷ هـ کې مسلمان شوی دی تلخيص الخبير ص ۱۱۴].

۳) همدا رنګه حضرت عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مدني هم د قرأة خلف الامام ذکر کړی دی، تحقيق الکلام ج ۲ ص ۲۸].

**جواب**: دا اعتراض بالکل باطل دی. د قرآن کریم د آیت د منسوخوالي لپاره د محکم او قطعي دلیل ضرورت دی، په خبر واحد باندې د قران د آیت منسوخول داسې دي لکه په شیشه باندې چې تیګه مانوې، مولانا عبدالحی رَحِمَهُ اللهُ د احنافو ظابطه بیانوي او لیکي چې: (ان تخصیص العام بخبر الاحاد غیر جائز) غیث الغمام ۲۷۵ د لامذهبانو سرګروه نواب صدیق حسن خان لیکي چې ناسخ مثل منسوخ باشد در قوت بلکه اقوی ازان چه در صورت ضعف مزیل قوي نه تواند شد واین حکم عقل است و اجماع بر آن دلالت کرده چه صحابه نص قرآن را به خبر واحد منسوخ نه کرده اند. (افادة الشیوخ بمقدار الناسخ والمنسوخ ص۵).

۲) حافظ ابن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لیکي چې د متاخر الاسلام صحابي روایت د متقدم الاسلام د صحابي د روایت لپاره صرف د تقدم او د تأخر په بنا باندې ناسخ نه شي کیدلی. شرح نخبة الفکر ص۴۷ نو د قرآني آیت لپاره څرنګه ناسخ شو؟

۳) د حضرت ابو موسي اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عبد الله بن بجینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه چې منع د قرأت خلف الامام روایت شوی ده آیا دا مدني نه دي؟ بلکه خپله د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه هم منع د قرأت خلف الامام مروي ده.

۴) د عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه د خلف الامام د قید سره هیڅ صحیح حدیث نه دی روایت شوی وروسته به یې تحقیق راشي ان شاء الله او په موطا ص۲۹ کې د ابوهریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه هیڅ داسې حدیث نه دی روایت شوی چې د هغې مفهوم دا وي چې که مقتدي فاتحه ونه لولي د هغه مونځ باطل دی د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوع حدیث چې د (خداج) لفظ پکې دی او د ابو هریرة دا قول چې اقرء بها في نفسک یا فارسي ددې معنی هم بطلان الصلوة نه ده، د دې تحقیق وروسته راروان دی ان شاء الله.

۵) که استدلال یوائې د احتمالاتو نوم وي، نو بیا د دې احتمال هم شته دی چې حضرت عبادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بیعت عقبه اولی او یا عقبه ثانیه کې دا حکم اوریدلی وي. او د اذا قرء القرآن آیت دی په مدینه

کې نازل شوی وي لکه څرنګه چې حافظ ابن کثیر په ج ۴ صـ ۲۵۴ همدارنګه نواب صدیق حسن خان په خپل تفسیر فتح البیان ج ۳ صـ ۳۹۳ کې لیکلي دي چې سورة اعراف مدني دی، ځکه چې په دې سورت کې د موسی علیه السلام او د یهودو ذکر په تفصیل سره شوی دی او د یهودو مرکز مدینه منوره وه، کیدلی شي چې دا ایت دوه ځلې نازل شوی وي یو ځلې په مکه کې او بیا په مدینه کې لکه دا اما مجاهد په روایت کې چې د دې شان نزول دا سې ذکر شوي دي چې قال کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یقرأ فی الصلوة فسمع قراءة فتی من الانصار فنزل واذا قرء القرآن فاستمعوا له وانصتوا (کتاب القراءة للبیهقی رقم ۲۱۶، او انصار په مدینه منوره کې اوسیدل.

**اووم اعتراض :** لا مذهبان د بهیقي څخه دا اعتراض را نقل کوي چې د واذا قرء القران...الخ شان نزول دا دی چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به د اقتداء په حالت کې په اوچت آواز باندې تکلم او خبرې کولې نو د دوي په باره کې الله پاک دا آیت نازل کړو. او د دې ثبوت دا دی چې:

۱) محمد بن دینار رَحِمَهُ اللهُ په خپل سند باندې د ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت کوي چې صحابه کرامو به په مانځه کې خبرې کولې نو الله پاک دا آیت نازل کړو.

۲) مؤمل بن اسماعیل رَحِمَهُ اللهُ هم ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه همدا مضمون نقل کړی دی.

۳) عبد الله بن عامر رَحِمَهُ اللهُ هم د ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت کړی دی چې صحابه ؤو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به په اوچت آواز باندې خبرې کولې نو الله پاک دا آیت نازل کړو.

۴) عاصم بن عمر رَحِمَهُ اللهُ د عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت کوي چې صحابه ؤو به په مانځه کې خبرې کولې نو الله پاک دا آیت نازل کړو.

نو دا آیت د قرأت څخه د ممانعت په باره کې نه دی، بلکه د تکلم فی الصلوة او د رفع الصوت څخه ممانعت دی. کتاب القرأت صـ ۷۷]

(۱)**الجواب :** ۱) مخکې صحیح روایات او آثار او اقوال بیان شو چې د ددې آیت شان نزول په مانځه کې د قرأت خلف الامام څخه ممانعت دی.

(۲) جواب: دوي چې په اعتراض کې کوم آثار لیکلي دي هغه ټول ضعیف دي. په اول روایت کې یو راوي محمد بن دینار رَحِمَهُ اللَّهُ دی چې امام ابن معین رَحِمَهُ اللَّهُ، دار قطني رَحِمَهُ اللَّهُ، او نسائي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته ضعیف ویلي دي عقیلي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې د ده په حدیث کې اوهام دي، او ابوداود رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې د ده حافظه په اخیره کې متغیره شوې وه، تهذیب التهذیب ج ۹ صـ ۱۵۵ دوهم راوي پکې ابراهیم هجري دی چې امام ابـن معـین رَحِمَهُ اللَّهُ، نسـائي رَحِمَهُ اللَّهُ، ابوذرعـه رَحِمَهُ اللَّهُ، ترمـذي رَحِمَهُ اللَّهُ احمـد رَحِمَهُ اللَّهُ، حربي رَحِمَهُ اللَّهُ، سعدي رَحِمَهُ اللَّهُ او ابو حاتم رَحِمَهُ اللَّهُ ټولو ورته ضعیف ویلي دي. امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ او ابو حاتم ورتـه منکر الحدیث ویلي دي. ابـن عـدي رَحِمَهُ اللَّهُ ورتـه غیر قابل د احتجاج ویلي دي. او علي بن الحسین رَحِمَهُ اللَّهُ ورته متروک ویلي دي میزان ج ۱ صـ ۳۱ تهذیب التهذیب ج ۹ صـ ۱٦۵].

۳) په دوهم روایت کـي مؤمـل بن اسماعیل رَحِمَهُ اللَّهُ دی، امام بخـاري رَحِمَهُ اللَّهُ ورتـه منکر الحدیث ویلي دي، او علامه ذهبي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ چې چاته منکر الحدیث ووائي نو د هغو د حدیث روایت کول نه دي جائز. میزان ۱ صـ ۵، ابو حاتم رَحِمَهُ اللَّهُ ورتـه کثیر الخطاء ویلي دي، ابن حبان رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې دَ ده په حدیثونو کـي خطاګانې ډیرې دي، یعقـوب بن سفیان رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې اهل علمو ته د ده د روایت څخه اجتناب پکار دی، ځکه چې دا منکر روایات بیانوي، ساجي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته کثیر الخطاء ویلي دي دار قطني رَحِمَهُ اللَّهُ او ابن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ ورته کثیر الخطاء او کثیر الغلط ویلي دي، ابن قانع ترینه په یخطی سره تعبیر کوي، محمد بن نصر المروزي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته سیئ الحفظ او کثیر الخطاء ویلي دي، ابوذرعـه رَحِمَهُ اللَّهُ وائي چې دی کثیر الخطاء وو. میزان الاعتدال ج ۳ صـ ۲۲۱ تهذیب التهذیب ج ۱۰ صـ ۳۸۰].

۴) په دریم سند کې عبد الله بن عـامر دی. امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ، ابوذرعـه رَحِمَهُ اللَّهُ، نسـائي رَحِمَهُ اللَّهُ، ابو عاصم رَحِمَهُ اللَّهُ، ابو داود رَحِمَهُ اللَّهُ، دار قطني رَحِمَهُ اللَّهُ، محدث سعدي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته ضعیف ویلي دي.

امـام ابـن معـين ورتـه لـيس بشـئ ويلـي دي ، او ابـو احمـد الحـاكم ورتـه لـيس بـالقوي ويلـي دي. ابن مديني رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته دوه ځله (ضعيف ضعيف) ويلي دي. ابو حاتم رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته متروک ويلي دي امام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې محدثين د ده د حافظې څخه شکايت کوي ميزان ج ٢ صـ ٥١ ولسان ج ٣ صـ ٣٠٣ تهذيب ج ٥ صـ ٢٧٥].

٥) پـه څلـورم سـند کـې عاصـم بـن عمـر دی چـې امـام احمـد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، ابـن معـين رَحِمَهُ ٱللَّهُ او جوزقاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته ضعيف ويلي دي. امام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته منکر الحديث او ترمذي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته متروک ويلي دي، ميزان ج ٢ صـ ٤ تهذيب التهذيب ج ٥ صـ ٥١ دا هغه آثار وو چې امام بهيقي پرې، ده اعتراض بلډينګ درولی وو.

**دريم جواب** : امام بهيقي رَحِمَهُ ٱللَّهُ دا غلطي هم کړې ده چې په دې ضعيفو آثارو کې يې د تکلم في الصلوة څخه صرف عام انساني تکلم مراد کړی دی ، حالانکه د تکلم مفهوم عام دی. قراءة القران، تسبيح ، تهليل ، تحميد ، تکبير او ټولو دعاګانو ته شامل دی. نو د نهی عن التکلم في الصلوة څخه نهي د قراءت د سورة فاتحه پخپله راځي. ځکه چې په نفې د عام نفې د خاص راځي. د تکلـم ماده کلام او کلمه ده او په قرآن کريم کې په ډيرو ځايونو کې د قرآن کريم آيتونو ته کلام الله ، کلمات ربي ،او کلمات ربک ، استعمال شوي دي.

٦) په صحيح روايت باندې ثابته ده چې د عام تکلم فی الصلوة څخه ممانعت د (قوموا لِلّٰه قـانتين) په وجه راغلی دی ،کما فی البخاري ج١ صـ ١٦٠ ومسلم ج١ صـ ٢٠٤ او د اذا قرء القرآن شان نزول خاص قراءة خلف الامام دی.

٧) د عام تکلم في الصلوة څخه نهي په مکه مکرمه کې راغلې ده، او که په مدينه منوره کې ؟ نو حافظ ابن القيم زاد المعاد ج ٢ صـ ٦١ همدارنګه حافظ ابن کثير البداية والنهاية ج ٣ صـ ٩٢ قاضي ابو الطيب الطبري بذل المجهود ج ٢ صـ ٩٥ د دې دعوه کوي چې دا ممانعت په مکه مکرمه کې راغلې دی. او په دليل کې د عبد الله بن مسعود رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمَا حديث پيش کوي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمَا

چې د حبشې څخه راغلو نو په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندې يې د مانځه په حالت کې سلام واچولو، ليکن د سلام جواب رانغلو، ځکه نهی عن التکلم فی الصلوة نازل شوې وه. ليکن حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ليکي چې د قوموا لله قانتين له وجهې نهې عن التکلم راغلې ده، او دا آيت مدني دی، نو معلومه دا ده چې نهې عن التکلم فی الصلوة په مدينه کې راغلې ده. فتح الباري ج۳ صـ ۵۹۰ او د اذا قرئ القرآن آيت مکي دی.

**اتم اعتراض**: زما ديو لامذهبه سره مناظره وه هغه ماته وويل چې ته تر قيامته پورې هم دا نه شې ثابتولی چې په مکه مکرمه کې د جماعت مونځ وو، نو چې په مکه کې په جماعت باندې مونځ نه وو او دا آيت مکي دی نو څرنګه د قرأت خلف الامام څخه پکې منع راغله؟

**الجواب**: امام نووي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې د جماعت سره مونځ د ابتداء د نبوت څخه مشروع وو. نووي شرح مسلم ج۱ صـ ۱۸۴ همدارنګه حافظ ابن حجر ليکي چې د جماعت مونځ دابتدا د اسلام څخه شروع وو. فتح الباري ج ۳ صـ ۶۰ په مسلم ج ۲ صـ ۲۹۶ او مستدرک ج ۳ صـ ۵۹۲ کې روايت دی چې ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شو کله چې خپل قوم ته لاړو نو حضرت ايماء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابن رحضة ورته په جماعت باندې مونځ ورکولو حالانکه د حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه مخکې په نارينه وُو کې حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په زنانه وو کې حضرت خديجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مخکې مسلمانه شوې وه. تذکره ج ۱ صـ ۱۷ و اکمال صـ ۵۹۴ نو په دومره ابتدائي دور کې هم جماعت وو.

**نهم اعتراض**: په دې آيت کې د استماع ذکر دی او استماع اوريدلو ته وايي او اوريدل خو صرف په جهري مونځونو کې متصور دي او ستاسو دعوه دا ده چې په سري مونځونو کې هم قرأت خلف الامام ممنوع دی.

**الجواب**: د استماع معنی اوريدل نه دي بلکه د دې معنی غوږ کېښودل او توجه کول دي. بيا برابره خبره ده چې قرأت اوري او کنه؟

د رسول الله صلي الله عليه وسلم عادت دا وو چې په کوم کلي به ئي حمله کوله نو (وکان يستمع الاذان فان سمع اذانًا امسک والا اغار، مسلم صـ۱٦٦ و ابو عوانه ج ۱ صـ۳۳۵ طيالسي صـ۱ و صـ۲ غوږ به يې کيښودلو آذان ته نو که آذان به يې واوريدلو د حملې څخه به يې ځان بند کړو، او که نه حمله به يې اوکړه، د شرح تهذيب طالب هم په دې پوهيږي چې تقسيم الشئ الى نفسه او الى غيره محال دی او دلته يستمع تقسيم شوی دی، فان سمع -او الا -ته، نو د استماع څخه وروسته کله سماع راغلې ده، او کله نه ده راغلې، په صراح صـ ۳۱۳ کې ئي ليکلي دي چې استماع گوش داشتن يعني غوږ کيښودل، د لغتو امام ثعلب رَحِمَهُ ٱللَّهُ د اذا قرئ القرآن مطلب داسي بيانوي چې معناه اذا قرء الامام فاستمعوا الي قراءته ولا تتكلموا، تاج العروس ج ۱ صـ ۵۹۱ د لغتو بل امام، امام راغب رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې: والاستماع الاصغاء، مفردات صـ ۲٤۲ ].

**د انصات معنی :**

د انصات معنی ده خاموش بودن. صراح صـ٦۹ په قاموس ج ۱ صـ۹۲ کې راغلي دي چې أَنْصَتَ، سكتَ يعني د انصات معنی چپ کيدل دي، او همداسي په مغرب ج۲ صـ۲۱۲ منجد صـ۸۸۳ کې هم دي. امام نووي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ليکي چې الانصات السکوت د انصات معنی سکوت او چپ کيدل دي، شرح مسلم ج۱ صـ۲۸۳ امام بهيقي ليکي چې : اذ لا فرق بين السكوت و الانصات عند العرب، كتاب القراءت صـ۸٤ ].

**د سکوت معني :**

امام اللغت ابن خالويه رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې : نزف الرجل اذا انقطعت حجته عند المنا ظرة و سكت او اسكت مثله اعراب ثلاثين سورة من القرءآن صـ ٧٦ يعني د مناظرې کولو په وخت کې چې يو سړی بالکل لا جوابه او چپ شي نو په دې باندې د نزف اطلاق کيږي همدارنګه چې څوک خپل کلام منقطع کړي هغه ته سکت او اسکت استعماليږي. په منجد صـ۳۵۲ او په قاموس ج۱ صـ۹۲ کې ئي ليکلي دي چې اسکت انقطع کلامه فلم يتکلم يعني د اسکت معنی دا ده چې کلام يې بالکل

پربهيدلو، او هيڅ خبره يې ونکړه. په مجمع البحار ج ۲ صـ ۱۲۵ کې يې ليکلي دي چې جرى الوادى ثلاثا ثم سكت اى انقطع يعنې تر درې ورځو پورې سيلاب روان وو بيا ودريدلو - امام راغب اصفهاني رَحِمَهُ اللَّهُ ليکي چې السكوت مختص بترك الكلام مفردات صـ ۲۲۵ امام رازي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې : لان السكوت عدمى معناه انه لم يقل شيئا ولم ينقل امراً ولم يتصرف في قول ولا فعل ولا شك ان هذا المعنى عدمى محض، مناظرات امام رازي صـ ۳۵

نو دې څخه دا معلومه شوه چې څوک چې قرأت خلف الامام کوي هغه په هيڅ صورت هم په استماع او په انصات عمل نه دی کړی.

**لسم اعتـراض :** د حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې ده د رسول الله صلي الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې تاسو چې د تکبير تحريمه او د قرأت په مينځ کې کوم سکوت کوئ نو په دې کې څه وائي ؟ نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته وفرمائيل چې څه (د دې سکوت په حالت کې) دا دعا لولم چې: اللّٰهُمَّ باعد بينى و بين خطاياي بخاري ج ۱ صـ ۱۰۳ نو امام بهيقي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې سکوت د پټو لوستلو سره منافي نه دی ګوره دلته د تکبير تحريمه څخه وروسته سکوت هم شوی دی او يو څه لولي هم. کتاب القراءة صـ ۷۵].

**الجواب :** ۱) په آيت کريمه کې استماع او انصات ذکر شوی دی د سکوت او د اسکات ذکر صراحة نه دی شوی نو لامذهبان دی دا ثابته کړي چې استماع او انصات دلوستلو سره منافي نه دی. د استماع فرق خو د سکوت او د اسکات سره ظاهر دی. او د لامذهبانو محقق مبارکپوري ليکلي دي چې د انصات او د سکوت په مينځ کې هم فرق دی ځکه چې د انصات معنى سکوت مع الاستماع ده. تحقيق الکلام ج ۲ صـ ۵۱ و تحفة الاحوذي ج ۱ صـ ۳۵۸].

۲) د زيد بن ارقم په حديث کې دا سې الفاظ دي چې امرنا بالسکوت نو حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې د دې معنې دا نه ده چې په مانځه کې مطلقا سکوت وکړئ مه ثناء وايې، مه تسميع او تحميد وائي او مه تشهد او درود، بلکه د دې معنې داده چې د حکم سابق يعنې د سلام او د کلام څخه

سکوت وکړئ نو دلته سکوت عن الکلام المتقدم مراد دی. فتح الباري ج ۳ صـ ۶۰ نو محمد انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللّٰهُ دا کلام په نظر کې نیسي او د ابو هریرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حدیث کې اسکات عن الکلام المتقدم مراد وي چې اسکات عن التکبیر دی. فصل الخطاب صـ ۷۸ یعنې چې انقطاع د تکبیر وشي نو بیا ته څه وایئ؟

۳) همدارنګه که د دې تولو څخه صرف نظر شونو بیا امام ابو بکر الرازي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي چې: په حدیث کې لوستونکي ته سکوت مجازاً استعمال شوی دی، او په آیت کریمه کې حقیقي معنی مراد ده (انما سمیناه ساکتا مجازاً لان من لایسمعه یظنه ساکتا الخ)(احکام القران ج ۳ صـ ۴۹)

۴) د بخاري په اول جلد دریمه صفحه کې راغلي دي چې سکوت د لوستلو سره منافي دی، ځکه چې په صحیح حدیث کې راځي چې جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې کله رسول صلي الله علیه وسلم ته قرآن ور اورلو نو رسول صلي الله علیه وسلم به هم د زده کولو لپاره پټ پټ لوستلو، (وکان یحرک شفتیه) نو الله پاک د شونډو د خوزولو څخه منع کړو او ورته وېفرمائیل چې لا تحرک به لسانک امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ ئي ترجمه کوي چې فاستمع له وانصت، بخاري جلد ۱ صـ ۳ د دې څخه معلومیږي چې پټ پټ لوستل هم د استماع او د انصات سره منافي دي.

۵) الله پاک فرمائي چې فلما سکت عن موسي الغضب همدارنګه په حدیث کریمه کي راځي چې سئل النبي صلي الله علیه وسلم عن الروح فسکت، بخاري ج۱ صـ ۲۴ نو آیا د دې هم دا معنی ده چې موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ خپله غصه پټه پټه لوستله؟ او د سائلینو د سوال څخه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پټ پټ لوستل کول؟

**یوولسم اعتراض:** په دې آیت کې د هغه قراءة خلف الامام څخه منع راغلی ده چې په جهر سره وي لکه څرنګه چې د لفظ د استماع څخه معلومیږي. خیر الکلام صـ ۳۵۱] همدارنګه د ابو هریره رضی الله عنه په روایت کې هم راغلی.

**الجـــواب :** دلتـه د مقتـديانو د قـراءت څخـه منـع راغلـی ده ، لکـه څرنګـه چـې د عـبد الله بـن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث کې راغلي دي چې (فسمع اناساً يقرءون مع الامام) او په جهر باندې د مطلق قرأن اطلاق مجازاً دی همدا رنګه امر بالانصات د مطلق قراءت څخه منع راولي. نو ايت مطلق دی واذا قرأ ذکرپکې دی واذا جهر ذکرپکې ندی او دا ابوهريره رضی الله عنه روايت ضعيف دی محمد بن دينار او ابراهيم هجري پکې ضعيفان دي دوم اعتراض دجواب لاندې تفصيل ليکل شوی دی.

**دولسم اعـتراض :** مقتدي دې په سکتاتـو د امام کې قراءت کوي نو په سکتاتـو کـې قراءت د استماع او د انصات سره منافي نه دی. او د سکتاتو ثبوت دا دی.

۱. عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمائي چې کله امام سکته وکړي نو په دغه وخت کې دې مقتدي قرأت کوي ځکه څوک چې قرأت ونه کړي د هغه په مونځ کي خلل راځي. کنزالعمال ج ۴ ص ۹۶].

۲. حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي چې رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل چې څوک چې د امام سره په فرض مونځ کي شريک شي نو هغه ته پکار دي چې د امام په سکتاتو کي سورة فاتحه ولولي. کتاب القراءة ص ۵۴ مستدرک ج ۱ ص ۲۳۸].

۳. عمرو بن شعيب عـن ابيه عـن جده روايت کوي چې کله به چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سکته وکړه نو په دغه وخت کي به صحابه کرامو قرأت کولو. کتاب القراءة ص ۶۹ و ص ۸۶].

۴. هشام بن عروة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار څخه روايت کوي چې اي بچيه کله چې امام سکته کوله نو ته په دغه وخت کي قراءت کوه، او کله چې امام قراءت کولو نو ته خاموش اوسيږه، ځکه چې په فرضي او يا په نفلي مونځ کې چې سورة فاتحه ونه لوستل شي نو مونځ نه کيږي. جزء القراءت ص ۵۸ کتاب القراءت ص ۸۷].

۵. د حضرت ابو سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او يا د حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې د امام لپاره دوه سکتې وي نو دا د سورة فاتحې د لوستلو لپاره غنيمت وګڼه. [جزء القراءت ص ۵۸ کتاب القراءت ص ۷۰].

۶ .د حضرت سعيد بن جبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بيان دى چې د سلفو طريقه دا وه چې دوي به چې کله امامتي کوله نو ضرور به يې سکته کوله، د دې لپاره چې مقتدي سورة فاتحه ولولي. جزء القراءة صـ ۵۷ ].

**الجواب :**

۱) اول خو د لامذهبو په نيز د صحابه وو موقوفات حجت نه دي، بدور الاهله صـ ۹۵ صـ ۱۲۹ صـ ۱۳۹ فتاوي نذيريه ج ۱ صـ ۳۴۰ دليل الطالب صـ ۶۱۷ او مخکښي يو ثو آثار موقوفات دي.

۲) د دې څخه علاوه په دې آثارو کې يو هم صحيح نه دى ثابت، بلکه ټول ضعيف دي، على الترتيب ئي تفصيل دا دى:

**د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اثر:**

۱) دا اثر د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه دى، بلکه د عبد الله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دى. راويانو په غلطۍ سره د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نوم ذکر کړى دى. [وګوره کتاب القراءة صـ ۴۵].

۲) په دې اثر کې د سورة فاتحې تصريح نشته لهذا دا اثر مجمل دى.

۳) د دې اثر په سند کې يو راوي مثنى بن صباح دى چې کمزورى دى. امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې د ده په دماغو کې فتور وو، ضعفاء صغير صـ ۳۰ امام نسائي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته متروک ويلى دى. ضعفاء صغير للسنائي صـ ۵۳ حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ ليکي چې ضعيف وو. تقريب صـ ۳۴۶ امام يحي القطان رَحِمَهُ اللَّهُ او ابن مهدي رَحِمَهُ اللَّهُ د ده روايت نه قبلوي، امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ ورته ليس بشيئ وائي، ابن معين رَحِمَهُ اللَّهُ ورته ليس بذاک وائي، او ابن عدي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته ضعيف وائي، ميزان الاعتدال ج ۳ صـ ۷ امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ، ابن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ، علي بن الجنيد رَحِمَهُ اللَّهُ، دارقطني رَحِمَهُ اللَّهُ، ابن حبان رَحِمَهُ اللَّهُ، ساجي رَحِمَهُ اللَّهُ، ابو احمد الحاکم رَحِمَهُ اللَّهُ، سحنون رَحِمَهُ اللَّهُ، او امام عقيلي رَحِمَهُ اللَّهُ دا ټول ورته ضعيف وائي، تهذيب التهذيب ج ۱۰ صـ ۳۶].

**د ابو هريرة حديث :**

۱) د دې په سند کې محمد بن عبد الله بن عبيد بن عمير رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ دى. امام بخاري رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ورته ضعيف وائي ضعفاء صـ۲۸ امام مسلم رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمائي چې امام يحي القطان رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ د ده تضعيف کړى دى. مسلم ج ۱ صـ ۲۰ . امام نسائي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ ورته متروک ويلى دي. ضعفاء صغير صـ ۲۵ امام بهيقي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ ليکي چې دا قابل د احتياج نه دى، کتاب القراءة صـ ۵۴ . امام دار قطني رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ ورته ضعيف ويلي دي، دار قطني ج۱ صـ۱۲۱. امام ترمذي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمائي چې قوي نه دى، ترمذي ج۲ صـ۱ . امام يحيي بن معين رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ هم ورته ضعيف ويلي دي. ميزان الاعتدال ج ۳ صـ ۷۷ لسان الميزان ج ۵ صـ ۲۱٦ ].

۲) په دې حديث کې د صلوة مکتوبه قيد دى او فريق مخالف په تراويحو ، وترو، او عيدينو کې هم قراءت خلف الامام فرض گني.

د حضرت ابو هريرة رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ يو بل ضعيف اثر هم شته ليکن د هغې په سند کې اسحق بن عبد الله بن ابي فروه نهايت کمزورى دى.

**د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده روايت :**

د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده په سند کې مشهور بحث دى. امام يحى القطان رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمائي چې دا سند ځما په نيز ضعيف دى. ترمذي ج ۱ صـ۴۳ صـ۸۲].

امام ابو داود رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمائي چې دا سند نيم حجت هم نه دى، امام ابو ذرعه فرمائي چې محدثين په دې باندې ځکه جرحې کوي چې دوي د خپل پلار څخه صرف يو څو روايتونه اوريدلي دي، او دى د خپل پلار نيکه ټول غير مسموع روايتونه بيانوي. ميزان الاعتدال ج ۲ صـ ۲۸۹ شرح نخبة الفكر صـ۱۰۰ ].

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ ليکي چې ده دابيه عن جده له طريقه هيڅ نه دى اوريدلي هغه د کتاب څخه نقل کولو، خالي د تدليس څخه ئي کار اخستلو. طبقات المدلسين صـ۱۱].

امام طحاوي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ هم دې سند ته منقطع او ضعيف وائي، طحاوي ج۱ صـ ۴۵ ].

امام حاكم رَحِمَهُ اللهُ هم دا سند مرسل او ضعيف گڼي .مستدرك ج ۱ صـ ۱۹۷ محدث ابن حزم رَحِمَهُ اللهُ ليكي چې حديث عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده فصحيفة لا تصح محلي ابن حزم ج ۱ صـ ۲۳۲ همدارنګه امام علي بن المديني رَحِمَهُ اللهُ هم دى سند ته ضعيف وائي، تهذيب التهذيب ج ۸ صـ ۵۳ امام ميموني رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې ما د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ څخه واوريدل چې هغه فرمائيل چې: له اشياء مناكير وانما يكتب حديثه يعتبر به فاما ان يكون حجة فلا ايضًا صـ ۴۹ امام ابن حبان رَحِمَهُ اللهُ خپله فيصله د ده په باره کې داسې ذكر كوي چې في روايته عن ابيه عن جده مناكير كثيرة لا يجوز عندي الاحتجاج بشئ منها ، اسعاف المبطا برجال الموطا صـ ۲۳].

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې بعضې علماء د ده توثيق او بعضې نورېې تضعيف كوي .بيا خپله فيصله داسې بيانوي چې : ومن ضعفه مطلقا فمحمول علي روايته عن ابيه عن جده. [تهذيب التهذيب ج ۸ صـ ۵۱ ].

د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده يو بل روايت هم شته چې كه چا د امام په سكتاتو كې قراءت ونكړو د هغه مونځ كامل نه دى اداء شوى ، كتاب القراءت صـ ۵۴ صـ ۵۵

ليكن د دې په سند كې د عمرو بن شعيب رَحِمَهُ اللهُ عن ابيه عن جده څخه ما سوى محمد بن عبدالله بن عبيد بن عمير رَحِمَهُ اللهُ دى چې ضعف ئي د ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث لاندې بيان شو.

**د هشام بن عروة رَحِمَهُ اللهُ روايت :**

دا روايت د موقوفوالي څخه علاوه ضعيف دى .د دې په سند كې يو راوي موسى بن مسعود رَحِمَهُ اللهُ دى امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ، ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ، ابن خزيمه رَحِمَهُ اللهُ او بندار رَحِمَهُ اللهُ ورته ضعيف ويلي دي [ميزان ج ۳ صـ ۲۸۱] . ابو حاتم رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې د ده په كتابونو كې غلطې وي ، عمرو بن على الفلاس رَحِمَهُ اللهُ فرمائي هيڅ د بصيرت خاوند محدث د ده څخه احتجاج نه كوي .حاكم رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې قوي نه وو ، ابن قانع رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې دا ضعيف دى ، ساجي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې ضعيف دى او دار قطني رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې كثير الوهم دى .تهذيب التهذيب ج ۱۰ صـ ۳۷۱

دې څخه علاوه په دې روايت کښې د فصاعداً لفظ هم موجود دی، نو آيا لامذهبان مقتدي ته دا امر کوي چې سورة منضمه دی هم مقتدي په سکتاتو کښې ولولي؟

**د ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا د ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اثر :**

د دې په سند کښې موسی بن مسعود رَحِمَهُ اللهُ دی چې په مخکښې اثر کښې يې حال معلوم شو، د دې څخه علاوه د دې هم پوره يقين نشته چې دا روايت د ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی او که د ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی؟

**د سعيد بن جبير رَحِمَهُ اللهُ اثر :**

د دې په سند کښې يو راوي عبد الله بن رجا المکي رَحِمَهُ اللهُ دی. امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او أزدي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې د ده په روايت کښې نکارت دی. ميزان ج ۲ صـ ۳۷ ساجي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې عنده مناکير. تهذيب التهذيب ج ۵ صـ ۲۱۱ د دې سند دوهم راوي عبد الله بن عثمان بن خيثم رَحِمَهُ اللهُ دی. د ده په باره کښې د محدثينو څخه متضاد اقوال منقول دي، امام ابن معين رَحِمَهُ اللهُ سره د دې چې ثقه يې ورته ويلي دي، خو بيا هم فرمائي احاديثه ليست بالقوية، امام ابو حاتم رَحِمَهُ اللهُ ورته لابأس به ويلي دي او د دې سره فرمائي چې وکان يخطي لايحتج به، ميزان ج ۲ صـ ۵۶ امام نسائي رَحِمَهُ اللهُ ورته يو ځلې ثقه او بل ځلې ليس بالقوي ويلي دي. او امام علي بن المديني رَحِمَهُ اللهُ ورته منکر الحديث ويلي دي. [تهذيب التهذيب ج ۵ صـ ۳۱۵] امام دارقطني رَحِمَهُ اللهُ هم ورته ضعيف ويلي دي. [نصب الرايه ج ۱ صـ ۳۵۳].

۳) تر دې ځای پورې د سکتاتو روايتي اړخ بيان شو، درايتي اړخ ئې دا دی چې: په احاديثو کښې د دوو سکتو ذکر دی يوه سکته د تکبير تحريمه څخه وروسته ده، او په دې سکته کښې خو د سورة فاتحې ګنجائش نشته دوهمه سکته د سورة فاتحې د قراءت څخه وروسته ده او دا د دې لپاره ده چې يتراد اليه نفسه نسائي ج ۱ صـ ۱۰۳، ابو داود ج ۱ صـ ۱۱۳، ترمذي، ج ۱ صـ ۳۴، دارمي صـ ۱۴۶].

د ساه د جوړولو لپاره ده او په دې سکته کښې د سورة فاتحې قراءت ممکن نه دی. همدارنګه دا خو يوه سکته ده سکتات خو نه دي نو د سکتې څخه به سکتات څرنګه جوړوي؟

د لامذهبو محقق مبارکپوري ليکي چې : بل السكته الثانية لان يتراد اليه نفسه كما صرح به قتادة، تحفة الاحوذي ج ١ صـــ ٢٠٩ ].

ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې امام ابو حنيفة رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ او جمهور اهل اسلام رَحِمَهُ ٱللَّهُ هيڅوک هم د دې قائل نه دي چې د سورة فاتحي ځخه وروسته په امام باندې دومره سکته واجبه ده چې مقتديان پکې سورة فاتحه ولولي، او نه چا د دې په استحباب باندې قول کړی دی، تنوع العبادات صـ ٨٥ ].

په فتاوی کې ليکي چې : ولم نرى نزاعاً بين العلماء انه لا يجب علي الامـام ان يسكت ليقرأ المـأموم بالفاتحـة ولاغيرهـا (الي ان قـال) ولايسـتحب للامـام السـكوت ليقـرأ المـأموم عند جماهيرالعلماء و هذا مذهب مالک و ابي حنيفة واحمد بن حنبل وغيرهم، فتاوي ج٢ صــ ١٤٦

قاضي محمد بن عبدالله ابوبکر بن العربي المالكي الاندلسي المتوفي ٥٤٣ هـ فرمائي چې عجباً كيف يقدر المـأموم في الجهرية علي القراءة ـ اينازع القران الامام ؟ ام يعرض عن استماعه ؟ ام يقرأ اذا سكت ؟ قيل له فان لم يسكت و قد اجمعت الامة علي ان سكوت الامام غير واجب فمتي يقـرأ؟ عارضة الاحوذي بحواله اوجز المسالک ج ١ صــ ٢٤٨؟

تعجب دادی چې مقتدي څرنګه په قراءة خلف الامام باندې قادر دی ؟ آيا د امام سره په قراءت کې منازعت کوي ؟ او که د استماع څخه اعراض کوي ؟ او که په هغه وخت کې قراءت کوي کله چې امام سکته وکړي ؟ نو که امام سکته و نکړي نو مقتدي به ئي کله لولي ؟ ځکه چې د ټول امت په دې اتفاق دی چې په امام باندې سکته نه ده واجبه. حافظ ابن القيم رَحِمَهُ ٱللَّهُ ليکي چې : په هيڅ صحيح حديث کې دا نه ده ثابته چې رسول الله عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ دی دَ دې لپاره سکته کړې وي چې امام سورة فاتحه ولولي . غيث الغمام صـ ١٧٥].

نو دا خبره به عقل څرنګه و مني چې شريعت محمدي صلي الله عليه وسلم دی په مقتدي باندې قراءت خلف الامام فرض کړې وي، او د قراءة موقع دې يې ورته نه وي ورکړې، دا خو داسې ده لکه يو شاعر چې وائي:

درميان قعر دريا — تخته بندم کرده‌ای
باز مي ګوئي که دامن — تر مکن هوشيار باش

همدارنګه که امام د دې لپاره سکته کوي چې مقتدي سورة فاتحه ولولي نو دا خو امام د مقتدي تابع شو او د رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې فرمان څخه صريح مخالفت راغلو چې انما جعل الامام ليوتم به، احکام القران ج ۳ صـ ۵۱].

**دیارلسم اعتراض**: لامذهبه مبارکپوري ليکي چې د احنافو خپله په دې ايت باندې عمل نشته ځکه چې کله چې احناف د امام پسې په داسې حال کې اقتداء وکړي چې امام فاتحه شروع کړې وي نو دې خامخا تکبير تحريمه وائي، او د تکبير تحريمه لوستل د آيت د استماع او د انصات سره منافي دي؟

**الجواب**: د آيت شان نزول قراءت خلف الامام دی، نو په مقتدي باندې استماع او انصات دی، امام ابن جرير ليکي چې: فالانصات خلفه لقراءته واجب من کان مؤتما به. او کوم سړي چې لا تر اوسه مقتدي نه دی او يائي د اقتداء اراده ده. نو هغه د دې مخاطب نه دی، او دا سړی لا تر اوسه مقتدي نه دی، ځکه چې تکبير تحريمه د احنافو د تحقيق مطابق شرط دی. هدايه ج ۱ صـ ۸۲ و شرط الشئ خارج عنه کنز صـ ۳۰].

**څوارلسم اعتراض**: لامذهبه مبارکپوري ليکي چې بيا احناف ولې د امام پسې د قراءة د فاتحې په وخت کې ثناء وائي؟ آيا د سبحانک اللهم لوستل د استماع او د انصات سره منافي نه دي؟

**الجواب**: محققينو احنافو په دې تصريح کړې ده چې کله چې امام قراءت د سورة فاتحې شروع کړي نو په دغه وخت کې مقتدي ته د ثنا لوستل نه دي جائز.

وګوره فتاوي قاضي خان ج ۱ صـ ۴۲ فتاوي سراجيه صـ ۱٦ فتح القدير ج ۱ صـ ۳۴۵ كبيري صـ ۲۰۴ په جهري لمونځونو كي مقتدي ته ذ امام د قراءت معلومات په آساني سره كيږي او په سري مونځونو كي به له قرائنو او شواهدو څخه اندازه لګوي.

**فان قيل** چې په منية المصلي صـ ٦۵ كي ئي ليكلي دي چې كله چې مقتدي امام په داسې حالت كې ونيسي چې سورة فاتحه ئي شروع كړي وي نو په دغه وخت كې به بالاتفاق ثناء لولي ؟

**قلنا** : د دي اتفاق څخه د تمامو احنافو علماؤ اتفاق نه دی مراد بلكه صرف د امام ابويوسف او د امام محمد اتفاق مراد دی.صغيري صـ ۱۲۸ ، كبيري صـ ۳۴۹].

۲) قاضي شوكاني ليكي چې : و ظاهر التقيد بقوله من القران يدل علي انه لا بـأس بالاستفتاح حال القراءة بما ليس بقران كالتعوذ والدعاء ـ نيل الاوطار ج ۲ صـــ ۲۲٦

يعنې د من القران ظاهر قيد په دې دلالت كوي چې د امام د قراءت په وخت كې د ثنا ، د تعوذ او د دعا وغيره چې قران نه وي د هغې په لوستلو كې هيڅ حرج نشته.

او د لا مذهبو سر ګروه نواب صديق حسن خان ليكي چې : يعنې فلا تقرءوا بشئ من القران وغيره ونحو آن دلالت دارند بر آنكه منهي عنه نزد قراءت امام همان قرآن كريم است فقط ، واما قراءة توجه واستعاذه و نحو آن پس لا بـأس به است و نهي متناول آن نيست ونـه بـوجهي از وجـوه بـرآن دلالت دارد . دليل الطالب صـــ ۲۹٤ د دې څخه معلوميږي چې د امام د قراءت په وخت كې مقتدي ته صرف د قرآن قراءت ممنوع دی او حديث د فلا تقرءوا بشئ من القران د دې تائيد كوي.

**پنځلسم اعتراض** : احناف د سهر په مانځه كې پخپله استماع او انصات نه كوي ځكه چې د سهر جماعت ولاړ وي نو د احنافو په نيز اول د سهر د سنتو كول پكار دي، او بيا په جماعت كې شريكيدل پكار دي.

**الجواب** : په آيت كريمه كې مخاطب مقتدي دی، او دا لا تراوسه مقتدي شوی نه دی.علاوه لا دا چې د محققينو احنافو د تحقيق مطابق چې اول د سهر جماعت ولاړ وي نو سنت د مسجد څخه بهر كول پكار دي او

کبهر ځائ نه وو نو بیا په جماعت کې شریکیدل پکار دي، حافظ ابن الهمام فرمائي چې : و اشد مایکون کراهیة ان یصلیهما مخالطا للصف کما یفعله کثیر من الجهلة، فتح القدیر ج ا صـ ۳۴۱

**شپاړسم اعتراض :** مبارکپوري لیکي چې دغه مذکور آیت خطبې ته هم شامل دی ، حالانکه ښاسو په نیز چې کله خطیب یآایها الذین امنوا صلوا علیه و سلموا تسلیماً ووائي .نو سامعین ذې پټ په دورد شریف ولولي . شرح وقایه ج ۱صـ ۱۷۵ لهذا تاسو هم په استماع او په انصات باندي عمل ونکړو. تحقیق الکلام ج ۲ صـ ۴۳

**الجواب :** مخکې دا تحقیق تیر شو چې دَ آیت شان نزول صرف او صرف لمونځ دی، د آیت د نازلیدلو په وخت کې د خطبې وجود نه وو .البته بالتبع پکې خطبه داخله ده . ویجوز فی التابع ما لا یجوز في المتبوع.د بالتبع څخه ظاهري مخالفت .څرنګه په بالذات کي مخالفت جائز کوي ؟علاوه لا دا چې اګر چې بعضې احنافو په زړه کي د درود شریف د لوستلو اجازت ورکړی دی لیکن محققینو منع کړې ده .قاضي خان لیکي چې: ومشایخنا قالوا بانه لا یصلي علي النبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ یمکن بعد هذه الحالة خانیه ج ۱ صـ ۸۷].

په فتاوي سراجیه صـ ۱۷ کي لیکي چې : فقیه حسام الدین رَحِمَهُ ٱللَّهُ د پټو لوستلو اجازت ورکړی دی لیکن شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د پټو لوستلو څخه هم ممانعت کړی دی او په مبسوط د سرخسي ج ۲ صـ ۲۹ کې هم د پټو لوستلو څخه د ممانعت ذکر دی ، او حافظ ابن الهام رَحِمَهُ ٱللَّهُ لیکي چې د محققینو بیان دا دي چې چونکه استماع او انصات فرض دی ، لدې وجهې د امام صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ په نیز د خطبې په وخت کي په پټه د درود شریف د لوستلو اجازت نشته . فتح القدیر ج ۲ صـ ۴۲۱].

**اولسم اعتراض :** مبارکپوري لیکي چې د خطبې په وخت کې د استماع او د انصات دومره تاکید دی چې کوم سړی چې د خطبې په وخت کې خبرې کوي نو ته ورته دومره هم نشئ ویلی چې چپ شه .په صحیح حدیث کي راځي چې : اذا قلت لصاحبك یوم الجمعة انصت فقد لغوت، بخاري ج ۱ صـ ۱۲۸ مسلم ج ۱ صـ ۲۸۱ د دې څخه معلومه شوه چې د خطبې په وخت کي دومره خاموشي پکار ده چې امر بالمعروف او نهی عن المنکر هم په دغه وخت کې ساقط دی لیکن د دې سره سره رسول الله

عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمائي چې : «إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ، وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا» مسلم ج۱ ص ۲۷۸؟ په تاسو کې چې څوک په داسي حالت کې راغلو چې امام خطبه لوستلو نو دوه رکعته مونځ دې د اختصار سره وکړي نو چې مونځ جائز شو او په مانځه کې خامخا د قران قراءت کیږي نو معلومیږي، دا چې د خطبې په حالت کې د قران قراءت د استماع او د انصات سره منافي نه دی. نو د مانځه په حالت کې به هم د قران قراءت د استماع او د انصات سره منافي نه وي.

**الجواب :** مبارکپوري دلته د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ قیاس رانقل کړو. او په نورو ځایونو کې لامذهبان قیاس ته د شیطان کار وائي.

(۲) د جمهورو مسلمانانو په نیز د خطبې په وخت کې د مونځ کول صحیح نه دي، امام نووي رَحِمَهُ اللَّهُ لیکي چې : د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ، امام لیث بن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ، امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ او د جمهورو صحابه ؤو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او د تابعینو رَحِمَهُمُ اللَّهُ مسلک دا دی چې د خطبې په وخت کې مونځ صحیح نه دی. د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ همدا مسلک دی. نووي شرح مسلم ج ۲ ص ۴۱۵

علامه عراقي فرمائي چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عروه بن زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، مجاهد رَحِمَهُ اللَّهُ، عطاء بن أبي رباح رَحِمَهُ اللَّهُ، سعید بن المسیب رَحِمَهُ اللَّهُ، محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللَّهُ، امام زهري رَحِمَهُ اللَّهُ، قتادة رَحِمَهُ اللَّهُ، ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ او د قاضي شریح رَحِمَهُ اللَّهُ همدا مذهب دی. فتح الملهم ج ۲ ص ۴۱۵.

امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې د کوفې د فقهاوو او د محدثینو همدا مسلک دی. ترمذي ج۱ ص ۶۷].

رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمائي چې : یصلي ما کتب له ثم ینصت اذا تکلم الامام، بخاري ج۱ ص ۱۲۱ مسلم ج۱ ص ۲۸۳ طیالسي ص ۶۵ (د امام د راتلو څخه مخکې) چې څومره مونځ ورته مقرر وي هغه دی وکړي بیا چې امام خطبه شروع کړه نو چپ دې شي، نو د دې صحیح حدیث څخه معلومه شوه چې د خطبې په وخت کې د چپ کیدلو څخه بغیر بله چاره نشته، او حضرت نبیشة الهذلي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله

عَلَيْهِ السَّلَامُ څخه روايت کوي چې : فان لم يجد الامام خرج صلي ما بداله وان وجد الامام قد خرج جلس فاستمع و انصت ـ الحديث مجمع الزوايد ج ۲ صــ ۱۷۱ و قال رواه احمد ورجاله رجال الصحيح خلا شيخ احمد وهو ثقة ... انتهیٰ که امام د خطبې لپاره نه وو راوتلی نو چې څومره مونځ کول غواړي ودې ئي کړي .او چې کله امام د خطبې لپاره راووتلو نو په دغه وخت کې دې هر سړی کيني او چپ دې شي علامه هيثمي فرمائي چې : د دې روايت ټول راويان د بخاري او د مسلم راويان دي د امام احمد د استاذ څخه ما سوا ، ليکن هغه هم ثقه دی .د دې صحيح حديث څخه هم معلومه شوه چې د خطبې په وخت کې د مونځ اجازت نه شته.

معترض چې په اعتراض کې کوم حديث پيش کړی دی نو هغه د يوې خاصې واقعې سره تعلق لري. بيا بعضې راويانو د نقل بالمعنی په اعتبار د عموم جامه وراغوستې ده، اصل واقعه دا وه چې حضرت سليک غطفاني رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ډيرې غريبۍ ښکار شوی وو، کله چې رسول صلی الله عليه وسلم د ده خراب حالت وليدلو نو د چندې اراده ئي ورته وکړه ، او حکم ئي ورته وکړو چې پاڅيږه او دوه رکعته مونځ وکړه ، او دا حکم ئي د دې لپاره ورته وکړو چې خلک د ده خراب حالت وګوري او د زړه د اخلاصه چنده ورسره وکړي، د روايت اصل الفاظ داسې دی چې : جَاءَ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ بِهَيْئَةٍ بَذَّةٍ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَصَلَّيْتَ؟» قَالَ: لَا، قَالَ: «صَلِّ رَكْعَتَيْنِ، وَحَثَّ النَّاسَ عَلَى الصَّدَقَةِ».. الحديث نسائي ج ۱ صــ ۱۵۸ رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ خطبه لوستله چې په دې وخت کې يو سړی چې حالت ئې ډير خراب وو راغلو .نو رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمائيل چې آيا مونځ دې کړی دی ؟ هغه ورته وفرمائيل چې نه ، نو رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمائيل چې پاسيږه او دوه رکعته مونځ وکړه ، او خلک ئې په صدقه باندې تيز کړل .د مسند احمد د روايت الفاظ داسې دي چې رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائيل چې : ان هذا الرجل دخل المسجد في هيئة بذة فامرته ان يصلي رکعتين و انا ارجو ان يفطن له رجل ـ فيتصدق عليه فتح الباري ج ۲ صــ ۳۲۶

دا سړی مسجد ته په خراب حالت کې راغلو نو ما ورته امر وکړو چې دوه رکعته لمونځ وکړه ، او څه اميد لرم چې څوک د ده په خراب حالت باندې خبر شي نو صدقه به ورباندې وکړي ، نو د دې څخه معلومه

شوه چې دا یوه مخصوصه واقعه وه، نو بعضې راویانو روایت بالمعنی وکړو، او د عموم جامه ئې ورته وروا غوستله، په یو روایت کې داسې هم راغلي دي چې : و امسک عن الخطبة حتی فرغ من صلوته. دارقطني ج ۱ صـــ ۱۶۹، زیلـعي ج ۲ صــــ ۲۰۳ د دې سړي د مانځـه څخـه تـر فارغیدلو پورې نبي عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ خطبه درولی وه. په یو روایت کې الفاظ داسې دي چې : (ارکع رکعتین ولا تعد لمثل هذا) . دار قطني ج ۱ صـ ۱۶۹ ته دوه رکعته مونځ وکړه خو بیا داسې مه کوه، نو چونکه دا سړی نهایت غریب وو نو رسول الله عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ ورته امر وکړو چې دوه رکعته لمونځ وکړي د دې لپاره چې خلګو ته دده خراب حالت ښکاره شي، او چنده ورسره وکړي، او کله چې په دوهمه او دریمه جمعه باندې راغلو نو بیا ورته رسول الله عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ وفرمائیل چې پاڅیږه او مونځ وکړه. فتح الباري ج ۱ صـ ۴۹۹ او دا هم د دې لپاره چې خلک د ده خراب حالت وګوري او چنده ورسره وکړي، کله چې دا په دوهمه جمعه باندې راغلو. رسول الله عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ خطبه لوستله نو وې فرمائیل چې : ان یصدقوا علیه وان یصلي رکعتین. جزء القراءت صــ ۳۷ خلک دې په ده باندې صدقه وکړي او ده ته ئې د دوه رکعته مونځ حکم وکړو.

۳) په اعتراض کې د ذکر شوي حدیث الفاظ داسې دي چې : اذا جاء احدکم یوم الجمعة والامام یخطب فلیرکع، الحدیث، یخطب صیغه د مضارع، ده نو خطبه په استقبال کې ده، نو معنی دا شوه چې کوم سړی چې راغلو په داسې حالت کې چې امام د خطبې لوستل غوښتل، او د خطبې اراده ئې کړې وه، نو د خطبې څخه مخکې دې دوه رکعته مختصر مونځ وکړي. امام نسائي په سنن الکبری کې د دې حدیث لپاره داسې باب قائم کړی دی چې : باب الصلوة قبل الخطبة نو د امام نسائي د تحقیق مطابق دا واقعه د خطبې څخه مخکې مخې ته راغلی وه، همدا معنی علماؤ په نظر کې نیولی ده او د یخطب ترجمه ئې په یرید الخطبة سره کړې ده، وګوره ده فتح الملهم ج ۲ صـ ۲۱۷ فیض الباري ج ۲ صـ ۳۴۴.

**اتلسم اعتراض** : ابن تیمیه رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې داسې سکوت چې ذکر، دعا، او قراءت پکې نه وي. نه مامور به دی، او نه عبادت دی بلکه د وسوسو لپاره یو سبب دی، نو د سکوت څخه بهتره دا ده

چې د الله پاک په ذکر کې مشغول شي، او بهتر ذکر د قران تلاوت دی، لهذا په سري مونځونو کې د امام پسې د سورة فاتحې لوستل مستحب دي فتاوي ج ۲ صـ ۱۵۰

**الجواب**: د مقتدي وظيفه په نص کې استماع او انصات دی، قراءة نه دی، او د نص په مقابل کې قیاس ته هیڅ اعتبار نشته.

۲) د سورة فاتحې څخه وروسته امام سورة لولي، او په دې وخت کې د جمهورو سلفو او خلفو په شان ابن تیمیه رَحِمَهُ اللهُ هم د مقتدي لپاره د سکوت حکم کوي، نو چې د ما زاد علی الفاتحة په وخت کې سکوت د وسوسو سبب نه دی، نو د فاتحې په وخت کې سکوت څرنګه د وسوسو سبب شو؟

**نولسم اعتراض**: په إذا قرئ القران فاستمعوا له و انصتو کې امر په استماع او په انصات شوی دی لیکن د ما زاد علی الفاتحه په باره کې دی. نو د فاتحې څخه وروسته د سورة د لوستلو په وخت کې به مقتدي چپ ولاړ وي.

**الجواب**: په دې کې شک نشته چې د الحمد څخه نیولی تر والناس پورې ټول قرآن دی، لیکن د قرآن کریم، د صحیحو احادیثو، او د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم او د تابعینو رَحِمَهُمُ اللهُ د اقوالو په رڼا کې د قرآن خاص اطلاق په کوم سورت باندې راغلی دی؟ او د قرآن اولین او بالذات مصداق کومه حصه ده؟

الله پاک فرمائي چې: وَ لَقَدْ اٰتَیْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ وَ الْقُرْاٰنَ الْعَظِیْمَ. پاره ۱۴ سورة الحجر، ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي چې رسول عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمائي چې ام القرآن هي السبع المثاني و القرآن العظيم. بخاري ج ۲ صـ ۲۸۳ د ام القران او د قران عظیم مصداق دغه اوه آیتونه د سورة فاتحې دی، د دې څخه علاوه حضرت ابو سعید بن المعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، او د حضرت أبی بن کعب څخه په بخاري، او په موطا امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وغیره کتابونو کې په صحیحو احادیثو باندې دا ثابته ده چې د قرآن عظیم اول نمبر مصداق سورت فاتحه ده، او همدا سې قول د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، د ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ د عبد الله بن عبید بن عمیر رَحِمَهُ اللهُ د ابن ابي ملیکه رَحِمَهُ اللهُ د شهر بن حوشب رَحِمَهُ اللهُ، د حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ، د امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ، د

قتادة رَحِمَهُ اللهُ او نورو اکابرو رحمهم الله څخه مروي دی .او امام ابن جریر رَحِمَهُ اللهُ او ابن کثیر رَحِمَهُ اللهُ همدې ته ترجیح ورکړې ده ، او لیکلي یې دي چې : فهذا نص في ان الفاتحة هي السبع المثاني والقران العظيم تفسير ابن كثير ج ٢ صـ ٥٥٧

نو دا آیت مطلق دی او سورة فاتحه د دې آیت فرد کامل دی.نو دا حکم به په سورت فاتحه باندې خصوصاً او په نورو سورتونو باندې عموماً جاري کولی شي.

**شلم اعتراض:** فاتحه قراءت ندی بلکې قرات د وروسته سورتونو دي.

الجواب: فاتحه قراءت دی ١- أَبُو هُرَيْرَةَ ﷺ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْكُتُ بَيْنَ التَّكْبِيرِ وَبَيْنَ القِرَاءَةِ إِسْكَاتَةً... الخ (صحيح بخاري ج ١صـ ١٠٣) باب ما يقول بعد التكبير) دلته قراءة د فاتحې مراد دی.

٢- امام بخاري باب لکوي په نوم د باب وجوب القراءة للامام والمأموم او د دې لاندې دا حدیث روایت کړی چې لاصلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب.

٣- عَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَسْتَفْتِحُونَ الْقِرَاءَةَ بِ {الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} (نسائی ج ١صـ ١٤٣ باب البداءة بفاتحة الكتاب قبل السورة)

٤- عَنْ عَائِشَةَ ﷺ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «يَسْتَفْتِحُ الصَّلَاةَ بِالتَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةِ، بِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، (صحيح مسلم ج ١صـ ١٩٤، باب اعضاء السجود والنهى عن كف الشعر.

**یویشتم اعتراض:** وابیان وایي چې فاتحه قرآن ندی ځکه چې الله تعالی فرمایي چې ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ﴾، نو د سبعا من المثانی څخه سورة فاتحه مراده ده او د والقران العظيم څخه مابقی قران مراد دی ؟

الجواب: كه فاتحه قرآن نه شي نو د قران سورتونه به (۱۱۳) شي حالانكي د قرآن سورتونه په اجماع سره (۱۱۴) دي (البرهان فى علوم القران صـ ۲۵۱)

۲- فاتحه په قران كي داخله ده او مستقله يې د عظمت له وجي ذكر كړې ده لكه (تـنزل الملائكـة والروح) جبرائيل عليه السلام په ملائكو كي داخل دى خو مستقل يې د عظمت له وجي ذكر كړى دى.

**دوه ويشتم اعـتراض :** حافظ ابن الهمام رَحِمَهُ اللَّهُ د اذا قرئ القران مطلب داسي بيان كړې دى چي په فاستمعوا كي ئي په جهري لمونځونو كي مقتديان د قراءت څخه منع كړي دي. او په وأنصتوا كي ئي په سري مونځونو كي د قراءت څخه منع كړي دي. نو مباركپوري په دې باندې درې اعتراضه كړي دي.

۱) ابـن همـام رَحِمَهُ اللَّهُ د انصـات معنـى سـكوت را فهمـولى ده، حالانكـه د انصـات معنـى مطلق سكوت نه دى بلكه سكوت مع الاستماع دى.

۲) د ابن همام رَحِمَهُ اللَّهُ تفسير بالرأيه دى.

۳) په سري مونځونو كي د سماع څخه بغير تدبر څرنګه متصور دى؟

تحقيق الكلام صـ ۴۹ ج ۲

**الجواب :** د مباركپوري دري واړه اعتراضه مردود دي

۱) مباركپوري استماع او سماع يو ګړځولي دى. حالانكه د نهم اعتراض د جواب لاندې د استماع او د سماع فرق واضح شو

۲) د ابن الهمام تفسير بعينه د قرآن كريم، د صحيحو احاديثو او د جمهور امت تفسير دى.

۳) كه مباركپوري په دوكه كي مبتلا وي چي د استماع څخه سماع مراد ده نو مخكي بيان شو چي د استماع او سماع په منځ كي د زمكي او د آسمان فرق دى، او كه دا پدي غلط فهمي كي مبتلى وي چي د انصات لپاره بغير د سماع څخه تحقق نشته، نو دا هم باطله ده ځكه چي د انصات په مفهوم كي من وجه

استماع او توجه شامله ده، ليکن سماع پکي هيڅکله نه ده شامله، په يو حديث کي داسې راځي چې: و ان نــأي و جلس حيث لا يسمع فأنصت و لم يبلغ كان له كفل من الاجر. ابو داود ج ١ صـ ١٥١].

د دې حديث څخه معلومه شوه چې د انصات لپاره سماع شرط نه ده، همدارنګه پکې استماع او توجه هم من وجه شامله ده. انصات بغير د استماع څخه هم راځي او سره د استماعه هم راځي، حافظ ابن حجر ليکي چې: فالا نصات هو السكوت وهو يحصل ممن يستمع و ممن لا يستمع كان يكون مفكرا في أمر أخر. بحواله فتح الملهم ج ٢ صـ ٢٠].

## مسئلة د قرائت خلف الامام د احاديثو په رڼا کې

**اول حديث** : عَنْ أَبِيْ مُوسَى الاشعرى رضي الله عنه قَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَنَا فَبَيَّنَ لَنا سُنَّتَنَا، وَعَلَّمَنَا صَلَاتَنَا، فَقَالَ: " إِذَا صَلَّيْتُمْ فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ، ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ فَإِذَا كَبَّرَ الْإِمَامُ فَكَبِّرُوا، واذا قَرَأَ فَانْصِتُوْا وَإِذَا قَالَ {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] فَقُولُوا: آمِينَ. (صحيح مسلم ص ١٧٤ ج ١، وابوداودشريف ج ١ص ١٤٠، وابن ماجه ص ٦١، مسندابوعوانة ج ٢ص ١٣٣، بهيقى ص ١٥٥ ج ١، دار قطنى ج ٢ص ٣٢٨، محلي ابن حزم ج ٣ صـ ٢٤٠ مشكوة ج ١ صـ ٨١ جامع صغير اللسيوطي صـ ٣٠ مغني ابن قدامه ج ١ صـ ٦٠٢ فتاوي ابن تيميه ج ٢ صـ ١٤٤ نيل الاوطار ج ٢ صـ ٢٤٩ نصب الرايه ج ٢ صـ ١٤ توجيه النظر صـ ٢٤٠ شرح بلوغ المرام ج ١ صـ ٢٤٥ فتح الباري ج ٢ صـ ٢٠١ زهرالربي ج ١ صـ ١٤٦ درايه صـ ٩٩ ابن كثير ج ٢ صـ ٢٨٠ اعلاء السنن ج ٤ صـ ٤٢ كتاب القراءت صـ ٨٧ كنز العمال ج ٢ صـ ٦٦ و ١٨٦ فتح القدير ج ١ صـ ٢٤١ شرح وقايه صـ ٨٣ عون الباري ج ٢ صـ ٣٦٤ عون المعبود ج ١ صـ ٣٢٥ عمدة القاري ج ٣ صـ ٧٠ آثار السنن ج ١ صـ ٨٥ الجوهر النقي ج ١ صـ ١٥٣ جزء القراءة صـ ٥٦ تنوع العبادات صـ ٨٦ وغيره، واحسن الكلام في ترك القراءة خلف الامام ص ٢٣٥)

د حضرت ابى موسى اشعرى رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ مونږ (صحابه کرامو) ته خطاب وفرمايلو، نو مونږ ته يې د سنتو تعليم راکړو، او دلمانځه د اداء کولو طريقه يې راته وښودله، نووى

فرمايل چې اول ( دلمانځه دشروع کولو څخه مخکې ) صفونه برابر کړئ، بيا دې يو شخص امامتي درکړي، نو کله چې هغه امام تکبيروواثي نو تاسو تکبيروواثي، اوکله چې امام قراءت کولو، نو تاسو چپ اوسئ، اوچې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائې .

**وجوه استدلال:**

محترمولوستونکو! دا حديث صحيح، صريح، اومرفوع دی، اوداحنافو لپاره ښکاره او واضح دليل دی، په دې حديث کې رسول الله ﷺ ډېر اهتمام سره دلمانځه طريقه بيان کړې ده، اوپه لمانځه کې يې دامام او دمقتدي وظائف او ذمه وارۍ په ډېروضاحت او صراحت سره بيان کړې دي، چې هيڅ شک اوشبهه په کې نه پاتې کيږي .

رسول الله ﷺ دامام وظفيه خودلې ده چې ( قراءت کول ) دي، اودمقتدی وظيفه يې هم خودلې ده چې (صرف چپ ودريدل ) دي . امام بخاري رحمه الله د (لاتحرک به لسانک) لاندې ليکلي دي چې فاستمع له وانصت (بخاري ج ۱صـ صـ ۳) نو شوندې خوزول د استماع او د انصات سره منافي دي، همدارنګه امام بيهقی رحمه الله فرمايي چې (لافرق بين السکوت والانصات (کتاب القراءت صـ ۸٤)

چونکه دا روايت مطلق دی، سري او جهري دواړو لمونځونو ته شامل دی، لهذا ددې حديث په بناباندې دمقتدی لپاره په هيڅ لمانځه کې دقراءت ګنجائش نشته دی، سرّي وي اوکه جهري وي .

دحضور ﷺ مقصد دامام او دمقتدي په وظايفو باندې رڼا اچول وو، نو دانا ممکنه ده چې رسول الله ﷺ دامام يادمقتدي وظايف پريښي وي، ځکه که داسې وشي نو په تبليغ داحکامو کې به کوتاهي راشي، اوپه پيغمبر ﷺ کې داکوتاهي ناممکنه ده، اوداهم ناممکنه ده چې دمقتدي داحکامو دبيانولو په وخت کې دمقتدي خپل حکم بيان نه کړي، بلکه دده دحکم عکس بيان کړي. مثلاکه دمقتدي په ذمه باندې دامام پسې قراءة فرض وي نو دانا ممکنه وه چې رسول الله ﷺ ورته دقراءة دکولو په ځای دقراءة دنه کولو امر کړی وي .

(۲) - دامام او دمقتدی په مابین کې چې کوم اقوال او افعال مشترک دي، هغه رسول الله ﷺ په ښه تشریح او توضیح سره بیان کړي دي. مثلاً تکبیر تحریمه دامام او دمقتدی په مابین کې مشترکه فریضه ده رسول الله ﷺ يې داسې بيانوي چې (اذا كبّر فكبّروا) چې کله امام الله اکبر ووائي نو تاسو هم الله اکبر ووائي.

رکوع مشترکه فریضه ده رسول الله ﷺ يې داسې بيانوي چې. (اذا ركع فاركعوا) چې کله امام رکوع وکړي نو تاسو هم رکوع وکړئ.

سجده مشترکه فریضه ده رسول الله ﷺ يې په يو حديث کې داسې بيانوي (اذاسجد فاسجدوا) چې کله امام سجده وکړئ، نو تاسو هم سجده وکړئ، نو کله چې رسول الله ﷺ دامام او دمقتدي مشترک فرائض بيانول او قراءة ته هم غير مقلدين مشترک فرض وائي.

نو دلته يې ولې د مقتدی لپاره داسې ونه فرمايل چې کله امام قراءت وکړي تاسو هم قراءت وکړئ. (اذاقرء فاقرءوا) ؟

بلکې د قراءة ضد انصات يې ذکر کړو، نو که قراءت دمقتدي لپاره فرض وي، نو د( اذا كبر فكبروا واذاركع فاركعوا) په شان يې ( اذاقرء فاقرءوا) ولې نه ويلي، او داسې يې ولې ويلي چې (اذاقرء فانصتوا) ؟

(۳) - رسول الله ﷺ ددې حديث په اخر کې داسې فرمايلي دي چې : اذاقال غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين فقولواامين.

يعني چې کله امام غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين ووائي، نو تاسو امين ووائي، نو که قراءة په مقتدی باندې فرض وی، نو رسول الله ﷺ به داسې ويلي وو، چې : اذاقلتم غيرالمغضوب عليهم ولا الضالين فقولواامين.

چې کله تاسو غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين وويلو نو وروسته امين ووائي.

لکه څرنګه چې ( فقولوا امين ) کې ( قولوا ) صيغه د جمع ده، همدارنګه يا ( قلتم ) صيغه د جمع پکاروه. د مسلم شريف جلد اول ص ۱۷۶ کې په روايت کې الفاظ داسې دي چې ( اذاقال القارئ غيرالمغضوب عليهم ولا الضالين فقال من خلفه امين . چې کله دلوستلو والا غيرالمغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو کوم خلک چې دده څخه وروسته ولاړ دي هغوي دې امين ووائي .

په دې حديث کې دلوستلو نسبت صرف امام ته شوی دی، دا ددې خبرې واضح دليل دی چې د سورة فاتحې لوستل صرف دامام فريضه ده، د مقتدي کار صرف خاموشي او توجه کول دي، البته د امين په ويلو کې مقتدي دلوستلونکي ( امام ) سره برابر شريک دی .

داحديث بلاغباره صحيح دی : امام احمد بن حنبل ورته صحيح ويلي دي : (مسند احمد، ج۲\ ص: ۳۸۶) امام مسلم ورته صحيح ويلي : ( مسلم، ج۱\ ص : ۱۷۴، درايه، ص: ۹۴) امام نسائی ورته صحيح ويلي : (فتح الملهم، ج۲\ ص : ۲۲) امام ابن تيميه ورته صحيح ويلي : ( فتاوی ص : ۴۱۲، وتنوع العبادات ص: ۸۶) حافظ ابن حجر ورته صحيح ويلي : ( فتح الباری، ج۲\ ص : ۲۰۱) امام ابن خزيمة ورته صحيح ويلي. (برهان العجايب ج۱\ ص : ۱۰۴) .

دغير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان ورته صحيح ويلي دي : (عون الباری، ج۱\ ص : ۳۲۳ ) اوددوي څخه ماسوی په لسګونو محدثينو ورته صحيح ويلي دي، چې دبعضو نومونه سره دحوالو په احسن الکلام فی ترک القرائة خلف الامام، ص: ۲۵۷ الی ص : ۲۵۹ کې کتلی شئ .

## د غير مقلدينو لخوا څخه په دې حديث باندې اعتراضونه اودهغوي څخه جوابونه

**اول اعتراض:** غيرمقلدين اعتراض کوي چې په دې حديث کې د( اذا قرء فانصتوا ) زيادت صحيح نه دی، ځکه چې همدغه حديث د حضرت انس ﷺ څخه هم روايت شوی دی اودبې بې عايشې

رضی الله عنها څخه هم روایت شوی دی. (ترمذی ج ۲ص ۷۲ ،بخاری ص ۱۵۰) او په دې دواړو روایتونو کې د ( اذاقرء فانصتوا) الفاظ نشته ؟

**جواب** : ددې جواب دادی: چې دا زیادت بې له شکه صحیح او ثابت دی، خپله امام مسلم رحمه الله ددې حدیث تصحیح کړې ده، او په مکمل صحیح مسلم کې دا یوا ځینې مقام دی چې امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ په صریحو الفاظو په کې د حدیث تصحیح کړی ده، او ددې علت دا وو چې کله امام مسلم د خپل کتاب املاء کوله او د اشعري رضی الله عنه د غې حدیث ته ورسیدلو په کوم کې چې د سلیمان التیمی رحمه الله په طریقه د (اذاقرء فانصتوا) الفاظ مروي دي، نو په دې وخت کې د امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ شاګرد ابوبکر بن اخت ابی النضر رحمه الله ددې حدیث د صحت په باره کې پوښتنه وکړه، نو امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ جواب ورکړو چې. ترید احفظ من سلیمان .او فرمائی انما وضعت ههنا ما اجمعوا علیه (مسلم ج ۱ص ۱۷٤/ باب التشهد في الصلوة )

یعنې د سلیمان څخه ډیر غټ حافظ نشته ، او د بی بی عایشی رضی الله عنها او د حضرت انس رضی الله عنه په حدیثونو کې د ( اذاقرء فانصتوا) د جملې عدم موجودیت مضر نه دی، ددې ډیر مثالونه په احادیثو کې شته چې د یو صحابي په حدیث کې د بل صحابي د حدیث څخه زیادة موجود وي، د دا سې احادیثو لپاره د (زیادة الثقة مقبولة ) قانون جوړ شوی دی ( قسطلاني ج۱ ص ۸ علامه حازمي کتاب الاعتبار ص ۲۰ ترمذی کتاب العلل ص ۲٤۰ ) علاوه لا دا چې د حضرت انس رضی الله عنه څخه په دوو نورو روایتونو کې دا زیادت مروي دی ، په یو روایت کې د ( اذاقرء فانصتوا) الفاظ دي . ( کتاب القراءة للبهیقی ص ۱۱۳ )

او په بل روایت کې په مذکوره حواله د ( اذاقرء الامام فانصتوا) الفاظ دي .

چې دو هم روایت په کې قابل د استدلال دی او په دې باندې شوي اعتراضونه او جوابونه په بې نظیر کتاب (احسن الکلام) ص ۲۳۹ څخه تر ص ۲۸۷ ) پورې کتلې شئ. دا کتاب علامه سرفراز خان صفدر رَحِمَهُ اللهُ لیکلی دی او په دې موضوع کې لا جواب کتاب دی .

## دوهم اعتراض:

غیر مقلدینو دوهم اعتراض دا کړی دی چې په دې حدیث کې سلیمان تیمی رَحِمَهُ ٱللَّهُ د قتادة رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه په روایت کولو کې متفرد دی، نو له دې وجهې د دې حدیث څخه دلیل نیول صحیح نه دي.

## (۱) جواب:

سلیمان تیمی رَحِمَهُ ٱللَّهُ د قتادة رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه د دې زیادة په نقل کولو متفرد ندی بلکې.

الف: عمر بن عامر رَحِمَهُ ٱللَّهُ: حَدَّثَنَا أَبُو حَامِدٍ مُحَمَّدُ بْنُ هَارُونَ الْحَضْرَمِيُّ، ثنا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْقُطَعِيُّ، ثنا سَالِمُ بْنُ نُوحٍ، ثنا عُمَرُ بْنُ عَامِرٍ، وَسَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ حِطَّانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ الرَّقَاشِيِّ، قَالَ: صَلَّى بِنَا أَبُو مُوسَى، فَقَالَ أَبُو مُوسَى: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُنَا إِذَا صَلَّى بِنَا قَالَ: «إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا (سنن دارقطنی ج ۱ص ۳۳۰ والسنن الکبری للبیهقی، ج ۲ص ۱۵۶ باب من قال یترک المامون القراءة)

ب: سعید بن ابی عروبة رَحِمَهُ ٱللَّهُ. (سنن دارقطنی ج ۱ص ۳۳۰ والسنن الکبری للبیهقی ج ۲ص ۱۵۶).

د حضرت قتادة رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه د دې زیادة په نقل کولو کې د سلیمان تیمي رَحِمَهُ ٱللَّهُ متابعت کړی دی، امام بیهقی رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام دارقطني رَحِمَهُ ٱللَّهُ اګرچې د عمر بن عامر رَحِمَهُ ٱللَّهُ او سعید بن ابی عروبه رَحِمَهُ ٱللَّهُ په روایت کې سالم بن نوح رَحِمَهُ ٱللَّهُ ضعیف ګڼلې دی. او د دوی د متابعت د نا اعتبار ګڼلو هڅه یې کړې ده، مګر علامه نیموی رَحِمَهُ ٱللَّهُ په اثار السنن (ص ۸۷) او مولنا سرفراز خان صفدر رَحِمَهُ ٱللَّهُ په احسن الکلام (ص ۲۴۰ / ۲۴۱) کې مسکت (چپ کوونکي) جواب ورکړي دي، او د سالم بن نوح رَحِمَهُ ٱللَّهُ روایت یې د استدلال قابل ګڼلی دی.

سالم بن نوح رَحِمَهُ اللّٰهُ څخه د مسلم په لاندې صفحو کې روایتونه دي. (ج ۱ ص ۲۳٦ باب من احق بالامامة- ۲۹۹ کتاب الفسوق – ۳۵۰ – ۳۵٦ – ج ۲ ص ۱۸٦ – ۲۲۴ – ۲۹۵ – ۳۴۴ – ۳۹۷ – ۳۹۸ وغیره) نو په ده د ضعف فتوی په ټول مسلم د ضعف فتوی ده.

ج : علامه نیموی رَحِمَهُ اللّٰهُ په تعلیق التعلیق کې بل تابع هم ورته ذکر کړی دی فرمائی : قلت ثم ظفرت بصحیح ابی عوانه بتوفیق الله تعالي فوجدت فيه متابعا اخر لسليمان التيمي قال حدثنا سهل بن بحر الجندنيسابوری قال حدثنا عبدالله بن رشيد حدثنا ابوعبيدة عن قتاده عن يونس بن جبير عن حطان بن عبدالله الرقاشي عن ابي موسي الاشعری ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذا قرء الامام فانصتوا واذا قال غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقولوا امين. (اثارالسنن، ص ۸۷) وفى البعض ۸٤ باب فى ترک القراءة خلف الامام فى الجهرية (صحيح ابن عوانة رقم ۱۳٤۱ بيان اجازة القراءة الخ

**(۲) جواب :** که و منو چې سلیمان تیمی رَحِمَهُ اللّٰهُ د قتادة رَحِمَهُ اللّٰهُ څخه په روایت کولو کې متفرد دی، نو بیا دا وایو چې سلیمان بن تیمی رَحِمَهُ اللّٰهُ ثقه دی. [ مسلم / ج ۱ / ص ۱۷٤/ درایه/ ص ٩٤/ تهذیب التهذیب / ج ٤ / ص ۲۰۲ / تذکره / ج ۱ / ص ۱٤۲ ]. او زیادة د ثقه مقبول دی . [ قسطلاني / ج ۱ / ص ۸/ کتاب الاعتبار / ص ۲۰ / کتاب العلل/ ج ۲/ ص ۲٤۰ / ان الزيادة من الثقة مقبولة مستدرک/ ج ۱ / ص ۳۰ کتاب العلم/ شرح نخبة الفكر / ص ۳۷/ توجيه النظر/ ص ۲٦۳ / تحفة الاحوذی/ ج ۱/ ص ۲۰۵/ والزيادة مقبولة بخاری/ ج ۱/ ص ۲۰۱ باب العشر فيما يسقى من ماء السماء والماء الجاري / تدريب الراوی/ ص ۱۵٦ ].

**(۳) جواب :** د محمد انورشاه کشمیري رَحِمَهُ اللّٰهُ د خبرې لنډیز دا دی : چې د ( انما جعل الامام ليؤتم به ) حدیث د څلورو اصحابو کرامو رضوان الله علیهم څخه مروی دی، د حضرت ابوهریرة ﷺ او حضرت ابوموسی اشعری ﷺ په حدیث کې دا کلمه شته چې ( اذا قرء فانصتوا ) او د حضرت انس ﷺ او حضرت بی بی عایشی رضی الله عنها په حدیث کې دا زیادة نه دی موجود.

ددې وجه داده چې رسول الله ﷺ دوه ځلې دا ارشاد فرمایلی دی، یو ځلې یې په پنځم کال د هجرت په واقعه د وقوع عن الفرس کې، کله چې نبی کریم ﷺ په ناسته لمونځ کولو او صحابه وو رضوان الله علیهم ورپسې په ولاړه لمونځ کولو، نو رسول الله ﷺ هغوی ته په ناستې د لمانځه کولو اشاره وکړه، او د لمانځه نه وروسته یې ورته دا حدیث وفرمایلو، او ددې حدیث په اخرکې یې ورته وفرمایل: د حضرت بی بی عایشې رضی الله عنها په روایت کې الفاظ داسې دي چې: اذا صلي جالسا فصلوا جلوسا. (ابوداو ج ص۸۹ باب الامام يصلي من قعود) او د حضرت انس ﷺ په روایت کې الفاظ داسې دي چې: واذا صلي قاعدا فصلو قعودا اجمعون (ترمذی، ج۱ ص ۷۲) په دې حدیث کې د رسول الله ﷺ اصل مقصد دا وو چې: کله امام په ناستې لمونځ کوي نو مقتدیان دې هم ورپسې په ناسته لمونځ کوي (اګرچې دا حکم بیا د رسول الله ﷺ د مرض وفات په واقعه باندې منسوخ شو ځکه چې هلته رسول الله ﷺ په ناسته لمونځ کولو او صحابه ورپسې ولاړوه).

او د بعضو نورو ارکانو ذکر یې ضمناً وکړو. حاصل دا چې دلته استیعاب مقصود نه وو، نو ځکه رسول الله ﷺ په دې موقعه د ( اذاقرء فانصتوا) د جملې ذکر ونه کړو، او په دې وخت کې حضرت ابو هریرة ﷺ او حضرت ابو موسی اشعری ﷺ په مدینه منوره کې نه وو، ځکه واقعه د سقوط عن الفرس په پنځم کال د هجرت باندې وه، او حضرت ابو هریرة ﷺ په اوم کال د هجرت باندې ایمان راوړي وو، او حضرت ابو موسی اشعری ﷺ په حبشو کې وو او دا مبارک هم په اووم (۷) کال د هجرت مدینې منورې ته راغلو.

دوهم ځل رسول الله ﷺ په اوم (۷) کال د هجرت، یا د اوم کال څخه هم وروسته دا ارشاد وفرمایلو، او په دې حدیث کې د رسول الله ﷺ مقصد دیوې قاعدې کلیې بیانول وو، چې مقتدي ته د امام متابعت پکار دی نو له همدی کبله رسول الله ﷺ په ټولو ارکانو کې د متابعت طریقه وښودله، او د اذاقرء فانصتوا کلمه یې په کې زیاته کړه. نو د حضرت انس ﷺ او د حضرت عایشې رضی الله عنها د حدیث واقعه جدا ده او سیاق یې هم مختلف دی او د حضرت ابو موسی ﷺ او حضرت ابو هریرة ﷺ د حدیث

واقعه او سياق جدا دی، نو په يو کې د( اذاقرء فانصتوا) دعدم موجوديت ثخه دا نه لازميږي چې په دوهم کې دديې وجود ضعيف دی.

دحضرت ابو موسى اشعرى ﷺ په دې روايت کې د( اذاقـــرء فانصـــتوا) دجملې دصحيح ګڼونکو محدثينو فهرست سره دحواله په (احســن الـكلام )ص ۲۵۷ ثخه تر ۲۵۹) پورې کتلی شئ. لا مذهبان په قتاده رَحِمَهُ اللهُ هم اعتراض کوي چې: قتاده رَحِمَهُ اللهُ مدلس دی. [تحقيق الكلام/ج ۲/ص ۸۱]. او په سليمان التيمى هم د تدليس اعتراض کوي.

**جواب:**

۱ - سليمان التيمى او قتاده رَحِمَهُ اللهُ د بخاري او د مسلم ثقه راويان دي او په بخارى او مسلم کې ترينه ډېرې عنعنې دي. وګوره: [بخارى /ج ۱ / ۱۵۳ = ۱۵۴/ج ۱ / ص ۴۶۱ / ج ۲ / ص ۷۹۰ = ۷۹۱ = ۷۹۴].

۲- د مدلس تدليس په صحيحينو کې مضر نه دی امام نووي رحمه الله فرمايي واعلم ان ماكان فى الصحيحين عن المدلسين بعن ونحوها فمحمول على السماع من جهة اخرى [ مقدمه نووى / ص ۱۸ / ج ۱ / ص ۲۰۹ / فتح المغيث / ص ۷۷ / تدريب الراوى / ص ١٤٤ ].

۳- سليمان التيمى وحدثنا قتادة په الفاظو تصريح کړې ده حَـدَّثَنَا عَاصِـمُ بْـنُ النَّضْرِ التَّيْمِيُّ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي(السليمان التيمى) حَدَّثَنَا قَتَادَةُ..... ابوداؤد ج ١صـ ١٤٧)

حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بن الاشعث السجستانى قال حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ النَّضْرِ التَّيْمِيُّ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي(السليمان التيمى) حَدَّثَنَا قَتَادَةُ.(صحيح ابى عوانة رقم ١٣٣٩) قتادة په هغو مدلسينو کې دی چې دهغوي په هيڅ کتاب کې هم د حديث دصحت سره منافي نه دی معرفت علوم الحديث للحاكم ص(١٠٣،والاحكام لابن حزم ج ٢صـ ١٤١، فصل من يلزم قبول نقله الاخبار)

لامذهبه زبیر علی زی مجبور شوی دی او اقراریې کړی دی چې دا حدیث صحیح دی (نصر الباری ازعلی زی ص ۲۸۳)

## (۲) دوهم حدیث

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رضي الله عنه: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا، وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ (نسائی شریف جلد ۱ ص ۱۰۷ _ ابن ماجه شریف ص ٦١) (طحاوی شریف ص ۱۲۸ مشکوة شریف ص ۸۱) ابوداود ،ج١ ص : ۸۹ ، مسند احمد،ج١٤ ص : ٤١٥ ،جزء القراءة ، ص: ٥٦ ، کتاب القراءة ، ص: ۹۱ ، مسلم ،ج١ ص: ١٧٤ )

دحضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې امام ددې لپاره جوړ شوی دی چې دده پسې اقتداء وکړې شي، پس کله چې هغه (امام) الله اکبر ووائي نو تاسو الله اکبر ووائي، او کله چې هغه قراءة کوي، نو تاسو چپ و دریږئ، او کله چې هغه سمع الله لمن حمده ووائي نو تاسو ربنا لک الحمد ووائي.

په دې حدیث کې هم رسول الله ﷺ په واضحه طریقه بیان کړی دی، چې د امام وظیفه قراءة کول دي. او دمقتدی وظیفه چپ و دریدل دي، او دا حدیث هم د مخکې په شان مطلق دی، سِري او جهري دواړو لمونځونو ته شامل دی.

## د غیر مقلدینو لخوا په دې حدیث باندې د اعتراضونو څخه ځوابونه

غیرمقلدین اعتراض کوي چې دحضرت ابوهریرة رضي الله عنه په دې روایت کی د (اذاقرء فانصتوا) په زیادت کې خالد احمر رحمه الله متفرد دی.

**اول جواب :** خالد احمر بالاتفاق ثقه دی (بغداد ،ج۹ ص : ۲۲ وتهذیب التهذیب ،ج۴ ص : ۱۸۱ تذکره ،ج۱ ص : ۲۵ ) وزیادة الثقة مقبولة .

**دوهم جواب :** په نسائی ( جلد اول ص ۱۴۶) د (تاویل قوله تعالی واذاقرئ القران الـخ ) دعنوان لاندې محمد بن سعد انصاری رَحِمَهُ اَللّٰهُ چې ثقه دی دده متابعت کړی دی.

أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنُ الْمُبَارَكِ رحمه الله قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنِ سَعْدٍ الْأَنْصَارِيُّ رحمه الله قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ رحمه الله، عَنْ زَيْدِ بْنُ أَسْلَمَ رحمه الله، عَنْ أَبِي صَالِحٍ رحمه الله، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا» قَالَ أَبُو عَبْدِالرَّحْمَنِ رحمه الله: كَانَ الْمُخَرِّمِيُّ يَقُولُ: هُوَ ثِقَةٌ يَعْنِي مُحَمَّدَ بْنَ سَعْدٍ الْأَنْصَارِيَّ. (سنن النسائی ج ۱صـ ۱٦٤، باب تاویل قوله تعالی واذا قرء اقرآن)

همدا وجه ده چې کله د امام مسلم رَحِمَهُ اَللّٰهُ څخه د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه د حدیث په باره کې پوښتنه وشوه، نو هغه وفرمایل چې د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه حدیث زما په نیز صحیح دی (ج۱\ص:۱۷۴) نو د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه حدیث بالکل بې غباره دی.

**دوهم اعتراض:** د ابو هریره رضی الله عنه په حدیث کې محمد بن عجلان مدلس دی، همدارنګه د ختلاط ښکار دی؟

قلنا: د اول شق جواب دا دی محمد بن عجلان د صحیح بخاري معلقا او د صحیح مسلم او د سننو اربعه وو راوي دی، ثقة عند الجمهور، صدوق وکثیر الحدیث تهذیب لابن حجر ج ۵صـ۲۲۵، علامه شمس الدین الذهبی د محمد بن عجلان د معنعن حدیثونو تصحیح کړی ده.

۱- حدثنی ابن عجلان عن القعقاع، تعلیقات الذهبی فی التلخیص ج ۱صـ ٤٣)

۲-حدثنا ابن عجلان عن سعید المقبری (حواله بالا ج ۱صـ۱۳۱)

۳-عن محمد بن عجلان عن سمی (حواله بالا ج ۱صـ ۳۵۲

٤- عن بان عجلان عن عیاض بن عبد الله ایضا (ج ۱صـ ۳۸۲)

او دوهم شق جواب دای ۱- : چې بعضې علماء وو د محمد بن عجلان په روایاتو کلام کړی دی لکن
،هغه و روایاتو کې دی چې په طریقه د سعید المقبری عن ابی هریره وي، کتاب العلل للترمذي ج
۔ ۷۱۶، تهذیب التهذیب ج ۵صـ ۲ ۷۴، بیا هم ابن حبان او علامه ذهبی ددې ډیر سخت تردید کړی
، (تهذیب التهذیب ج ۵صـ ۷۴۲) امام ابن حبان فرمایي چې فهذا مما حمل عنه قدیما قبل اختلاط
ىيفة (تهذیب التذهیب ج ۵صـ ۷۴۲) نو خو اعتراض د سعید مقبري په طریقه دی چې اما مانو
ب ورکړی دی او زمونږ روایت د سعید مقبری په طریقه ندی بلکې د زید بن اسلم په طریقه دی.

۲- امام نووي رحمه الله د مختلط راوي لپاره یو قانون باینوي چې: وحکم المختلط أنه لا یحتج
روی عنه فی الاختلاط اوش ک فی وقت تحمله ویتحج بما روی عنه قبل الاختلاط، وماکان فی
ىحیحین عنه محمول علی الأخذ عنه قبل اختلاطه (تهذیب الاسماء واللغات للنووي ج ۱صـ ۲۴۲)

۳- همدا رنګه د محمد بن عجلان دوه متابعه موجو دي یو خارجه بن مصعب وقد رواه خارجة بن
ىعب ایضا یعنی عن زید بن اسلم دوهم یحیی بن العلاء، وقد رواه یحیح بن العلاء الرازی کما رواه
سنن الکبری للبیهقی ج ۲صـ ۱۵۷)

**دریم اعتراض :** غیر مقلدین دوهم اعتراض دا کوي چې دابو موسی اشعری ﷺ او دابو هریرة ﷺ
... کړې د ( اذا قرء فانصتوا ) څخه مراد د مازاد علی الفاتحه قرات دی، یعنې چې کله امام
ومقتدي د الحمد لله د قراءت څخه فراغ شي نو بیا دې امام قراءت کوي او تاسو چپ و دریږئ، ځکه چې
ذا قراء فانصتوا عام دی او د حضرت عبادة رضی الله تعالی عنه حدیث د سورة فاتحې پورې خاص دی.
تحفة الاحوذی (ج۱\ص: ۲۶۰ ] همدا اعتراض فتح الباری (ج۲ص: ۱۹۲) هم نقل کړی دی.

**جواب :** دا تاویل قطعاً باطل دی، ځکه چې په صحیح مسلم، ص: ۱۷۴ او په ابو عوانه، ج۱\
۱۳۳) کې د حدیث الفاظ دا سې دي چې: (واذا قرء فانصتوا واذا قال غیر المغضوب علیهم ولا الضالین

فقولـوا آمـين ) اول امر په انصات شوی دی او بیائی وروسته فرمایلي دي چې : ( واذا قال غير المغضوب ...الخ

نو مقابل طرف دې ووايي چې: د غير المغضوب عليهم ولا الضالين څخه مخکې کوم قرائت دی چې د امام وظيفه په کې لوستل او د مقتدي وظيفه په کې چپ اودريدل دي ؟

کيدی شي چې دوي به د ثناء په ځای کې سورة ياسين ته سنت وايي ، چې امام به يې لولي او مقتديان به ورته چپ ولاړ وي .

حاصل دا چې په دې حديث کې د مقتدي لپاره د سورة فاتحې د قرائت څخه د ممانعت حکم اولاً وبالذات دی ، او د ما بقی قراٰن د قرائت ممانعت ثانياً وبالتبع دی .

**فان قيل :** چې غير مقلدين ليکي چې واو د مطلق جمع لپاره دی په ترتيب دلالت نه کوي ؟

**قلنا اولاً :** دا خبره صحيح نه ده چې: واو په ترتيب دلالت نه کوي ځوک چې وايي واو د ترتيب لپاره نه دی، د دې معنی دا ده چې ترتيب ضروري او واجب نه دی، دا معنی يې هيڅکله نه ده چې ترتيب ناجايز او حرام دی.

**وثانياً :** اګر چې جمهور ايمه فرمايي چې واو د ترتيب لپاره نه دی لکن بعضې اکابر ايمه رحمهم الله فرمايئ چې واو د ترتيب لپاره دی.

صاحب د مغنی اللبيب فرمائی چې : قطرب ، ربعی ،فراء ، ثعلب ، ابو عمرو الزاهد ، هشام او امام شافعي رحمهم الله فرمايی چې واو مفيد د ترتيب دی . (مغنی اللبيب ج١٢ص : ٣١ )

همدارنګه علامه رضی فرمائی چې : (ونقل بعضهم عن الفراء و الكسائی و ثعلب والربعی و ابن درستويه و به قال بعض الفقهاء انها للترتيب ) ( ج٢ \ص : ٣٠٦) همدا خبره امام نووی هم کړه ده : ( مسلم ،ج١\ص : ٣٢ )

**وثالثاً :** په حديث کې درې جملې دي:

(۱) إِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا

(۲) وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا

(۳) وَإِذَا قَالَ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَقُولُوا آمِين.

نو چې واو مفید د ترتیب لپاره نه دی، نو بیا خو دریمه جمله د اولې څخه هم مخکې کړه، اول غیر المغضوب علیهم ولا الضالین و وایئ، بیا په اذا کبر فکبروا عمل وکړئ او بیا اول په اذا قراء فانصتوا عمل وکړئ، بیا په اذا کبر فکبروا عمل وکړئ

## (۳) دریم حدیث

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةٍ جَهَرَ فِيهَا بِالْقِرَاءَةِ فَقَالَ: «هَلْ قَرَأَ مَعِي أَحَدٌ مِنْكُمْ آنِفًا؟» قَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ: «إِنِّي أَقُولُ مَا لِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ» قَالَ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ فِيمَا جَهَرَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِرَاءَةِ مِنَ الصَّلَاةِ حِينَ سَمِعُوا ذَٰلِكَ من رسول الله ﷺ .. (ترمذی، ج ۱ص ۶۵) باب ماجاء في ترک القراءة خلف الامام اذا جهر بالقراءة)..(نسائی، ج ۱ص ۱۴۶) ترک القراءة خلف الامام فیماجهربه)( موطاامام مالک ص ۶۹) ترک القراءة خلف الامام فیماجهربه) (ابوداود، ج ۱ص ۱۲۰) باب من رای القراءة اذالم یجهر)( ابن ماجه، ص ۶۱) باب اذاقرء الامام فانصتوا) (سنن کبری للبهیقي، ج ۲ص ۱۵۷) (کتاب القراءة للبهیقي ص ۱۱۷ رقم الحدیث ۲۹۳) (جزء القراءة خلف الامام للبخاری ص ۸۱ رقم ۱۷۳)

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې نبی علیه السلام د یو جهری لمونځ څخه فارغ شو نو پوښتنه یې وکړه چې ایا په تاسو کې چا زما پسې قراءة کړی دی؟ (سره د دینه چې ټول صحابه موجود وو) په دوی کې صرف یو سړي و ویل چې هو یا رسول الله ما ستاسو پسې قراءت کړی دی.

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ما په زړه کې ويل چې ولې زما سره د قرآن په قرائت کې جګړه روانه ده؟ دا منازعت او کشمکش ولې کيږي؟ د دې ارشاد څخه وروسته صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين منعه شول د قراءة څخه د رسول الله ﷺ سره په جهري لمونځونو کې، کله يې چې دا خبره د رسول الله ﷺ څخه واوريدله (انازع اى اداخل فى وأشارك وأغالب عليه) د بل چا په حق کې مخاصمه کول، دا د سهار د لمانځه واقعه وه. (سنن کبری للبهيقي ج ۲ص ۱۵۷ سنن ابی داوٗد، ج ۱ص ۱۳۰)

چې تمام صحابه کرام په کې موجود وو، ليکن د نبی ﷺ پسې قرائت کونکې صرف يو سړی وو، چې هغه هم د دې قراءت په وجه د رسول الله ﷺ له طرفه تهديد شو.

که چيرته د امام پسې قرائت فرض وی، نو رسول الله ﷺ به د دې فرض ادا کونکي ته تهديد نه ورکولو، بلکې هغه ته به يې افرين او شاباسی ويلی وی.

د غير مقلدينو په نيز د غه قرائت کونکی صحابي ﷺ د فرضو ادا کونکی وو، او باقي ټول صحابه رضوان الله عليهم چې قرائت يې نه کولو تارکين د فرضو وه، نو مونږ د غير مقلدينو څخه پوښتنه کوو چې: مناسب خو دا ده چې تارک د فرضو ته تهديد ورکړل شي، نو رسول الله ﷺ ولې دلته اداء کونکي د فرضو ته تهديد ورکړی دی او تارکينو د فرضو ته يې هيڅ هم نه دي ويلي؟

مونږ د غير مقلدينو څخه پوښتنه کوو چې رسول الله ﷺ خپلو مقتديانو صحابه وو ته د قرائت کولو امر کړی وو او که نه؟ که کړی يې وي نو بيا د امر منونکي ته تهديد ورکول څه معنی لري؟

ايا دا ممکنه ده چې رسول الله ﷺ دی يو ځلې د يوې خبرې امر وکړي او بيا دی د دې امر منونکی تهديد کړي؟

همدا رنګه دا راته ووائي چې هغه صحابه رضوان الله عليهم چې د نبوة د شمعې پتنګان وو او د رسالت د لمر فدايان وو، هغه صحابه رضوان الله عليهم چې د رسول الله ﷺ په ادنی اشاره باندې په

زړګونو واري ځان قربانولو ته تیاروو، څرنګه ممکنه ده چې په دې ټولو کې دې صرف یو صحابي د رسول الله ﷺ امر منلی وي او باقي ټولو دې مخالفت کړې وي؟

همدارنګه د اهم وو ائي چې تا... د امام پسې قراءة ته فرض وائي حالانکه په همدغه قراءة باندې رسول الله ﷺ د خفګان اظهار کړې دی، او یو صحابي یې و رباندې تهدید کړی دی نو کوم شی چې د رسول الله ﷺ د خفګان سبب وي څرنګه فرض کیدې شي؟

په دې حدیث کې د منع د قرائت درې دلیله دی:

۱-هل قرأ معي احد منكم؟ استفهام انکاري دی.

۲-مالي أنازع القرآن؛ ولې زما په حق کې مخاصمه کیږي؟ نو معلومه شوه چې قراءت د امام حق دی مقتدی ته پکې مداخله نه دی جایزه.

۳- فانتهى الناس په دې مسئله کې نص دی.

## په دې حدیث باندې دلامذهبو اعتراضونه او دهغې ځخه جوابونه

**اول اعتراض:** غیر مقلدین اول اعتراض دا کوي چې د دې حدیث مدار په (ابن اکیمة اللیثي) باندې دی او هغه مجهول دی.

**اول جواب:** ابن اکیمة اللیثي ثقه راوي دی، او ډیرو محدیثنو د ده توثیق کړی دی.

او قاعده دا ده چې د کوم راوي توثیق محدثین وکړي، نو پر هغه باندې بیا د جهالت الزام نه لګیږي او د ابن اکیمة د غیر مجهول کیدلو لپاره غټ دلیل دا دی چې امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په موطا کې د ده روایت ذکر کړی دی او د ټول امت په دې اتفاق دی چې په موطا کې ټول روایتونه صحیح دي.

**دوهم جواب :** امام ماردیني رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائی چې د ابن اکیمه رحمه الله روایتونه په صحیح ابن حبان کې موجود دي، امام ترمذی دده روایتونو ته حسن وائي، او په ابوداؤد کې دده په روایتونو سکوت شوی دی او د امام ابوداود سکوت د حسن دلیل دی.

ابن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې ابن اکیمه د نهه نوي کالو په عمر په سنه ۱۰۱ ھ) کې وفات شوی دی.

ابن ابی حاتم فرمائی چې ما د خپل پلار څخه دده په باره کې پوښتنه وکړه هغه راته وویل چې (هو مقبول الحديث).

ابن حبان فرمائی چې دده نوم عماره دی او دوړ ورنوم یې عمر دی او دواړه ثقه دي ابن معین وائي چې دده څخه محمد بن عمر روایتونه کوي او کافي دی ستاد تسلی لپاره روایتونه د ابن شهاب دده څخه سعید بن المسیب رَحِمَهُ اللَّهُ به دده حدیثونو ته غوږنیول. (تهذیب التهذیب، ج۷\ ص : ٤١١، الجوهر النقی، ج۲\ ص : ١٥٨، ومرقات، ج۱\ ص : ٥٣٤)

ابن تیمیه ورته صحیح الحدیث ویلي دي (فتاوی ج۲\ ص : ١٤٥) حافظ ابن حجر ورته ثقه ویلي دي. (تقریب ص : ٢٧٦) مبارکپوري لیکلي چې هغه ثقه دی او د اوساطو تابعینو څخه دی (تحفة الاحوذی ج۱\ ص : ۲۵۴)

(وهذا كله ينفي الجهالة، وهكذا قال الجواهر النقي في ذيل السنن الكبرى للبهيقي، ج ٢ ص ١٥٨) باب من قال يترک المأموم القراءة فيماجهر فيه الامام بالقراءة)

**دوهم اعتراض :** دا کوي چې په دې حدیث کې د (فانتهي الناس عن القراءة مع رسول الله ﷺ) (جمله دامام زهری ادراج دی).

**اول جواب :** دا دامام زهری رَحِمَهُ اللَّهُ ادراج نه دی بلکې د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه قول دی لکه څرنګه چې په (ابوداود جلد اول ص ۱۲۰].

باب من رای القراءة اذا لم يجهر) کې دابن السراج په طريقه ددې تصريح شوی ده چې (وقال ابن السراج في حديثه قال معمرعن الزهری قال ابوهريرة ﷺ فانتهي الناس)

بعضې خلکو چې دامغالطه ذکر کړې ده چې دا جمله دامام زهری رَحِمَهُ اللهُ ادراج دی ددې سبب دابوداود څخه معلوميږي، امام ابوداود رَحِمَهُ اللهُ داسې فرمايلي دي چې ( قال سفيان وتكلم الزهري بكلمة لم اسمعها فقال معمرانه قال فانتهي الناس )

يعنې سفيان رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې کله امام زهری رَحِمَهُ اللهُ په خپله حلقه درس کې داحديث بيانولو نود (مالي انازع القران ) څخه وروسته جمله ماوانوريدله، نو ما دسبق دشريک ملګري معمر رَحِمَهُ اللهُ څخه پوښتنه وکړه چې استاذ څه وفرمايل ؟ نو معمر رَحِمَهُ اللهُ جواب ورکړو چې (انه قال فانتهي الناس ) نو څرنګه چې معمر رَحِمَهُ اللهُ ددې قول نسبت امام زهری رَحِمَهُ اللهُ ته وکړو نو ځينې خلکو په ذهن کې داخبره راغله چې دا دامام زهری خپله مقوله ده او حال دا چې دا په حقيقت کې د حضرت ابو هريرة ﷺ قول دی.

**دوهم جواب :** که په طريقې دفرض المحال داخبره ومنو چې دا دامام زهری ادراج دی نو بيا هم داخبره بديهی ده چې امام زهری رَحِمَهُ اللهُ به دصحابه کرامو عمل ليدلي وي، بيا به يې دا ارشاد فرمايلی وی.

**دريم جواب :** دا جمله د( فانتهي الناس عن القراءة ) داحنافو داستدلال لپاره موقوف عليه نده، بلکې ددوی استدلال د( مالي انازع القران ) څخه پوره کيږي.

**دريم اعتراض:** دا کيږي چې خپله دابو هريرة ﷺ څخه مروی دي چې دوي دقرائت خلف الامام په باره کې فرمايلي دي چې ( اقرابهافي نفسک )ترمذی ج ۱ ص ۶۵ ) ولوله الحمد الله په زړه کې.

**اول جواب :** د اقرابهافي نفسک معنی داده چې دتلفظ څخه پرته الحمد الله په زړه کې لوله، يعنې دامام قراءة ته مکمله توجه کوه چې ديته کلام نفسي وائي.

**دوهم جواب :** ( في نفسک ) کلمه کله د حالت دانفراد لپاره مستعمليږي نو (داقراء بهافى نفسک ) معنی دا شوه چې ( اقراحال کونک منفردا) او ددې نظيرشته، په يو حديث قدسي کې ذکرشوي دي چې

( فان ذكرني في نفسه ذكرته في نفسي وان ذكرني في ملاء ذكرته في ملاء خيرمنهم ) بخاری ، ج ۲ص ۱۱۰۱ ) كتاب الردعلي الجهميه . مسلم ج ۲ ص ۳۴۳ ) باب فضل الذكروالدعاء .

په دې حديث کې دفی نفسه تقابل د ( فی ملاء ) سره راغلی دی، چې دا خبره واضحه کوي چې دفی نفسه څخه دانفرادحالت مراذدی .

**دريم جواب :** داجمله د حضرت ابوهريرة ﷺ خپل اجتهاددی چې دمرفوعو احاديثو مقابله نه شي کولې ځکه چې ددوی اود شوافعو اصول دادي چې ( العبرة بماروى لا بماراى ) يعنې که چيرته دراوی فتوی دده دهغه روايت خلاف وي چې پخپله ده روايت کړی دی، نوعمل په حديث پکاردی دراوی فتوی ته اعتبارنشته .

**څلورم اعتراض :** غير مقلدين ليکي چې په دې حديث کې صرف په جهري لمونځ کې دامام پسې دقراءت څخه منعه راغلې ده . حالانکه احناف په سري او په جهري دواړو لمونځونو کې دقراءت څخه انکار کوي ، نودعوی عامه ده اودليل خاص دی .

**جواب :** صحيح ده چې مونږ دا وايو چې په جهري اوپه سِري دواړو لمونځونو کې مونږ قراءت خلف الامام ته مکروه تحريمي وايو ، لکن مونږ دا نه دي ويلي چې زمونږ دانکار لپاره صرف همدا يو حديث دليل دی ، په جهري لمونځونو کې دممانعت لپاره يو دليل داشو اونور دلايل څه مخکې تير شو او څه وروسته را روان دي .

**پنځم اعتراض:** غير مقلدين اعتراض کوي چې صحابه وو دنبي کريم صلی الله عليه وسلم پسې په جهر قرائت کولو ، ځکه نبي صلی الله عليه وسلم تهديد کړل؟

قلنا: ددې توجيه سره دنبي صلى الله عليه وسلم د اجملهمنافي ده چې: هل قرء معی احد منکم انفا، ځکه چې که صحابه وو په جهر قرائت کولی نو نبي صلى الله عليه وسلم ته به معلوم وو نو بيا يې پوښتنه ولې کوله؟

دا جمله خو په دې دلالت کوي چې نبي صلى الله عليه وسلم ته سبب د منازعت نه وو معلوم، دلته سبب د منازعت دا وو چې قرائت خلف الامام مکروه تحريمي دی او مقتديانو به چې مکروه عمل وکړو نو په نبي صلى الله عليه وسلم به اثر کيدلو لکه په يو بل حديث کې راځي چې (مابال أقوام لا يحسنون الطهور وانما يلبس علينا القرآن اولئک..

## (٤) څلورم حديث:

عَنْ جَابِرِ بن عبدالله ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَ لَهُ إِمَامٌ، فَقِرَاءَةُ الْإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ». (اللفظ لابن ماجه ص ١٦) واخرجه محمد في الموطاص ٩٨ _ ٩٩) (ابن ابي شيبه، ج ١ص ٣٧٦) (عبدالرزاق، ج ٢ص ١٣٦) (طحاوی، ج ١ص ١٠٦) (بهيقي في سننه ج ٢ص ١٦٠) (بهيقي كتاب القراءة، ص ١٢٤) (دارقطني ج ١ص ٣٢٣ _ ٣٢٤).

د حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې هغه څوک چې دامام په اقتداء کې لمونځ کوي نو دده لپاره دامام قراءة کافي دی.

يعنې کوم سړی چې دامام پسې لمونځ کوي نو دده لپاره د مستقل قرائت ضرورت نشته، بلکې دامام قرائت دمقتدي قرائت دی، او دامام لوستل دمقتدي لوستل دي، په دې حديث شريف کې هم دسري او دجهري قيد نشته، لهذا دا حديث کريمه دخپل عموم په بناء باندې هرلمانځه ته شامل دی.

فانقيل: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: طرق هذا الحديث كلها معلولة.

ددي حديث لپاره تقريبا څلويښت سندونه دي، نو دسندونو په اعتبار دا څلويښت حديثه شو چې اکثر په کې معلول دي مګر بعضې صحيح او قوي دي او هغه ضعيف هم دتعدد داسنادو ده وجې نه مرتبې دحسن ته رسيدلي دي، قوي په کې دا لاندې دي:

مسند احمد منيع، مسند احمد، مصنف ابن ابی شيبه، مصنف عبد بن حميد، موطاء محمد، مستدرک حاکم نو دحافظ رحمه الله خبره په خپله تتبع بناء ده، همدا رنګه دا حديث د اتو (۸) صحابه وو څخه روايت شوی دی، جابر، ابن عمر، ابو سعيد، ابو هريرة، ابن عباس، انس، علی او عمران بن حسين رضی الله عنهم. (معارف ج ۳ ص ۲۵۵) مولانا عبد الحی رحمه الله فرمايي چې: وتخلص منه ان بعض طرقه صحيحة او حسنة وبعضها صحيحة مرسلة مقبولة وبعضها ضعيفة ينجبر ضعفها بتعدد الطرق فارتفعت الی درجة الحسن وبه ظهر انه قول الحافظ ابن حجر فی تخريج احاديث الرافعی ان طرقه کلها معلولة ليس علی ما ينبغی وکذا قول البخاری فی رسالة القراءة خلف الامام انه حديث لم يثبت عند اهل العلم لايخلو من خدشات واضحة (التعليق الممجد ص ۹۸)

فانقيل: چې د له ضمير امام ته راجع دی؟

قلنا: د له ضمير مَن مبتداء ته راجع دی ځکه چې جمله خبر واقع شي نو عائد يې مبتداء ته راجع وي

## د غير مقلدينو يوې مغالطې ته غاښ ماتونکی جواب

غير مقلدين عوامو ته دا مغالطه ورکوي چې: د احنافو مقتديانو لمونځ بې فاتحې دی، ځکه چې دوی په امام پسې الحمد لله الخ نه لولي او رسول الله ﷺ فرمائي چې (لاصلوة لمن لم يقراء بفاتحة الکتاب) د هغه چا لمونځ نه دی صحيح چې الحمد لله ونه لولي.

کله کله احنافو ته وايي چې: تاسو داسې حديث راوړئ چې په هغه کې راغلي وي چې: بغير د فاتحې څخه د مقتدي لمونځ کيږي. او مونږ به داسې حديث راوړو چې په هغه کې راغلي وي چې: بې له فاتحې لمونځ نه کيږي.

نو رسول الله ﷺ د دې مغالطې د دفعه د اسې کړې ده چې د امام قراءت د مقتدي قرائت دی، نو حنفي مقتدي الحمد الله پرېښې نده، ځکه چې امام الحمد لله ولوستله، نو هم دا د مقتدي لوستل دي، بلکې د ده لپاره دوه اجره دي ځکه چې په بل حديث کې راځي چې د لوستونکي لپاره يو اجر دی او د اوريدونکي لپاره دوه اجره دي، د غير مقلدينو د دې دليل لپاره چې: ( لا صلوة لمن لم يقرء بفاتحة الكتاب ) به بې شميره جوابونه وروسته ذکر کړو .ان شاء الله تعالى . دا حديث بالکل صحيح دی امام حاکم په معرفت علوم الحديث ۲۳ نوعه کې دا حديث مشهور ګڼلی دی . (ص : ۹۲)

خو بيا هم په دې حديث يو څو اعتراضونه او د هغې ځنې چيکونکي جوابونه واورئ .

**اول اعتراض :** اول اعتراض دا کيږي چې د حديث حافظانو دا حديث په حضرت جابر ﷺ باندې موقوف ګڼلی دی او ويلي دي چې کوم ثقه راوي دا حديث مرفوع ندی ذکر کړی .

**جواب :** علامه الوسي رَحِمَهُ اللَّهُ د روح المعانی د سورة اعراف د دوه سوه او څلورم نمبر ايت لاندې ليکلي دي چې حضرت سفيان ثوری ، حضرت شريک ، حضرت جرير ، حضرت ابو الزبير رحمهم الله په صحيحو طريقو باندې دا حديث مرفوع ذکر کړی دی .

که يو ثقه راوي په رفع کې متفرد شي نو قبلولې واجب دی ، او چې تفرد نه وي لکه څرنګه چې دلته دی نو بيا خويې په طريقه اولى قبلول واجب دي . دا حديث امام الايمه ابو حنيفه ﷺ هم مرفوع ذکر کړی دی .

**دوهم اعتراض :** دا حديث د عبد الله بن شداد ﷺ بن الهاد ﷺ عن جابر بن عبد الله ﷺ په طريقه مروي دی .

(سنن دار قطنی ج ۱ ص ۳۲۴ ) او د حضرت عبد الله بن شداد ﷺ سماع د حضرت جابر ﷺ څخه نده ثابته .

**جواب :** د دې اعتراض جواب دا دی چې حضرت عبد الله بن شداد ﷺ صحابي دی ځکه چې حافظ ابن حجر ليکلي دي چې . ( ان له روئة ) ده رسول الله ﷺ ليدلی دي . (تقريب ص : ۲۰۲ فتح الباری ج ۳ ص : ۳۷ و ج ۴ ص : ۳۵۶ وهكذا فى الاستيعاب فى معرفة الاصحاب ، ج ۱ ص : ۳۹۹ ، وتهذيب التهذيب ،ج ۵ \ ص : ۲۵۲ )

نو په همدې اساس دا د جابر ﷺ معاصر دی، اګرچې په اصحابو کرامو کې د کثرانو صحابه وو له جملې څخه دی، نو دا حدیث صحیح علی شرط مسلم دی او که چیرته په طریقې د فرض المحال د عبدالله بن شداد ﷺ سماع د جابر ﷺ څخه ثابته نه شي، بیا به مرسل د صحابی شي، او مرسل حدیث حجت دی. (مقدمه مروی ص : ۱۷ ، توجیه النظر ص : ٢٤٥ ، والحطه ص : ١٠٦ و دلیل الطالب ص : ٣٢٥ ، زاد المعاد ج١ \ ص : ١٠٥ / کتاب العلل / ج ٢ / ص ٢٣٩)

او مرسل د صحابي خو اجماعاً حجت دی. (مقدمه فتح الملهم ص : ٣٤ ، نووی ص : ١٧ وص : ٢٨٤ وشرح مهذب ج٤ \ ص : ٤٨٣ ، وتدریب الراوي ص : ٦٦ ، والتعلیق الحسن ،ج٢ \ ص : ٧٧ ونیل الاوطار ج١ \ ص: ٣٤١ ودلیل الطالب ص: ٨٩٦)

**دریم اعتراض :** دریم اعتراض دا کیږي چې په (دارقطنی جلد اول ص ۳۲۵) وغیره کې دا حدیث د عبدالله بن شداد ﷺ عن ابی الولید ﷺ عن جابر بن عبدالله ﷺ په طریقه مروي دی د دې څخه معلومیږي چې عبدالله بن شداد ﷺ دا حدیث نیغ په نیغه د جابر ﷺ څخه نه دی اوریدلی، بلکې په مینځ کې د ابو الولید واسطه شته او ابو الولید مجهول دی.

**جواب :** د دې جواب دا دی چې ابو الولید پخپله د عبدالله بن شداد ﷺ اسم کنیه ده. (معرفة علوم الحدیث ص : ١٧٨ ، تاریخ بغداد ج٩ \ ص : ٤٧٣ جامع المسانید ج١ \ ص : ٣٣٨ ، تهذیب التهذیب ج٥ \ ص : ٢٥١] لسان المیزان ج٦ \ ص : ٢٢٨ تقریب ص : ٢٠٢)

په اصل کې روایت دا رنګې دی چې (عن عبدالله بن شداد ﷺ بن الهاد ابي الولید ﷺ عن جابر ﷺ)

مګر کوم کاتب په غلطي سره د ابی الولید څخه مخکې د (عن) لفظ زیات کړی دی او حقیقت دا دی چې د عبدالله بن شداد ﷺ او د جابر ﷺ په مینځ کې کومه واسطه نشته.

**څلورم اعتراض :** د دې حدیث مدار په امام ابو حنیفه، حسن بن عماره ،لیث بن ابی سلیم او جابر جعفی رحمهم الله باندې دی او دا ټول ضعیف دي. (دارقطنی جلد اول ص ۳۲۵)(کتاب القراءة للبیهقی ص ١٣٢ رقم ٣١٩).

**جواب** : په امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ باندې طعن او تور لګول خپله اعتراض کونکي مجروح کرځوي، دجرح او د تعدیل د ټولو څخه مخکني عالم چې د ټولو څخه مخکې يې په رجالو کلام کړی دی، هغه امام شعبة بن الحجاج رَحِمَهُ اللّٰهُ دی چې د امیر المومنین فی الحدیث په لقب سره مشهور دی هغه دده په باره کې فرمائي چې:( كان والله ثقة ثقة).

دجرح او د تعدیل دوهم لوی عالم یحیی بن سعید القطان رَحِمَهُ اللّٰهُ به د امام صاحب په قول فتوی ورکوله او فرمایل به يې چې ( انه لاعلم هذه الائمه بماجاء عن الله ورسول الله ﷺ).

او حسن بن عماره مختلف فيه راوي دی او صحيح خبره داده چې : دده احاديث حسن دي، او همدارنګې ليث بن ابی سليم هم مختلف فيه راوی دی. علامه هيثمی رَحِمَهُ اللّٰهُ په ډيرو ځايونو کې دده توثيق کړی دی او فرمايلي يې دي چې ( ثقة مدلس ) ( مجمع الزوايد ج ۲ ص ۱٦ ) باب فی المساجد المشرفة ).

او همدارنګې امام ترمذی رَحِمَهُ اللّٰهُ د باب التمتع لاندې دده ديو حديث تحسين کړی دی. ( ترمذی ، ج ۱ص ۱۳۲ ) ابوب الحج ) ( ترمذی ج ۲ص ۱۹۹ )

او هرچې جابر جعفي رَحِمَهُ اللّٰهُ دی نو دغه بې شکه چې ضعيف راوی دی، خپله امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ دده تضعيف کړی دی. ( اسن المطالب فی احاديث مختلف المراتب ص ۲۵۸ حرف لا )

ليکن د حديث مدار په ده باندې نه دی، بلکې زمونږ سره ددې حديث متعدد طريقې شته چې په هغې کې د پورتنيو راويانو څخه يو راوی هم نه شته يو څو طريقې به دلته ذکر کړو.

**اوله طريقه** : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ حَسَنِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ ﷺ الخ ( مصنف ابن ابی شيبه ، ج ۱ص ۳۷۷ ) .

**دوهمه طريقه :** حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ ﷺ الخ بحواله مسند عبد بن حميد. (روح المعانى سورة اعراف رقم الاية ، ٢٠٤) ( وفتح القدير جلد اول ص ٢٣٩ ) (ومسند احمد ج٣ | ص : ٣٣٩ والجوهر النقى ج٢ | ص : ١٥٩).

بعضې خلک اعتراض کوي چې د حسن بن صالح رَحِمَهُ اللَّهُ سماع د ابو الزبير رَحِمَهُ اللَّهُ څخه نده ثابته ،ددې جواب دادی چې حسن بن صالح رَحِمَهُ اللَّهُ د ابو الزبير رَحِمَهُ اللَّهُ معاصر دی ځکه چې د حسن بن صالح رَحِمَهُ اللَّهُ پيدا ايښت په سنه (١٠٠) ه کې شوی دی او د ابو الزبير وفات په سنه ١٢٨ ه کې شوی دی. (احسن الکلام ص ٣۴٢) بحواله تذکرة الحفاظ ج ١ ص ١١٩ ) لهذا په دواړو کې معاصرت ثابت شو او د امام مسلم رَحِمَهُ اللَّهُ په نيز د حديث د صحت لپاره معاصرت کافي دی .

**دريمه طريقه :** اخبرنا اسحق الازرق حدثنا سفيان وشريک عن موسي بن ابي عايشه عن عبدالله بن شداد عن جابر ﷺ ...الخ .

دا سند بالکل سلسلة الذهب دی او د شيخينو په شرط صحيح دی ، ځکه چې اسحق الازرق د صحيحينو د رجالو څخه دی، سفيان ثوری خو د تعارف محتاج ندی، شريک د مسلم د رجالو څخه دی، او موسى بن عايشه د صحاح سته وو د مشهورو ثقه راويانو څخه دی .

فتح القدير جلد اول ،ص ٢٣٩ بحواله مسند احمد بن منيع ، روح المعانى سورة اعراف رقم الاية، ٢٠۴ ) اعلاء السنن ، ج ۴ ص ٧٠ )

**څلورمه طريقه :** عبدالرزاق عن الثوري عن موسي بن ابي عايشه رضي الله عنها عن عبدالله بن شداد بن الهاد الليثي الخ . ( عبدالرزاق ج ٢ ص ١٣٦ ) .

**پنځمه طريقه :** حدثنابحر بن نصرقال حدثنايحيي بن سلام قال حدثناوهب ابن كيسان عن جابربن عبدالله...الخ .(شرح معانى الاثار، ج ١ص ١٠٧ ) خلاصه دا چې بلاشکه د جابر ﷺ حديث صحيح ثابت دی .

غير مقلدين وايي چې ددې څخه مازاد على الفاتحه مراد دي لکن دا توجيه د قول بما لايرضى به قائله ده، ځکه چې خپله حضرت جابر ﷺ ددې څخه سورة فاتحه مراد کړې ده . هغه فرمايي چې : ( من صلى ركعة لم يقرء فيها بأم القرآن فلم يصل الا وراء الامام ). او په يو مرفوع روايت کې هم دلته د سورة فاتحې ذکر راغلی دی . [ طحاوی/ج ۱/ ص ۱۰۷ ] ( موطاء ص : ۲۸ ،ترمذی ص : ۴۲ ، هداية السايل ص : ۲۰۴ ) . او راوي د خپل روايت په مراد د نورو خلکو څخه ښه پوهيږي.

## (۵ ) پنځم حديث :

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلّٰى خَلْفَ إِمَامٍ فَقِرَاءَةُ الْإِمَامِ قِرَاءَةٌ لَهُ» (طحاوی شريف ص ۱۰٦ )

د حضرت جابربن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کوم سړي دامام په اقتداء کې لمونځ کوي نو دده لپاره دامام قراءت کافي دی .

## (٦ ) شپږم حديث :

عن جابرقال ان رجلاصلي خلف النبي ﷺ في الظهر او العصر يعني يقرء فاومي اليه رجل فنهاه. فابي فلماانصرف قال اتنهاني ان اقرء خلف النبي ﷺ ؟فَتَذَاكَرَا حَتَّى سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَلّٰى خَلْفَ الْإِمَامِ فَإِنَّ قِرَاءَتَهُ لَهُ قِرَاءَةٌ».. (كتاب القراءة ص ١٢٦ ٩ )( مصنف عبدالرزاق ج ٢ص ١٣٦ ) رقم الحديث، ٢٧٩٧]. (مسند ابی حنيفة برواية القاضى ابى يوسف صـ ٢٣،رقم ٣ )

دحضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چې يو سړي درسول الله ﷺ په اقتداء کې دماسپښين، يادمازيګرلمونځ کولو او قراءة يې کولو، دلمانځه په مابين کې يو بل صحابي په اشاره باندې منع کړو، لکن هغه منعه نه شو. نو چې کله دلمانځه څخه فارغ شو قراءة کونکي سړي منع کونکي ته وويل چې تازه درسول الله ﷺ پسې دقراءت څخه ولې منع کولم ؟ دې دواړو خپلو کې سره دا خبرې کولې چې رسول الله ﷺ ددوی خبرې واوريدلې . ويې فرمايل چې کوم سړې دامام په اقتداء کې لمونځ کوي، نودده لپاره دامام قرائت کافي دی، يعنې مستقل قرائت دې نکوي. ددې روايت څخه صفا معلوميږي چې داحکم دجهري اودسري دواړو لمونځونو لپاره دی .

## (٧) اوم حديث :

عَنْ أَبِي نُعَيْمٍ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنهما يَقُولُ: مَنْ صَلَّى رَكْعَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَلَمْ يُصَلِّ، إِلاَّ أَنْ يَكُونَ وَرَاءَ الإِمَامِ. ( ترمذی ج ١ص ٦٦ ) وقال هذاحديث حسن صحيح . وموطأ امام مالک / ج ١ / ص ٤٢ .

حضرت جابر ﷺ فرمائي چاچې يو ركعت لمونځ وكړو او الحمد لله الخ يې په كې ونه لوستله، لمونځ يې ونه شو مګر دا چې دامام پسې يې اقتداء کړی وي، دا دجابر ﷺ فتوی ده، او دده دا فتوی دمرفوع حديث سره بالكل موافقه ده لفظا او معنی چې په طحاوی جلد اول ص ١٠٧ ) کې ذکر شوی ده ( عن جابربن عبدالله عن النبي ﷺ يقول من صلي ركعة لم يقراء فيهابام القرءان فلم يصل الا وراء الامام.)

## (۸) اتم حديث :

عن انس ﷺ قال صلي بنارسول الله ﷺ ثـم اقبـل علينابوجهـه فقـال اتقـرءون والامـام يقـرء ؟ فسكتوافسئالهم ثلاثافقالواانانفعل قال فلاتفعلوا.( طحاوى شريف ص ١٠٧ ) .

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ مونږ ته د جماعت لمونځ راکړو، بيا زمونږ طرفته متوجه شو او ويې فرمايل چې ايا تاسو د امام په اقتداء کې قرائت کوئ حالانکه امام هم قرائت کوي ؟

صحابه کرام چپ شول، رسول الله ﷺ درې ځلې داپوښتنه وکړه، پس صحابه وو وفرمايل چې هو مونږ د امام پسې قرائت کوو ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې اينده داسې مه کوئ .

## (۹) نهم حديث :

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ ﷺ، قَالَ: كَانُوا يَقْرَءُونَ خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «خَلَطْتُمْ عَلَيَّ الْقُرْآنَ» ( طحاوى ص١٠٦ / كتاب القراءة ص ١٤٤) ( مصنف ابن ابى شيبه ص ٣٧٦) .

د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې يو څو کسانو د رسول الله ﷺ په اقتداء کې لمونځ کولو او قراءة يې ورپسې کولو، رسول الله ﷺ تهديد کړل ، او ورته وفرمايل چې تاسو زما پسې د لوستلو په وجه په ما باندې د قران کريم قراءة خلط کړو .

## (۱۰) لسم حديث :

عن الزهري رحمه الله عن انس ﷺ ان النبي ﷺ قال واذاقرء فانصتوا . (كتاب القراءة ص ١١٣) .

امام زهري رَحِمَهُ اللَّهُ د حضرت انس ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله امام قرائت کوي نو تاسو چپ اوسئ .

په دې روايت کې هم رسول الله ﷺ دامام او دمقتدي په وظايفو باندې رڼا اچولې ده، چې دمقتدي فريضه په ټولو لمونځونو کې چپ اودريدل، سکوت او انصات دی او دامام فريضه قرائت کول دي، ددواړو بيله بيله وظيفه ده په دوي کې اشتراک نشته بلکې تقسيم دی.

## (۱۱) يوولسم حديث :

په ابن ماجه (ص : ۸۸، طحاوي ج۱\ ص : ۲۳۵ مشکل الاثار ج۲\ ص: ۲۷، طبقات ابن سعد ج۳\ ص : ۱۳۰ نصب الرايه ج۲\ ص : ۵۱، درايه ص : ۱۰۰، فتح الباری ج۲ ص : ۱۴۵) وغيره کتابونو کې دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ يو اوږد حديث دی، دهغې خلاصه داده چې کله رسول الله ﷺ په مرض الوفات باندې مبتلی شونو دامامتی فرايض يې حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته حواله کړل ابوبکر صديق ﷺ امامتي کوله.

يوه ورځ درسول الله ﷺ په مرض کې يو څه تخفيف راغلو، نو رسول الله ﷺ په دوو کسانو باندې لاسونه اچولي وو، او ورو ورو مسجدته راغی، د رسول الله ﷺ دراتلو څخه مخکې ابوبکر صديق ﷺ لمونځ شروع کړی وو کله يې چې درسول الله ﷺ راتلل محسوس کړل، نو ورو ورو وروسته کيده، رسول الله ﷺ ورته اشاره وکړه چې پخپل ځای ودريږه ابوبکر صديق ﷺ دجايئنماز څخه وروسته شو او رسول الله ﷺ په جايئنماز کيناستلو او امامتي يې شروع کړه او ابوبکر صديق ﷺ مکبر شو، درسول الله ﷺ اواز به يې په زوره ويلو او وروسته صفونو ته به يې رسولو، راروان الفاظ دتوجه قابل دي.

( وَأَخَذَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مِنَ الْقراءةِ مِنْ حيثُ كَانَ بَلَغَ أبوبكر ﷺ ) رسول الله ﷺ قراءة دهغه ځايه شروع کړو ترکومه ځايه چې ابوبکر صديق ﷺ لوستلې وو. (ابن ماجه شريف ص ۸۸، مسند احمد ج۱\ ص : ۲۳۲)

په يو بل روايت کې الفاظ داسې دی چې: ( فاستفتح النبي ﷺ من حيث انتهي ابوبكر ﷺ من القرءان) سنن الكبرى ج۳\ ص : ۸۱، مسند احمد ج۱\ ص : ۲۳۲].

پس رسول الله ﷺ قراءة دهغه ځایه شروع کړو، ترکومه ځایه چې ابوبکر صدیق ﷺ لوستلي وو. (سنن کبری للبهیقی، ج ۳ ص ۸۱)

په یو دریم روایت کې الفاظ داسې دي (فاستتم رسول الله ﷺ من حیث انتهي ابوبکر من القرءاة) رسول الله ﷺ دهغه ځای څخه قراءة پوره کړو، په کوم ځای چې ابوبکر صدیق ﷺ اودرولې وو (طحاوی شریف جلد اول ص ۱۹۸)

ددې حدیث څخه معلومیږي چې د رسول الله ﷺ څخه ټوله سورة فاتحه تیره شوې وه، اویا ترینه دسورة فاتحې اکثره حصه تیره شوی وه، ځکه چې رسول الله ﷺ سخت مریض و، په دوو کسانو یې لاسونه اچولې وو، اوپه قلاره قلاره مسجد ته روان وو، او ابوبکر ﷺ د رسول الله ﷺ دراتللو څخه مخکې لمونځ شروع کړی وو، نو ددې حالاتو څخه صفا معلومیږي چې که سورة فاتحه مکمله نوي لوستل شوې نو اکثره حصه خو به یې د رسول الله ﷺ له راتللو نه مخکې ضرور لوستل شوي وه، مګر ددې باوجود رسول الله ﷺ دلمونځ اعاده ونه فرمایله، دې لمونځ ته یې بیکاره او باطل ونه ویلو، بلکې صحیح یې وګڼلو نو که چیرته د امام پسې د فاتحې لوستل فرض وی، رسول الله ﷺ به دا لمونځ صحیح نه ګڼلو، بلکې باطل به یې ورته ویلې وو او ددې لمونځ اعاده به یې کړی وه.

دا حدیث بالکل صحیح دی، دده ټول راویان ثقه ثبت او حجت دي. (فتح الباری، ج ۵ \ ص: ٦۲۹).

## (۱۲) دولسم حدیث:

عن ابي هريرة ﷺ قال من ادرک رکعة من الصلوة فقد ادرکها قبل ان یقیم الامام صلبه. (دارقطنی جلداول ص ۳٤۸)

د حضرت ابو هریرة ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې کوم سړی د امام سره په لمانځه کې په داسې وخت کې شریک شو چې امام د رکوع څخه ملا نه وه نیغه کړي (بلکې په رکوع کې ورسره شریک شو) نو ده دا رکعت ونیولو.

په دې حديث کې په پوره وضاحت او صراحت سره دا خبره معلومه شوې ده چې کوم سړی په رکوع کې دامام سره شريک شي، نو دده دا رکعت وشو، او دا خبره بديهي ده چې کوم سړی په رکوع کې دامام سره شريک شي دهغه څخه سورة فاتحه تيره شوې وي، ځکه چې امام اول فاتحه لولي او بيا رکوع ته ځي، مګر باوجود د دينه چې دده څخه سورة فاتحه تيره شوی ده رکعت يې ادا شو، معلوميږي چې دامام پسې دفاتحې لوستل فرض نه دي کنه دد دې سړي دا رکعت به نه وو شوی.

دا حديث بالکل صحيح دی، غير مقلدين هم په دې حديث عمل کوي، او صحيح ورته وائي، ليکن دسورة فاتحې په باره کې يې نه مني.

## (۱۳) ديارلسم حديث :

عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ ﷺ أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاكِعٌ فَرَكَعَ قَبْلَ اَنْ يَصِلَ اِلَى الصَّفِّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "زَادَكَ اللّٰهُ حِرْصًا وَلَا تَعُدْ". (سنن كبرى جلداول ص١٠)

حضرت ابوبکرة ﷺ څخه روايت دی چې زه مسجد ته داخل شوم په داسې حال کې چې رسول اللهﷺ رکوع کونکی وو (رکوع ته تللی وو) نو ما صف ته در سيدلو څخه مخکې رکوع وکړه (او په ورو ورو صف ته ورسيدم) رسول اللهﷺ راته وفرمايل چې الله ﷻ دې ستا حرص (په نيکو) نور هم زيات کړي بيا داسې مکوه.

او دا ظاهره ده چې حضرت ابوبکرة ﷺ دسورة فاتحې څخه بغير په رکوع کې شامل شوی دی، لکن ددې باوجود دده دا رکعت رسول اللهﷺ صحيح وګڼلو، او ده ته يې دلمانځه در اګرځولو حکم ونه کړو، نو که دسورة فاتحې لوستل په هر رکعت کې په مقتدي باندې فرض وي نود ابوبکرة ﷺ دا لمونځ به څرنګه صحيح شوی و ؟ د مدرک در کوع څخه تکبير تحريمه او قيام نه ساقطيږي ځکه چې دا دواړه فرض دي نو که دسورة فاتحې لوستل فرض وي، نو پکار ده چې دا هم نه وی ساقطه شوی.

غير مقلدين زړه نازړه او ډير مجبوريت له وجهې دا حديث صحيح مني، او دا خبره کوي چې څوک دامام سره په رکوع کې شريک شي دهغه رکعت وشو، لکه چې غير مقلد عالم مولوی شمس الحق عظيم ابادی په خپل کتاب (التعليق المغنی علی الدارقطنی) کې ليکلي دي چې: وفي ذلک دلالة علي ادراک

الركعة بادراک الرکوع وقدروی صریحاعن ابن مسعودؓ وزیدبن ثابت ؓ وابن عمرؓ (التعلیق المغنی ص ۳۴۷)

اوپه دې (حدیث دابی بکرةؓ) کې په دې خبره دلالت دی چې دامام سره په رکوع کې دشریک شوي مقتدي رکعت صحیح دی، او دا خبره صراحةً دحضرت عبدالله بن مسعودؓ حضرت زید بن ثابت ؓ او حضرت ابن عمرؓ څخه مروي ده.

دغرباء اهلحدیث دفرقې امام ابو محمد عبدالستار په خپل تفسیر ستاری کې لیکلي دي چې: (بیشکه چې درکوع مدرک درکعت مدرک دی، دصحابه وؓ د تعامل څخه ددې پوره ثبوت پیداکیږي، مګر ددې څخه په عدم وجوب دفاتحې باندې استدلال کول غلط او باطل دي، ځکه چې د قرئت وجوب دقیام په حالت کې دي درکوع په حالت کې ندي، او چې کله حالت بدل شو نو حکم بدل شو).
(تفسیرستاری ص ۳۶۷)

**جواب:** (۱) -.دغیرمقلد عبدالستار دا جواب غیرصحیح دی، بالکل غیر معقول او باطل دی ،دده دا جواب بالکل په قیاس بناء دی، او غیر مقلدینو په ډیرو چیغو ستوني وشکول، په ډیرو کړیکویې اوازونه کیناستل، او په مختلفو لهجویې اعلانونه وکړل چې ( اول من قاس ابلیس علیه اللعنة ) یعنې اول قیاس ابلیس کړی وو.

ابلیس مجتهد نه وو او نه یې دبل مجتهد تقلید کولو، لکه د لا مذهبو په شان چې نه مجتهدین دي او نه دبل مجتهد تقلید کوي، نو د لا مذهبو غیر مقلدینو او غیرمجتهدینو دا قیاس بعینه دابلیس غیرمقلد او غیر مجتهد قیاس دی، نو ستاسو دا فعل ابلیسي فعل دی، او همدارنګې ستاسو مثال دهغه مردار خورکارغه دی چې مرداره خوري او مېښو که څنډي، اول قیاس ته شرک او مرداري وایې او بیا قیاس کوئ.

(۲) دا په کوم حدیث کې راغلي دي چې درکوع په کولو باندې د لمونځ کونکي حالت بدلیږي؟ اول خو تاسو دا ثابته کړی چې د رکوع په کولو سره حالت څرنګه بدل شو؟ ایا لمونځ ختم شو؟ او که لمونځ کونکی بدل شو؟

(۳) د حضرت ابوبکر صدیق ﷛ د حدیث او دنورو احادیثو څخه چې په دې دلالت کوي چې رانیونکي دامام په رکوع کې هغه رانیونکی د رکعت دی دا ظاهرېږي چې د رسول الله ﷺ په نظر مبارک کې رکوع د قیام په حکم کې ده، ځکه چې د امام سره په سجده کې د شریکیدونکي رکعت نه کیږي، او په رکوع کې د شریکیدونکي رکعت کیږي، هر کله چې رکوع د قیام په حکم کې شوه، نو رکوع ته د تللو په وجه حالت بدل نه شو.

نو چې کله رکوع په حکم د قیام کې ده او په رکوع کې په مقتدي باندې مستقل قراءة د الحمد لله فرض نه دی، بلکې د امام قراءة ورته کافي دی، نو همدارنګه په قیام کې هم ورباندې مستقل لوستل د الحمد لله فرض ندي، بلکې د امام قراءة ورته کافي دی.

(۴) - څوک چې د مقتدی لپاره د فاتحې لوستل مستقلاً فرض وائي نو هغوی ته پکار ده چې دیوولسم دولسم او دریالسم نمبر احادیثو او همدارنګې د نورو ډیرو احادیثو په خلاف د داود بن علی ظاهری تقلید وکړي.

داود بن علی ظاهری فرمائي چې څوک د امام سره په رکوع کې شریک شو دغه رکعت ونه شو.

او یادې د حضرت ابو الدرداء ﷛ د قول په شان قول وکړي په بهیقی کتاب القراءة کې یو روایت دی.

عن حسان بن عطية عن ابي الدرداء ﷛ قال لاتترک القراءة خلف الامام زادابن الحواري ولوان تقراوانت راکع وفي رواية اخري عن ابي الدرداء قال لوادرکت الامام وهوراکع لاحببت ان اقراء بفاتحة الکتاب کتاب القراءة بهیقی ،ص ۵۲

حضرت حسان بن عطية ﷛ د حضرت ابو الدرداء ﷛ څخه روایت کوي چې ده فرمایلي دي چې د امام پسې د الحمد لله پریښودل مناسب نه دي، اګرچې په رکوع کې وي. په بل روایت کې ابو الدرداء ﷛ فرمائي چې که چرته زه د امام سره په رکوع کې شریک شم نو دا خوښوم چې سورة فاتحه په رکوع کې ولولم.

د دې اثر څخه هم د غیر مقلدینو قیاسي برج د خاورو سره برابرېږي، ځکه چې په دې اثر کې هم د ابو الدرداء ﷛ په نیز رکوع په حکم د قیام کې ده، نو د رکوع په وجه حالت بدل نه شو.

**اعتراض**: غیر مقلدین دا اعتراض کوي چې د احنافو په نیز د تکبیر تحریمه لپاره قیام فرض دی، او په دې حدیث کې د ابوبکرة ﷺ د قیام ذکر نشته نو ابوبکرة ﷺ قیام ندی کړی، نو معلومیږي چې قیام هم فرض نه دی حالانکه د احنافو په نیز قیام د لمانځه په ارکانو کې اهم رکن دی، نو د احنافو په نیز د دوو فرضونو ذکر په دې حدیث کې ندی شوی یو د قیام، دوهم د تکبیر تحریمه فی القیام.

**جواب**: د غیر مقلدینو څخه مونږ پوښتنه کوو چې ایا ابوبکرة ﷺ تکبیر تحریمه کړی وو او که نه؟ که جواب اثبات وي نو په حدیث کې په کوم ځای کې ذکر شوي دی؟

که تاسو دا وائي چې د تکبیر تحریمه ذکر کولو ته ضرورت نشته، ځکه چې دا خبره بدیهي ده چې د تکبیر تحریمه څخه بغیر لمونځ نه کیږي، نو مونږ هم جواباً وایو چې د قیام ذکر کولو ته هم ضرورت نشته ځکه دا خبره ټولو ته معلومه ده چې تکبیر تحریمه بدون د قیام څخه نه صحیح کیږي، شوکاني او امام طحاوي رَحِمَهُ اللَّهُ په دې اجماع نقل کړې ده چې تکبیر تحریمه بدون د قیام څخه نه صحیح کیږي، او که جواب نفي وي نو بیا خو د ټول امت د اجماع او تعامل څخه مخالفت راغلو، ځکه چې د تکبیر تحریمه څخه بغیر د هیچا په نیز هم لمونځ نه صحیح کیږي.

## (١٤) څوارلسم حدیث:

عن جابر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ كل صلوة لا يقرء فيها بام الكتاب فهي خداج الاوراء الامام. كتاب القراءة بهيقى ص ١٣٦)

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: هر هغه لمونځ چې سورة فاتحه په کې ونه شي لوستلی، هغه ناقص دی مګر د امام پسې چې کوم لمونځ ادا کیږي، په هغه کې د سورة فاتحې د لوستلو ضرورت نشته.

## (۱۵) پنځلسم حدیث :

اخبرنا ابو سعد احمد بن محمد الماليني ناابواحمدعبدالله بن عدي الحافظ ناجعفربن احمدالحجاج وجماعة قالوانابحربن نصرنايحيي بن سلام نامالک بن انس ناوهب بن كيسان قال سمعت جابربن عبدالله يقول سمعت رسول الله ﷺ يقول من صلي صلوة لم يقرا فيهابفاتحة الكتاب فلم يصل الاوراء الامام. (كتاب القراءة ص ١٣٦)

وهب بن کیسان رضی الله عنه فرمائي چې ما د جابر رضی الله عنه څخه واوریدل، هغه ویل چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چې رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چې په لمانځه کې سورة فاتحه ونه لولي، د هغه لمونځ نه کیږي مګر د امام په اقتداء کې يې لمونځ کیږي، نو مقتدي د دې څخه مستثنی دی، یعنې د هغه لمونځ کیږي او د مقتدي لپاره د مستقلو لوستلو ضرورت نشته.

## (۱٦) شپاړسم حدیث :

عن ابي هريرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ كل صلوة لم يقراء فيهابام القرءان فهي خداج الاصلوة خلف الامام. [كتاب القراءة بهيقى ،ص ١٧١].

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې هر هغه لمونځ چې سورة فاتحه په کې ونه لوستلی شی، هغه ناقص دی، مګر هغه لمونځ چې د امام په اقتداء کې وکړی شي.

یعنې په داسې لمونځ کې چې د امام پسې وي د مقتدي لپاره په کې د الحمد لله د لوستلو ضرورت نشته.

په دې روایت کې غیر مقلدین هیڅ تاویل نه شي کولی، ځکه چې په دې روایت کې د خلف الامام او ام الکتاب په لفظونو تصریح شوې ده، او همدا رنګه په دې حدیث کې د سري او جهري لمونځونو قید هم نه شته بلکې د مطلق لمانځه حکم په کې ذکر شوی دی.

فان قيل: چې د (لا صلوة خلف الامام) الفاظ د خالد الطحان خطايي ده، ځکه چې علاء بن عبدالرحمن د ابوهريرة رضى الله عنه موقوف اثر رانقل کړی او دا زيادت پکې نشته لکه په کتاب القراءة للبيهقى صـ.(١٧١)

قلنا: خالد الطحان د صحيحينو او د سنن اربعه وو بالاجماع ثقه راوي دی، (تقريب لابن حجر ج ١صـ ١٥٠) وزيادة الثقة مقبولة (صحيح البخاري ج ١ـصـ ٢٠١) باب العشر فيما يسقى من ماء السماء والماء الجاري.

٢- دابوهريرة رضى الله عنه ددې حديث ډير شواهد دي مثلا رواه الخلال باسناده عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنهما، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: «كُلُّ صَلَاةٍ لَا يُقْرَأُ فِيهَا بِأُمِّ الْكِتَابِ فَهِيَ خِدَاجٌ إِلَّا أَنْ يَكُونَ وَرَاءَ إِمَامٍ».

وقد روى ايضا موقوفا عن جابر، المغنى لابن قدامه ج ٢صـ ١١٨، مسألة القرائت خلف الامام.

٣- عن جابر موقوفا، موطا مالک صـ ٦٩، موطاامام محمد صـ ٩٥، مسايل احمد بروايت عبد الله صـ ٧٨، ترمذي ج ١صـ ٧١، وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

## (١٧) اولسم حديث :

عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من كان له امام فقراءة الامام له قراءة. (كتاب القراءة ص ١٥٧ تاريخ بغداد، ج ١ص ٩٧)

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې هغه څوک چې دامام په اقتداء کې لمونځ کوي نو دهغه لپاره دامام قراءة کافي دی. يعنې دده مستقل قراءة ته ضرورت نشته.

سورة فاتحه د دې امت خصوصيت دي. نسائي ص ۱۴۵]. الله پاک فرمائي چې ولقد اتينک سبعا من المثاني و القران العظيم

او رسول عَلَيْهِ السَّلَامُ چې معراج ته تللو نو په بيت المقدس کښې ئې ټولو پيغمبرانو ته امامتي ورکړه. او رسول عليه السلام الله انبياؤو ته دا ونه ويل چې تاسو اول سورة فاتحه زده کړئ چې بيائي زما پسې ولولئ، ځکه چې زما په شريعت کښي بغير د لوستلو د فاتحي څخه مونځ نه کيږي. نو محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امام دي. او يو لک ځليرشت زره کم او زيات پيغمبران مقتديان دي. او دې مقتديانو پيغمبرانو پخپله فاتحه نه ده لوستلي، بلکه د امام فاتحه ورته کافي وه. د غير مقلدينو د فتوي مطابق د دې يولک ځليريشت زره څه کم او زياتو پيغمبرانو مونځ نه دي شوي، نو که د قيامت په ورځ دا پيغمبران راپاڅيږي، او غير مقلدين د مرى څخه ونيسي چې تاسو زمونږ مونځ ته ولې باطل ويلي دي؟ نو لا مذهبه به څه جواب ورکوي؟

## لامذهبو واوري ! چې په جماعت باندي مونځ په دري قسمه دي

**اول اعلیٰ :** چې امام هم پيغمبر او مقتديان هم پيغمبران وي لکه د معراج د شپي مونځ چې امام محمد وو او مقتديان زيات او کم يو لک او ځليرشت زره پيغمبران وو.

**دوهم متوسط :** چې امام پيغمبر وي او مقتديان امتيان وي. لکه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې صحابه کرامو ته امامتي کوله:

**دريم أدنیٰ :** چې امام هم امتي وي او مقتديان هم امتيان وي. لکه زمونږ د زماني د جماعت لمونځونه. نو چې په اعلي مونځ کښي د امام (محمد عَلَيْهِ السَّلَامُ) سورة فاتحه د مقتديانو لپاره کافي ده، نو په متوسط او په ادني مونځ کښي په طريق اولي سره کافي ده. او چې د يولک او ځليرشت زره څه کم او زياتو پيغبرانو مونځ شوی دی. نو زمونږ مونځ په طريق اولې باندې کيږي.

## موقوف احاديث

## مسئله دقراءة خلف الامام د صحابه وو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُم دفتوو په رڼاکې

صحابه وو رضوان الله عليهم براه راست دنبوت دلمر څخه فيض حاصلولو. راځئ چې وګورو چې دغه براه راست فيض حاصلونکي د امام پسې دقراءة په باره کې څه نظرلري؟ ددوی اقوال او فتوی څه دي؟

الحمد لله ثم الحمد لله چې په دې سلسله کې د جليل القدر واو عظيم المرتبه وو اکثرو صحابه کرامو ﷺ څخه د امام پسې دقراءت څخه نه صرف ممانعت راغلی دی، بلکې د امام پسې قراءة کونکو ته يې اخطارونه او تهديدونه ورکړي دي.

لوی تابعی حضرت مسروق رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي چې: وجدت علم اصحاب محمد ﷺ انتهي الي ستة الي عمر و علی و عبدالله بن مسعود و معاذ و ابی الدرداء و زيد بن ثابت رضي الله عنهم. [ تذكرة الحفاظ جلداول، ص ٢٤/ طبقات ابن سعد/ ج ٢ / ص ٢٥/ مقدمه ابن الصلاح/ ص ٢٦٢ ].

ما د (صحابه وو رضی الله عنهم څخه د فيض د حاصلولو څخه وروسته) وليدل چې ددوی د ټولو علم په شپږو صحابه وو رضی الله عنهم کې راجمع شوی دی.

هغه شپږ حضرت عمر ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ، حضرت معاذ ﷺ، حضرت ابو الدرداء ﷺ او حضرت زيد بن ثابت ﷺ دی.

امام حاکم هم د امام مسروق څخه همدا روايت رانقل کړی دی، لکن د هغه په روايت کې د حضرت عمر ﷺ ذکر نه دی شوی، بلکې دوه نور صحابه پکې ذکر شوي دي. يو اُبی بن کعب ﷺ او بل ابو موسی اشعری ﷺ. [ مستدرک/ ج ۳/ ص ۴۶۵ ].

لا مذهبه مولوی عبد الرحمن مبارکپوري ددينی مسايلو د نشر او اشاعت په لحاظ صحابه کرام رضی الله عنهم په دريو طبقو تقسيم کړي دي. يوه طبقه هغه ده چې ددينی مسايلو نشر او اشاعت يې لږ

کړی دی، دې طبقې ته مقلین وائي ،دوهمه طبقه هغه ده چې ددیني مسائلو نشر واشاعت یې درمیانه کړی دی، دې طبقې ته متوسطین وائي، دریمه طبقه هغه ده چې ددیني مسائلو نشر او اشاعت یې ډیر کړی دی ، دې طبقې ته مکثرین وائي مبارکپوري لیکلي .

وکان المکثرون منهم سبعة عمربن الخطاب ،وعلي بن ابي طالب وعبدالله بن مسعود، وعایشة ام المومنین ، وزیدبن ثابت ، وعبدالله ابن عباس ، وعبدالله بن عمر رضوان الله علیهم اجمعین . [ تحفة الاحوذی/ ج ۱/ ص ۱۱ ]

هغه صحابه چې ددین ډیرنشرا و اشاعت یې ډیر کړی دی (اوه) صحابه دي حضرت عمر ،حضرت علی ، حضرت عبدالله بن مسعود ، حضرت عایشه ام المومنین ، حضرت زید بن ثابت ، حضرت عبدالله بن عباس او حضرت عبدالله بن عمر رضوان الله علیهم اجمعین .

لا مذهبه نواب صدیق حسن خان لیکي چې: هغه صحابه رضی الله عنهم چې د دین نشر او اشاعت یې ډیر کړی دی، په هغو کې عبدالله بن مسعود ﷺ حضرت زید بن ثابت ﷺ حضرت ابن عباس ﷺ او حضرت ابن عمر ﷺ له ټولو څخه مخکې دي. [ الجنة فی الاسوة الحسنة با السنة/ ص ۵ ]. حسن اتفاق دادی چې ددې جلیل القدرو صحابه وو رضوان الله علیهم فتوی دامام پسې د قراءة څخه منع کول دي.

## (۱) دحضرت زیدبن ثابت ﷺ (المتوفی ۴۵هـ) فتوی

(الف) عن عطاء انه سأل زیدبن ثابت عن القراءة مع الامام فقال لاقراءة مع الامام في شئ من الصلوة . (مسلم شریف ج ۱ص ۲۱۵ _ نسائي شریف ، ج ۱ ص ۱۱۱، مسندابی عوانة ، ج ۲ص ۲۰۷ _ طحاوی شریف ص ۱۰۸) .

حضرت عطابن یسار رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې ما د زید بن ثابت ﷺ څخه په امام پسې د قرائت په باره کې پوښتنه وکړه، هغه وفرمایل چې د امام پسې قرائت په هیڅ لمانځه کې نشته ( سري وي او که جهري ) .

(باء) په مصنف ابن ابی شیبه او موطا امام محمد کې د حضرت زید بن ثابت ﷺ فتوی په دی الفاظو مروي ده: عن زیدبن ثابت ﷺ قال من قرء خلف الامام فلاصلوة له. ( موطاامام محمد ص ۴٦ / و فی البعض / ص ۱۰۰) ( مصنف ابن ابی شیبه ، ج ۱ص ۳۷٦ / کتاب القرائت / ص ۱۴۷)

حضرت زید بن ثابت ﷺ فرمائي: کوم سړی چې په امام پسې قرائت وکړي د هغه لمونځ نه کیږي نو ددې فتوی مطابق دلامذهبو لمونځ نه کیږي.

(ج) حضرت ثوبان ﷺ د حضرت زید بن ثابت ﷺ دا فتوی په داسې الفاظو رانقلوي چې: ( عن زید بن ثابت قال لا يقرء خلف الامام ان جهر وان خافت ) ( مصنف ابن ابي شيبه ج۱ ص ۳۷٦)

حضرت ثوبان ﷺ د حضرت زید بن ثابت ﷺ څخه روایت کوي چې: د امام پسې قرائت نه کیږي، برابره خبره ده چې امام په زوره قرائت کوي او که په پټه یې کوي.

د: عبید بن مقسم رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې: (انه سأل عبدالله بن عمر ﷺ و زید بن ثابت ﷺ و جابر بن عبدالله ﷺ فقالوا: لاتقرؤا خلف الامام فی شیءٍ من الصلوة) [طحاوی/ج ۱/ص۱۲۹]. ما له عبدالله بن عمر ﷺ حضرت زید بن ثابت ﷺ او حضرت جابر بن عبدالله ﷺ څخه د قرائت خلف الامام په باره کې پوښتنه وکړه، هغوي درې وارو راته وویل چې: په هیڅ لمونځ کې (سرّي وي او که جهري) قرائت خلف الامام مه کوه.

لا مذهبه نواب صدیق حسن خان په دې حقیقت داسې اقرار کوي چې: ( و زید بن ثابت گفته: لا قرائة مع الامام فی شیءٍ ) [رواه مسلم / و عن جابر بمعناه و هوقول علی ﷺ وابن مسعود ﷺ وکثیر من الصحابة رضوان الله تعالی علیهم.) [ هداية السائل/ ص ۱۹۳ ].

د حضرت زید بن ثابت ﷺ د دې فتوی څخه د لمر په شان دا مسئله واضحه کیږي چې د امام پسې هیڅ مقتدي په هیڅ لمانځه کې هیڅ قسم قرائت نه شي کولی.

## (۲) دحضرت عبدالله ابن عمرؓ المتوفی ۷۴ ھ فتوی

الف : نافع فرمايي چې: أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - كَانَ إِذَا سُئِلَ: هَلْ يَقْرَأُ أَحَدٌ خَلْفَ الإِمَامِ؟ , قَالَ: إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ خَلْفَ الإِمَامِ , فَحَسْبُهُ قِرَاءَةُ الإِمَامِ، وَإِذَا صَلَّى وَحْدَهُ فَلْيَقْرَأْ، قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لاَ يَقْرَأُ خَلْفَ الإِمَامِ. [موطاءامام مالک ص ۲۹ / وفى البعض صـ ٦٨، باب ترک القرائة خلف الامام وفى البعض صـ ٩٥، باب القرائـة فى الصلوة خلف الامام (طحاوى شريف ص ۱۲۹ ) موطاامام محمدص ٤٢ / دار قطنى/ ج ۱/ ص ١٥٤).

د حضرت عبدالله بن عمرؓ څخه د قرئت خلف الامام په باره کې پوښتنه وشوه نو هغهؓ وفرمايل چې: په تاسو کې چادامام پسې لمونځ کولونودده لپاره دامام قراءة کافي دي او چې څوک يوائې لمونځ کوي هغه دې قراءة کوي او حضرت عبدالله بن عمرؓ دامام پسې قرائت نکولو.

ب : د حضرت عبدالله بن عمرؓ دافتوى په موطاامام محمد کې په دې الفاظ مروي ده. عن ابن عمرؓ قال من صلي خلف الامام كفته قرائته. موطاامام محمدص ٤٣ )

حضرت ابن عمرؓ فرمائي چې چادامام پسې لمونځ کولونودده لپاره دامام قراءة کافي دي.

ج : قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: (كان ابن عمرؓ لايقرء خلف الامام جهر اولم يجهر) [كتاب القرائة / ص ١٤٦]. عبدالله بن عمرؓ به په جهري او په سِري دواړو لمونځونو کې په امام پسې قرئت نه کاوه.

د اهلحديثو په جامه کې د منکرينو د حديثو د ډلي محقق مبارکپوري ددې اثر په مقابله کې خپل حواس او عقل له لاسه ورکوي، او په يو ځای کې داسې ليکي چې: د عبدالله بن عمرؓ څخه دده پلار عمرؓ ډېر اعلم بالسنة وو، له دې وجهې به د عمرؓ اثر ته ترجيح ورکولى شي. [ابکار المنن / ص ۱۶۵].

او بيا دا مخبوط الحواس په بل ځای کې داسې ليکي چې: يوا ځې دا خبره چې حضرت عمر ﷺ د خپل زوی عبدالله بن عمر ﷺ څخه زيات اعلم بالسنة دی ددې تقاضا نه کوي چې د حضرت عمر ﷺ اثر نه دې د عبدالله بن عمر ﷺ په اثر باندې ترجيح و رکړل شي. [ ابكار المنن/ ص ۲۲۴ ].

**نوټ:** د حضرت عمر ﷺ اثر هم په ترک د قرائت خلف الامام کې را روان دی.

## (۳) دحضرت جابر ﷺ المتوفی ۷۸ هـ فتوی

عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا -يَقُولُ: «مَنْ صَلَّى رَكْعَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ، فَلَمْ يُصَلِّ إِلَّا وَرَاءَ الْإِمَامِ». موطا امام محمد ص ۴۲ وفى البعض ص ۹۵، باب القرائة فى الصلوة مؤطا امام مالک صـ ٦٦، باب ماجاء فى أم القرآن( ترمذی ج ١ص ٦٦)

د وهب بن کيسان ﷺ څخه روايت دی چې ده د حضرت جابر ﷺ څخه واوريدل چې څوک کوم رکعت لمونځ بغير د لوستلو د الحمد لله څخه وکړي لمونځ يې ونه شو مګر هغه لمونځ چې د امام پسې وي.

يعنې د امام پسې د الحمد لله د لوستلو ضرورت نشته ،په دې حديث کې د غير مقلد مبارکپوري دا تاويل نه چليږي چې د قراءة څخه مراد جهري دی، ځکه چې بيا به معنی داشې چې څوک کوم رکعت لمونځ وکړي او په دې کې په جهر سره الحمد لله ونه لولي لمونځ يې ونه شو. مګر د امام پسې دې يئ په جهر نه لولي، ددې څخه دا لازميږي چې په منفرد باندې د سورة فاتحې لوستل جهراً واجب دي حالانکه په مسلمانانو کې هيڅوک ددې قايل نه دی.

لا مذهبان وايي چې:

۱ - دا اثر په هغه صورت حمل دی چې مقتدي په داسې حالت کې د امام پسې اقتداء وکړي چې امام په رکوع کې وي.

۲ ـ همدارنګه د احنافو د اصولو مطابق په مستثنی کې هیڅ حکم نه وي، لهذا د مقتدي له پاره په دې اثر کې څه حکم نشته. [خیر الکلام / ص ۳۱۰].

**الجواب:** (مَن) حرف د معترض په نزد عام دی، او زمونږ په نزد هم د شرطي والي له وجهې عام دی. او رکعت نکره موصوفه ده، نو په دې کې هم تعمیم دی، نو تخصیص پکې د کوم ځای نه راغی؟

۲ - دا خبره چې په مستثنی کې حکم نه وي، د لامذهبو په بې خبرۍ باندې بناء ده. په توضیح / ص ۲۹۵ / الی ۲۹۸ پورې کې په تفصیل سره دا بحث ذکر دی چې استثناء د نفیې څخه اثبات او د اثبات څخه نفی ده. کما فی کلمة التوحید.

## (٤) دحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ فتوی

(الف) عبدالرزاق عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ! أَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ؟ قَالَ: «أَنْصِتْ لِلْقُرْآنِ فَإِنَّ فِي الصَّلَاةِ شُغْلًا، وَسَيَكْفِيكَ ذَلِكَ الْإِمَامُ» [طحاوی شریف ص ۱۰۷ _ موطاامام محمد ص ٤٥. مصنف ابن شیبه، ج ۱ص ۳۷۶ / رجاله موثقون / مجمع الزواید/ ج ۲/ ص ۱۱۰] مصنف عبدالرزاق ج ۲صـ۹۱، باب القرائت خلف الامام)

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چې (د امام پسې) قرءان ته چپ شه! ځکه چې په لمانځه کې (نور) مصروفیت دی (یعني د قرءان د اوامرو او د نواهیو، د وعید او د وعد، وغیره ته متوجه کیدل) او تاته (د قراة په باره کې) امام کافي دی.

فانقیل: چې په دې حدیث کې مطلق قرائت ذکر شوی دی د سورة فاتحې ذکر خو پکې نه شته؟

قلنا: د مطلق په نفی سره د مقید نفې راځي، لهذا چې د قرائت نفې راغله نو د فاتحې او د سورة دواړو نفې راغله.

(ب) د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د بلې فتوی الفاظ دا سې دي چې: «لَيْتَ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ مُلِئَ فُوهُ تُرَابًا» (طحاوی شریف ص ۱۰۷)

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چې هغه سړی چې د امام پسې الحمد لله لولي کاشکې چې دده خوله د خاورو څخه ډکه شوې وی.

(ج) حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ لمونځ کولو، د يو څو کسانو څخه يې قراءة خلف الامام واوريدلو، کله چې حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ د لمانځه څخه فارغ شو، نو ويې فرمايل چې ايا په تاسو هغه وخت نه دی راغلې چې د عقل او د پوهې څخه کار واخلئ؟ کله چې قران لوستلی شي نو غوږ ورته کيدئ او چپ اوسئ. [اعلاء السنن، ج ۴ ص ۴۳].

(د): د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د يو اثر الفاظ داسې دي چې: «لَأَنْ أَعَضَّ عَلَى جَمْرَةِ الغضا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَقْرَأَ خَلْفَ الْإِمَامِ» [ كتاب القرائة / ۱۱۶ ]. چې په انکار باندې خوله لګول د قرائت خلف الامام څخه راته ډېر خوښ دي.

(هـ): په يو بل روايت کې راځي چې: (ان ابن مسعود ﷺ كان لا يقرأ خلف الامام فيما يجهر فيه و فيما يخافت فيه فى الاوليين ولا فى الآخريين.و اذا صلى قرأ فى الاوليين بفاتحة الكتاب الحديث.) [ موطأ امام محمد / ص ۹۶ ]. عبدالله بن مسعود ﷺ به په امام پسې قرائت نه کاوه، نه په جهري لمونځ کې او نه هم په سِرّي لمونځ کې. نه په اولو دواړو رکعتونو کې او نه په وروستنيو دواړو رکعتونو کې. او چې کله به يې يواځې لمونځ کاوه، نو بيا به يې په لومړيو دواړو رکعتونو کې سورة فاتحه او ورسره بل سورة لوستلو.

## (۵) د حضرت علی ﷺ فتوی

(الف) عَنْ دَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ رَحِمَهُ اللَّهُ قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ ﷺ: «مَنْ قَرَأَ مَعَ الْإِمَامِ فَلَيْسَ عَلَى الْفِطْرَةِ». (مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۱۳۷ _ دارقطنی ج ۱ ص ۱۲۱ ، [طحاوی شريف ج ۱ ص ۱۰۷ / الجوهر النقی/ ج ۲/ ص ۱۶۹ ] حضرت علی ﷺ فرمائی چې څوک د امام پسې قرائت کوي هغه په فطرت (سنت) باندې نه دی، يعنې هغه په سنتو عامل نه دی، بلکې بدعتي دی.

(ب) دحضرت علی ﷺ دافتوی په مصنف ابن ابی شیبه او په دارقطنی کې په داسې الفاظو مروي ده.

( ان علیاقال من قراخلف الامام فقداخطاالفطرة ،[مصنف ابن ابی شیبه /ج ۱/ ص ۳۷٦ وصـ ٤۱۲جدید رقم ٦، باب من کره القرائة خلف الامام ، دارقطـنی/ ج۱/ص۱۲٦] څوک چې دامام پسې قرائت کوي هغه دسنتو څخه مخالفت وکړو.

(ج ) په مصنف عبدالرزاق او کنزالعمال کې دحضرت علی ﷺ فتوی پداسې الفـاظو مروي ده. (ان علیاقال من قرء خلف الامام فلاصلوة له ) مصـنف عبـدالرزاق ج ۲ص ۱۲۹ وصــ ۹۰، رقـم ۲۸۱۳، باب القرائة خلف الامام ] کنزالعمال ،ج ۸ ص ۱۸٤ ) حضرت علی ﷺ فرمائي چې څوک چې دامام پسې قراءة کوي دهغه لمونځ ونه شو.

(د ) : حافظ ابو عمر بن عبدالبر رَحِمَهُ اَللَّهُ لیکي چې: (ثبـت عـن علی ﷺ و سـعد ﷺ و زیـد بـن ثابت ﷺ انه قال: لا قرائة مع الامام لا فیما أسر ولا فیما جهر. [ بحواله الجوهر النقی/ ج ۲ / ص ۱٦۹ ] .د حضرت علی ﷺ، حضرت سعد ﷺ او حضرت زیـد بـن ثابت ﷺ څخـه دا ثابتـه ده چې: پـه سِرّي او پـه جهري دواړه قِسمه لمونځونو کې قرائت خلف الامام نشته.

## (٦) دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ فتوی

(الف) عن ابي جمرة قال سالت عبدالله بن عباس ﷺ أقرأ و الامام بین یدي قال لا. ( طحاوی شریف ، ج ۱ص ۱۲۹ / الجوهر النقی/ ج ۲ / ص ۱۷۰ ].

دحضرت ابو جمرة رَحِمَهُ اَللَّهُ څخه روایت دی چې ما دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې کله امام زما په مخکې قرائت کوي نو ایا زه هم قرائت وکړم؟ هغه راته وفرمایل چې نه.

په دې فتوی کې د سري او د جهري قید نشته، بلکې په مطلق لمونځ کې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ صراحة مقتدي د قراءة څخه منع کړی دی.

(ب) حضرت عکرمه ﷺ فرمائي چې حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ته شکايت وشو چې ( إِنَّ نَاسًا يَقْرَءُونَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فَقَالَ: «لَوْ كَانَ لِي عَلَيْهِمْ سَبِيلٌ ، لَقَلَعْتُ أَلْسِنَتَهُمْ،إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ ، فَكَانَتْ قِرَاءَتُهُ لَنَا قِرَاءَةً وَسُكُوتُهُ لَنَا سُكُوتًا». ( طحاوی شریف ج ۱ص ۱۲۱)

يو څو کسان (د امام پسې) په ماسپښين او ماز يګر کې قراءة کوي حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ورته وفرمايل چې: بې شکه چې: رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرائت کاوه نو د هغه قرائت زمونږ له پاره قرائت و او د هغه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سکوت زمونږ له پاره سکوت و. يعني رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې امام و قرائت يې کړی دی او چې کله به مقتدي و نو سکوت يې کړی دی، نو زمونږ له پاره هم همداسې کول په کار دي. که زما وس رسيدلې ما به د دوی ژبې د بيخ څخه را ايستلې وي، په دې اثر کې اګر چې د خلف الامام کلمه نه شته ليکن په معمولي فکر را معلوميږي، ځکه چې د منفرد او د امام لپاره اتفاقا لوستل ضروري دي. په دې کې د حبر الامت عبد الله بن عباس ﷺ څخه د چا د ژبې د را ايستلو اراده متصوره نه ده. اختلاف د مقتدي په قرائت کې دي، نو معلوميږي دا چې شکايت د مقتدي په باره کې وو. او هغه هم د ماسپښين او د ماز ديګر په سرّي لمونځ کې و.

## (۷) دحضرت عمر ﷺ فتوی

الف : أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: لَيْتَ فِي فَمِ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الإِمَامِ حَجَرًا (موطاامام محمد ص۹۸/ مصنف عبدالرزاق ، ج ۲ص ۱۳۸ / منتخب کنزالعمال / ص ۱۸۷ / الجوهر النقى / ج ۲/ ص ۱۶۹/ طحاوی / ج ۱ / ص ۱۲۹]. حضرت عمر ﷺ فرمائي چې کاشکې ذ هغه چا په خوله کې تيږه وي چې د امام پسې قرائت کوي. نو که د کوم عاشق رسول ﷺ او عاشق صحابه کرامو رضوان الله عليهم طاقت وي، نو د لامذهبو په خوله کې دي تيګه ور تکوهي، ځکه چې د دوی قراءة خلف الامام په اجتهاد ندی بنا ځکه چې په دوی کې د اجتهاد شرائط نشته او نه د بل مجتهد پيروي کوي بلکې صرف او صرف ناپوهه تعصب دی.

( ب ) په مصنف ابن ابی شیبه کې د حضرت عمر رضي الله عنه فتوىٰ داسې رانقل شوې ده عَنْ نَافِعٍ رحمة الله عليه، وَأَنَسِ بْنِ سِيرِينَ رحمة الله عليه قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: «تَكْفِيكَ قِرَاءَةُ الْإِمَامِ» ( مصنف ابن ابی شیبه ،ج ۱ص ۳۷٦ )

د حضرت نافع او حضرت انس بن سیرین څخه روایت دی چې عمر رضي الله عنه فرمایلي دي چې ( د مقتدي لپاره د امام قرائت کافي دی ) . په یوه روایت کې راځي : حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي : کاشکې چې د هغه سړي په خوله کې تَتَن یعنې بدبویه مُردار شی وي چې قرائت خلف الامام کوي. او په بل روایت کې (رضف ) یعنې ګرمه تیږه راغلې ده.

## (۸) د حضرت سعد ابن ابی وقاص رضي الله عنه فتوى

الف : عَنْ سَعْدِبن وقاص رضي الله عنه قَالَ: «وَدِدْتُ أَنَّ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي فِيهِ جَمْرَةٌ». [ موطأ امام محمد ص ۹۸/ مصنف ابن ابی شیبه، ج ۱ص ۳۷٦ / جزء القرائة/ ص۱۱].

حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه فرمائي چې زما تمنا او خواهش دی چې د امام پسې د قراءة کونکي په خوله کې انګار وي .

( ب ) : اَنَّ سَعْدِبن ابی وقاص رضي الله عنه قَالَ: «وَدِدْتُ أَنَّ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي فِيهِ حَجَرٌ» [عمدة القاری/ ج ۳ / ص ٦۷ ] . زه دا خبره خوښوم چې د امام پسې د قرائة کونکي په خوله کې تیږه وي.

## (۹) د حضرت عبدالله بن عمر،زید بن ثابت او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم فتوى

عن عبيدالله بن مقسم انه سال عبدالله بن عمر رضي الله عنه وزيد بن ثابت رضي الله عنه وجابربن عبدالله رضي الله عنه فقالوالا يقرء في شي من الصلوة . (طحاوی شریف ص ۱۰۷).

حضرت عبيد الله بن مقسم روايت كوي فرمائي چې ده د حضرت عبد الله بن عمر ﷺ او حضرت زيد بن ثابت ﷺ او حضرت جابر بن عبد الله ﷺ څخه د امام شاته د قرائت په باره كې پوښتنه وكړه هغوى ورته وفرمايل چې په يو قسم لمانځه كې (جهري وي يا سري وي) هم قرائت نشته.

## (۱۰) دخلفاء راشيدينو فتوى

عبدالرزاق فرمايي چې: وَأَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ رضي الله عنهم، كَانُوا يَنْهَوْنَ عَنِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ». [مصنف عبدالرزاق، ج ۲ص ۱۳۹ / عمدة القارى/ ج ۳/ ص ٦٧ / اعلاءالسُنن/ ج٤/ ص ۸۵ ]. امام عبدالرزاق فرمايي: چې ماته موسى بن عقبه خبر راكړو چې ابوبكر ﷺ عمر ﷺ او عثمان ﷺ به صحابه منعه كول د امام پسې د قرائت څخه.

## (۱۱) دلسو جليل القدرو صحابه وو فتوى

وذكر الشيخ السيذموني فِي كتاب (كشف الْأَسْرَار) : عَن عبد الله بن زيد بن أسلم عَن أَبِيه قَالَ: كَانَ عشرَة من أَصْحَاب رَسُول الله، صلى الله عَلَيْهِ وَسلم، ينهون عَن الْقِرَاءَة خلف الإِمَام أَشد النَّهْي: أَبُو بكر الصّديق وَعمر الْفَارُوق وَعُثْمَان بن عَفَّان وَعلي بن أبي طَالب وَعبد الرَّحْمَن بن عَوْف وَسعد ابْن أبي وَقاص وَعبد الله بن مَسْعُود وَزيد بن ثَابت وَعبد الله بن عمر وَعبد الله بن عَبَّاس، رَضِي الله تَعَالَى عَنْهُم، (عمدة القارى، شرح صحيح البخارى، ج ٤صـ صـ ٤٤٩، باب وجوب القراءة للامام والماموم ) په دې حديث كې دې لسو صحابه وو به د قرائت خلف الامام څخه په ډيرى سختى سره منع كوله.

## (۱۲) د اویا (۷۰) بدریانو فتوی

قال الشعبي ادركت سبعين بدرياكلهم يمنعون المقتدي عن القرائة خلف الامام . (روح المعانی ج۹ ص۱۵۲) حضرت امام شعبی رَحِمَهُ اللّٰهُ چې لوی تابعي دی فرمائي چې ما اویا (۷۰) بدري صحابه کرام ليدلي دي چې هغوی به خلک د امام شاته د قرائت څخه منعه کول.

## مقطوع احادیث

## د قرائت خلف الامام مسئلة دتابعينو رحمهم اللهد فتواګانوپه رڼاکې

د اصحابؤ کرامو اقوال او آثار تیر شول. اوس د تابعينو عظامو یو څو آثار او فتواګانې ذکرکوم. ترڅو تاسو ته معلومه شي چې د خیر القرون د شیندلو ستورو، د اسمان د سیارو، تابعینو د قرئت خلف الامام په باره کې څه مسلک دی؟ په دې باره کې دوی د قران او د حدیث څخه څه رافهمولي دي؟

## (۱) دحضرت ابراهیم نخعی المتوفی (۹۶هـ) فتوی

(الف ) : عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُمَااللّٰهُ، " أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ، وَكَانَ يَقُولُ: «تَكْفِيكَ قِرَاءَةُ الْإِمَامِ» ( مصنف ابن ابی شیبه ، ج ۱ص ۳۷۷ )

حضرت مغیره د حضرت ابراهیم نخعی رَحِمَهُ اللّٰهُ څخه روایت کوي وائي چې حضرت ابراهیم نخعی رَحِمَهُ اللّٰهُ د امام شاته قرائت ويل مکروه ګڼل او فرمايل يې چې د مقتدي لپاره د امام قرائت کافي دی.

(ب) : حضرت ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: ( اوّل ما أحدثوا القرائة خلف الامام و كانوا لايقرؤن ) [ الجوهر النقی/ ج ۲ / ص ۱۶۹ / شرح مقنع / ج ۲ /ص ۱۶۹ ] . يعنې اول خلکو د قرائت خلف الامام د بدعت ایجاد کړی دی او هغوی (صحابه کرامو او تابعينو رضوان الله تعالی عليهم) به قرائت خلف الامام نه کاوه.

**ددې بدعت د شروع کېدلو تاريخ:**

ابراهیم نخعی رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: دا بدعت د مختار په زمانه کې شروع شو، هغه به خلکو ته د ورځې لمونځونه ورکول، او د شپې لمونځونه به يې نه کول. دده د حاکمیت له وجهې خلکو ورپسې د مجبوریت له امله لمونځ کاوه، لکن ورباندې بد گمانه وو، له دې وجهې خلکو به چې دده پسې لمونځ کولو نو دده په قرائت به يې اکتفاء نه کوله، بلکې خپل قرائت به يې کاوه. [مغني ابن قدامه/ج ۱/ص ۶۰۶].

## (۲) دحضرت سعیدبن جبیر رَحِمَهُ اللهُ فتوی

عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ رَحِمَهُمَا اللهُ قَالَ: سَأَلْتُهُ عَنِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ قَالَ: «لَيْسَ خَلْفَ الْإِمَامِ قِرَاءَةٌ». (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۱ص ۳۷۷)

حضرت ابی بشر رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې ما د حضرت سعید بن جبیر رَحِمَهُ اللهُ څخه د قرئت خلف الامام باره کې پوښتنه وکړه هغه راته وویل چې د مقتدي له پاره د امام شاته قرائت نشته.

## (۳) دسعیدبن المسیب رَحِمَهُ اللهُ فتوی

عن ابن المسیب قال انصت للامام. (کتاب القرائت، ص ۹۱) حضرت سعیدبن المسیب رَحِمَهُ اللهُ فرمايلي دي چې د امام د قرئت لپاره خاموش اوسه! یعنې د امام شاته د قرائت کولو ضرورت نشته.

## (٤) د حضرت محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللهُ فتوی

عن محمد قال لااعلم القرائت خلف الامام من السنة. (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۱ص ۳۷۷)

حضرت محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللهُ فرمايلي دي چې زه د امام پسې قرءة ویل سنت نه گڼم. یعنې زما په نزد د امام شاته قرءة ویل د سنتو څخه خلاف او بدعت کار دی.

## (۵) دحضرت علقمه بن قیس رَحِمَهُ اللهُ فتوی

(الف): عن ابي اسحق ان علقمه بن قیس قال ان الذي یقرء خلف الامام ملي فوه تراباورضفا. (مصنف عبدالرزاق، ج ۲ص ۱۳۹ رقم ۲۸۱۱، باب القرائة خلف الامام، موطاامام محمد ص ٤٥ باب

القراءة فی الصلوة خلف الامام/ الجوهر النقی/ ج ۲ / ص ١٦٩ ] حضرت علقمه فرمائي چې زما تمنا او ارزو ده چې د امام شاته د قرائة ويلو والا خوله د خاورو او ياد ګرمو تيږو څخه ډکه وی.

(ب) : ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: ( ما قرأ علقمة بن قيس قطّ فيما يجهر فيه و لا فيما لا يجهر فيه ولا الركعتين الاخريين ام القرآن و لا غيرها خلف الامام ) [التعليق الحسن/ ج۱/ص۹۰] حضرت علقمه په هيڅ سِرّي يا جهري لمانځه کې قرائت خلف الامام نه دی کړی، او نه يې په وروستنيو دواړو رکعتونو کې قرائت خلف الامام کړی دی، نه يې فاتحه لوستلې ده، او نه يې بل شی، يعنې نه يې سورة لوستلی دی.

## (٦) دحضرت اسودبن يزيدفتوی

عبدالرزاق په خپل مصنف کې د سفيان ثوری څخه روايت کوي، هغه د امام اعمش رَحِمَهُ اللَّهُ څخه او هغه د ابراهيم نخعی رَحِمَهُ اللَّهُ څخه او هغه د اسود بن يزيد رَحِمَهُ اللَّهُ څخه روايت کوي فرمائي ( قال وددت ان الذي يقرء خلف الامام ملي فوه ترابا. ( مصنف عبدالرزاق، ج ۲ص ۱۳۹ وفی البعض صـ ۹۰، باب القرائة خلف الامام رقم ۲۸۱۰/ الجوهر النقی / ج ۲/ ص ١٦٩ ]مصنف ابن ابی شيبه رقم ۱٤، من کره القرائة خلف الامام)

زه دا خبره غوره ګڼم چې د هغه چا خوله د خاورو څخه ډکه کړی شي چې د امام شاته قراءة کوي په مصنف ابن ابی شيبه، ج ۱ ص ٣٧٦ ) کې يې د حضرت اسود بن يزيد دا فتوی په دې الفاظو رانقل کړې ده چې (عن الاسودبن يزيد لان اعض علي جمرة احب الي ان اقرء خلف الامام) د امام شاته د قراءة کولو څخه ما ته دا بهتره ده چې په خوله کې سکروټه (انګار) ونيسم.

## (۷) دحضرت عمروبن میمون رحمه الله فتوی

عن اشعث رحمه الله عن مالک بن عماره او عامر رحمه الله قال سألت لاادري کم رجل من اصحاب عبدالله بن مسعودکلهم یقولون لایقراء خلف امام منهم عمروبن میمون. (مصنف ابی شیبه ص ۳۷۷) وفی البعض صـ ۴۱۳ رقم ۲۳، م کره القراءة خلف الامام)

اشعث رحمه الله د مالک بن عامر رحمه الله څخه روایت کوي چې: ما د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دبې شماره شاګردانو څخه د قرائت خلف الامام په باره کې پوښتنه کړې ده، هغوی ټول په اتفاق سره د قرات خلف الامام قائل نه و، د هغوی له جملې څخه یو عمروبن میمون رحمه الله هم دی.

**نوټ:** په دې اثر کې د اشعث استاد مالک بن عامر دی، مالک بن عماره نه دی. [ تهذیب التهذیب /ج ۱/ ص ۳۵۵ ].

## (۸) دحضرت ضحاک رحمه الله فتوی

په مصنف ابن ابی شیبه کې دي چې (کان الضحاک ینهي عن القراءة خلف الامام) [مصنف ج ۱ ص ۳۷۷) حضرت امام ضحاک تابعی رحمه الله د قرائت خلف الامام څخه منعه فرمایلې ده.

## (۹) دحضرت عروه بن زبیر رحمه الله فتوی

هشام بن عروة رحمه الله د خپل پلار عروه بن زبیر رضی الله عنه څخه روایت نقل کړی دی چې ( انه کان یقرء خلف الامام اذالم یجهرفیه الامام) (موطاامام مالک کتاب القرائت، ص ۱۰۰].

حضرت هشام عروة بن زبیر رحمه الله د امام شاته قرءة صرف په سري لمونځونو کې مني او بس.

## مسئله دقراءة خلف الامام د تبع تابعینو د فتواګانو په رڼا کې

### (۱) : د حضرت سفیان بن عیینه رحمه الله فتوی:

چې تبع تابعین او د لوړ مقام خاوند دی، دا د امام شاته په جهري او سري لمونځونو کې د قرئت ویل ناجائز ګڼي، د حضرت عباده بن صامت ﷺ مرفوع حدیث دی چې :

(لاصلوة لمن لم يقرء بفاتحة الكتاب فصاعدا) سفيان بن عيينه رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمايي چې: دا د منفرد په باره کې دی. (لمن يصلي وحده. (ابوداود ج ١ص ١١٩)

دا حديث د هغه شخص په باره کې دی چې هغه ځان ته لمونځ کوي، يعنې دا حديث د منفرد په باره کې دی، چې د منفرد لپاره لوستل واجب دي، د مقتدي په حق کې ندی، ځکه چې د مقتدي لپاره د امام قرءة کافي دی د امام سفيان بن عيينه رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ د دې قول (لمن يصلي وحده) څخه واضحه شوه چې د ده په نيز د امام شاته قرءة ويل ناجايز دي.

## (۲) د حضرت سفيان ثوری رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فتوی:

امام سفيان ثوری رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ په سري او جهري لمونځونو کې د امام پسې د يو قسم قرائت هم قائل ندی. [تفسير معالم التنزيل/ ج ۳ / ص ۶۲۶]. او مباکپوری په تحفة الاحوذی کې ليکي چې: ( قال سفيان الثوری و اصحاب الراي لايقرء خلف الامام فيماجهراوسر ) ( تحفة الاحوذی / ج ۱ / ص ۲۵۷)

د سفيان ثوری رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ او نورو اصحابُ الرأی مذهب دا دی چې په امام پسې قرائت ويل په سري او جهري لمونځونو کې درست ندي. قال الثوری: ولا يقرأ الماموم خلف الامام شيئا لا الفاتحة ولاالسورة ، فقه سفيان الثوری صـ ٦٢، تحت لفظة، صلوا والمغنى لابن قدامه ج ٢صـ ١١٨، مسئله نمبر ١٨٣)

## (۳) دامام عبدالله بن وهب رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فتوی:

رئس المحققين، سيد المحدثين، سند المفسرين، امام العصر، حضرت العلام جناب مولانا سيد انور شاه کشمري رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ فرمايلي چې د امام عبد الله بن وهب رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ مسلک د امام ابن عيينه رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ په شان دی، يعنې قرئت خلف الامام درست نه بولي. ( فصل الخطاب ص ۸۰ )

ريحانة الهند حضرت مولانا زکريا رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ هم فرمايي چې: ابن وهب، او علامه أشهب او نور مالکي علماء د قرائت خلف الامام قايل نه دی. [ اوجزالمسالک / ج ۱ / ص ۲۳۹ ].

**(٤) دحضرت امام اوزاعی فتوی:**

حضرت امام اوزاعی رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم دامام شاته په سري او جهري لمونځونو کې قائل دوجوب ندی. يواځې په سري لمونځونو کې د استحباب قائل دی، نه د وجوب. لکه چې امام ابن تيميه وائي: ومذهب طائفة كالاوزاعي وغيره من الشامين يقرئها فی السری استحبابا وهو اختيار جدنا ) . فتاوی ابن تيميه / ج ٢ / ص ١٦٧/ وفی البعض / ص ١٤٦ ].

دامام اوزاعی څخه غير د شام دنورو علماء و مسلک هم دادی چې دامام پسې قرئت ويل نشته الافي السري استحبابًا. او همدا زما د نيکه هم خوښ مسلک وو.

**(۵) دحضرت عبدالله بن مبارک رَحِمَهُ ٱللَّهُ فتوی:**

حضرت عبدالله بن مبارک رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم دامام پسې قرئت ضروري نه ګڼي، بلکې فرمايي چې په جهري لمونځونو کې چپ والی پکار دی او په سري لمونځونو کې يې صرف اجازت دی.

لکه امام بخاری چې په جزء القراءة کې فرمائی چې: ( قال ابووائل عن ابن مسعودﷺ انصت للامام وقال ابن المبارک ان هذافي الجهر وانما يقرء خلف الامام فيماسکت الامام (جزء القراءة، ص ١٢)

ابو وائل د حضرت عبدالله بن مسعودﷺ څخه روايت کوي چې وائي دامام شاته خاموش اوسيږه.

عبدالله بن مبارک رَحِمَهُ ٱللَّهُ وفرمايل چې ددې څخه معلومه شوه چې دامام شاته په جهري لمونځونو کې خاموشي پکار ده، او په سري لمونځونو کې يې ويل پکار دي، هغه هم وجوبي نه بلکې جوازي، په جهري لمونځونو کې دده محقق مسلک ترک القرائة خلف الامام دی. [ معالم التنزيل/ ج ٣ / ص ۶۶۳ / روح المعانی/ ج ۹ / ص ۱۳۵ ].

غيرمقلد عبدالرّحمن مبارکپوري په تحفة الاحوذی کې چې شرحه د ترمذی ده ليکي: ( فان عبدالله بن مبارک لم يكن من القائلين بوجوب القراءة خلف الامام ) [ تحفة الاحوذی/ ج ١ / ص ٢٥٧ ].

حضرت عبد الله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ دهغه خلکو څخه ندی چې په وجوب د قراءة خلف الامام قائیل دي .

عبد الله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې : په کومه مسئله کې چې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د سُفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ اتفاق راشي هماغه زما مسلک دی . [تحفة الاحوذی/ج ۱/ص ۲۱۴] . او ددغو دواړو حضراتو مسلک ترک القرائة خلف الامام دی .

## (٦) دحضرت امام زهری رَحِمَهُ اللهُ فتوی

حضرت امام زهری رَحِمَهُ اللهُ چې د حدیثو عظیم امام دی ، په جهري مونځ کې دامام شاته قراءة ویل ناجایز بولي او په سري لمونځ کې ضرف دجواز قائل دي لکه مولوی عبد الرحمن ( مشهور غیرمقلد عالم )په تحفة لاحوذی کې لیکي چې : ( قال الزهري ومالک وابن المبارک واحمدواسحق يقرء فيمااسرالامام فيه ولايقرء فيماجهربه ) [ تحفة الاحوذی/ ج ۱ص ۲۵۰ مغنی بن قدامه . ص ۱۰۹/ کتاب القرائة / ص ۷۷۵ / شرح مقنع / ج ۲ / ص ۱۱ ].

## (۷ ) د حضرت امام اسحق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ فتوی

مولوي عبد الرحمن مبارکپوري په مذکوره بالاعبارت کې د اسحق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ هم دامسلک بیان کړی دی چې کوم دامام زهری ، امام مالک ، عبد الله بن مبارک او امام احمد بن حنبل رحمهم الله مذهب و ، چې په جهري لمونځونو کې یې ویل ندي پکار .

علامه ابو الفضل شهاب الدین السید محمود الوسی بغدادی په خپل تفسیر روح المعانی کې لیکي : (وذهب قوم الي ان المأموم يقرء اذا اسرالامام ولايقرء اذاجهروهوقول عروة بن زبيرواحمد واسحق رحمهم الله . (روح المعانی ص ۱۵۱).

دعلماوو دیوجماعت مسلک دادی چې مقتدي په سري لمونځونو کې قرئت کولې شي اوپه جهري لمونځونو کې جوازنه لري داقول د عروة ، احمد او اسحق رحمهم الله دی .

## (۸) دحضرت امام ليث بن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ فتوی

د اهل مصر امام حضرت ليث بن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ هم دامام شاته قرائت ويل ضروري نه دی بللي، لکه چې ابن قدامه وائي ( وهذامالک في اهل الحجازوهذالثوری في اهل العراق، وهذالاوزاعي في اهل الشام، وهذاليث في اهل المصر، ما قالوا لرجل صلي وقرا امامه ولم يقرء هوصلوته باطلة) [مغنی بن قدامه ص ٦٠٦ ) جلد١/ شرح مقنع/ ج ٢ / ص ١٣ ].

دا د اهل حجاز امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ دی، او دا د اهل عراق ثوری رَحِمَهُ اللَّهُ دی ،او دا د شام امام اوزاعی رَحِمَهُ اللَّهُ دی، اودا د مصر ليث بن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ دی، ددغه امامانو څخه يو هم چا ته دا فتوی نده ورکړي چې په امام پسې بايد قرائت وويل شي اوکه نه لمونځ يې باطل دی .

## مجتهدين ائمه څه وائي

## (۱) د حضرت امام اعظم ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ مسلک

داحنافو په نيز په جهري او سري دواړه قسمه لمونځونو کې دامام پسې قرائت مکروه تحريمي دی ،(الدرالمختار، ج ١ص ۵۴۴)صاحب دهدايې فرمايي : ولنا قوله عليه السلام من كان له امام فقرائة الامام له قرائة وعليه اجماع الصحابة (الهداية ج ١صـ١٠٠و فصل فى القرائة )

علامه عيني رحمه الله فرمايي چې: قال صاحب الهداية من اصحابنا على ترک القرائة خلف الامام اجماع الصحابة فسماه اجماعا باعتبار الاكثر ومثل هذا يسمى اجماعا عندنا.

### د تفسير ستاری د مؤلف دروغ :

د تفسير ستاري مولف د تفسير ستاري په (۳۵٦ )نمبر صفحه کې ليکلي دي چې راشئ زه تاسو ته وښايم چې دامام صاحب په دې مسئله کې دوه قوله دي، يو قديم ،او بل جديد . علامه شعراني رَحِمَهُ اللَّهُ په ميزان الكبرى کې ليکلي دي چې دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ او دده د شاګرد امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ دا قول چې مقتدي به (الحمدلله) نه وائي دا قول قديم يعني زوړ دی، بيا امام صاحب او امام محمد له دغه قول څخه رجوع کړې ده. په

نوي قول کې يې فاتحه د مقتدي لپاره مستحبه او مستحسنه بللې ده، دده په رونډ تقليد کې همدغه خبره زمونږ د زماني لامذهبه نياز محمد عرف امين الله پشاوري هم کړې ده (الحق الصريح ج۴\ص:۲۰۷)

(۱) لامذهبه دروغژن چې د امام محمد تصانيف، او د احنافو فقهاوو په مشهورو او متداولو معتبرو کتابونو کې دا قول ونه موندہ، نو په سترګو کې يې خاورې اچول شروع کړل. د يو شافعي المسلکه د کتاب ميزان الکبرى چې د علامه شعراني رَحِمَهُ ٱللَّهُ کتاب دی، په هغې يې حواله ورکړه، افسوس چې د احنافو کتابونه د نړۍ په کونجونو کې شرقًا وغربًا موجود دي، د امام محمد کتاب موطا امام محمد او کتاب الاثار، خو په هر ځای کې ملاويږي، بيا هم دد ې څخه صرف نظر او اعراض کول د حيرانتيا او د تعجب خبره ده.

ولې چې امام محمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په خپلو کتابونو کې دا مسئله يو ځل نه بلکې باربار تصريحًا او تفصيلاً ذکر کړې ده (عيان راچه بيان) د داسې ښکاره او واضحه کتابونو پرځای ديوبل مسلک د عالم کتاب ته رجوع کول دا مطلب پرستې نده نو څه ده؟

ثانيا: د مؤلف دا دروغ بې بنياده دي د کومو چې ده په ميزان الکبرى باندې حواله ورکړې ده. ميزان دا اول څخه تر اخره مطالعه شوی دی، خود امام صاحب څخه پکې دا دوه قوله نشته، لامذهبه هوائي مرمې د علامه شعراني په سرويشتې ده. د مولانا ظفر احمد عثماني تحقيق په اعلاء السنن کې همدا دی چې په ميزان الکبرى وغيره کتابونو د علامه شعراني کې بالکل دا خبره نشته.

ولم اظفر بهذا الكلام في كتب العلامة الشعراني، من الميزان، او كشف الغمة، ورحمة الامة (اعلاء السنن ص ۹۳ و٤)

اوس: تاسو هم ښه پوهيږئ چې دا امام ابو حنيفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ مسلک پخپله دا امام محمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ په تصانيفو او کتابونو کې ذکر دی.

## (۲) د حضرت امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ مسلک

دامام محمد په مشهور کتاب، کتاب الاثار کښ يې ليکلي دي چې: (قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهِ: لَا يَنْبَغِي أَنْ يُقْرَأَ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ) (کتب الاثار ص ۱۸۷)

دامام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ هم دا مسلک دی چې قرئت خلف الامام نشته په هيڅ لمونځ کښ، سري وي او که جهري.

په بل ځای کښ: امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ په کتاب الاثار کښ فرمائی چې: (مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهِ، قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ رَحِمَهُ اللهِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللهِ، قَالَ: «مَا قَرَأَ عَلْقَمَةُ بْنُ قَيْسٍ رَحِمَهُ اللهِ قَطُّ فِيمَا يُجْهَرُ فِيهِ، وَلَا فِيمَا لَا يُجْهَرُ فِيهِ، وَلَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ أُمَّ الْقُرْآنِ، وَلَا غَيْرَهَا خَلْفَ الْإِمَامِ» قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهِ: وَبِهِ نَأْخُذُ. لَا نَرَى الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلٰوةِ يُجْهَرُ فِيهِ أَوْ لَا يُجْهَرُ فِيهِ) (کتاب الاثار، ص ١٦٤).

امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې ماته امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ خبر راکړی دی، هغه فرمائي چې مادحماد رَحِمَهُ اللَّهُ څخه اوريدلي دي، هغه د ابراهيم نخعی رَحِمَهُ اللَّهُ څخه روايت کوي، چې علقمه بن قيس رَحِمَهُ اللَّهُ دامام پسې قرئت نه لوستلو په سري او جهري لمونځونو کښ او په دوو اخرو رکعتونو کښ.

امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې هم دا زمونږ مسلک دی مونږ قرئت خلف الامام جايز نه ګڼو که لمونځ سري وي او که جهري وي.

په بل ځای کښ: امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ په خپله موطا باب القرائة فی الصلوة خلف الامام کښ ليکي (ص ۴۳) وفی البعض صـ ۹۵، (قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهِ: لَا قِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ فِيمَا جَهَرَ وَفِيمَا لَمْ يَجْهَرْ فِيهِ. بِذٰلِكَ جَاءَتْ عَامَّةُ الْأَخْبَارِ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهِ )(هکذا فی سنن الطحاوی ج ۱ صـ۱۵۹، باب القرائة خلف الامام)

فانقيل: په هدايه کښ دي چې: ويستحسن فی السرية علی سبيل الاحتياط، فيما يروی عن محمد؟

قلنا: محقق ابن الهمام پرې رد کړی دی امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې دامام شاته قراءة ويل نشته، که جهري وي او که سري وي، عام اثار او روايات په همدې دلالت کوي او دا قول دامام اعظم ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ هم دی.

امام ابن الهمام رَحِمَهُ اللَّهُ: په فتح القدير (ص ۲۴۱ جلد ۱) کې ليکي: وَالْحَقُّ أَنَّ قَوْلَ مُحَمَّدٍ رحمه الله كَقَوْلِهِمَا، فَإِنَّ عِبَارَاتِهِ فِي كُتُبِهِ مُصَرِّحَةٌ بِالتَّجَافِي عَنْ خِلَافِهِ، فَإِنَّهُ فِي كِتَابِ الْآثَارِ فِي بَابِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ بَعْدَمَا أَسْنَدَ إِلَى عَلْقَمَةَ بْنِ قَيْسٍ رحمه الله أَنَّهُ مَا قَرَأَ قَطُّ فِيمَا يُجْهَرُ فِيهِ وَلَا فِيمَا لَا يُجْهَرُ فِيهِ.

قَالَ: وَبِهِ نَأْخُذُ لَا نَرَى الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلٰوةِ يَجْهَرُ فِيهِ أَوْ لَا يَجْهَرُ، وَفِي مُوَطَّئِهِ بَعْدَ أَنْ رَوَى فِي مَنْعِ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلٰوةِ مَا رُوِيَ. قَالَ: قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: لَا قِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ فِيمَا جَهَرَ وَفِيمَا لَمْ يَجْهَرْ فِيهِ. بِذٰلِكَ جَاءَتْ عَامَّةُ الْأَخْبَارِ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله). (فتح القدير ج ۱ ص ۳٤۱)

• حق خبره داده چې دامام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ قول په عدم قرئت خلف الامام کې د شيخينو رحمهما الله په شان دی. ځکه دامام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ په تصانيفو کې ددغه اختلاف صراحةً نفی شوې ده.

امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ په کتاب الاثار باب القراءة خلف الامام کې د علقمه بن قيس رَحِمَهُ اللَّهُ د سند ذکر کولو څخه بعد وويل چې علقمه رَحِمَهُ اللَّهُ په جهري او په سري لمونځونو کې دامام شاته قراءة ندی ويلی، او نه يې جواز ورکړی دی، امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ د دينه بعد بيا و فرمايل چې همدا زمونږ مسلک هم دی چې مونږ دامام شاته په جهري او سري لمونځونو کې د قراءة د ويلو د جواز قائل بالکل نه يو. په (موطا امام محمد) کې هم امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ دامام شاته د قراءة د ويلو د ممانعت روايات ذکر کړی دی او ويلي يې دي چې دامام شاته په جهري او په سري لمونځونو کې قرءة ويل ندي پکار، اکثره روايات د ممانعت راغلي او دا دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ مذهب هم دی.

علامه شاه انورشاه الکشمیری رحمه الله فرمايي چې صاحب د هدايې په نقل کې مثبت او په مذهب کې متقن دی ، لهذا دا نقل معتمد دی ، صاحب البحر فرمايي چې : ان صاحب الهداية لم يجزم بانه قول بل ظاهره أنها رواية ضعيفة ( معارف البحرج ۱صـ ۳۶۳)

دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ مسلک چې صراحة واضحه دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ په کتابونو کې ذکر دی . ددې پرېښودل او ديو بل عالم د کتاب څخه استدلال کول، سره ددې چې دغه حواله هم غلطه ده دشعراني په کتاب کې وجود نه لري، انتهايي بې انصافي ده انتهائي دروغ دي ( فالي الله المشتکي )

ثانياً : بالفرض که دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ دا قول چې په سري لمونځونو کې مستحسنه او مستحبه ده صحيح ثابت شي .

نوپه دې دمخالفينو مدعا نه ثابتيږي، ځکه چې غير مقلدين خو دا دعوی کوي چې دامام شاته په جهري او په سري لمونځونو کې دالحمد لله ويل فرض دي، او دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ د مذکور مفروض عبارت څخه زيات نه زيات استحباب ثابتيږي، هغه هم په سري لمونځونو کې، نوپه دې قول دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ دغير مقلدينو دادعوی چې مقتدي په جهري او سري لمونځونو کې که فاتحه ونه وائي لمونځ يې نه کيږي .څرنګه ثابتيږي؟ دعوی او دليل کې خو مطابقت شرط دی ( هغه مطابقت دلته نشته ) .

## (۳) دحضرت امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مسلک

امام دارالهجرة حضرت امام مالک رَحِمَهُ اللهُ هم دامام شاته په جهري لمونځونو کې دمقتدي لپاره دسورة فاتحې دلوستلو قايل نه دی نه وجوبا او نه استحبابا البته که مقتدي دامام قرائت نه اوري نو بيا ورته قرائت کول دده په نيز مستحب دی او په سري لمونځونو کې يې اګرکه اجازت ورکړی دی لکن واجب او فرض يې ورته ندي ويلي لکه امام مالک چې په موطا کې باب ترک القرائة خلف الامام فيما جهر فيه الامام بالقرائة )

قال يحي سمعت مالکاالامرعندناان يقرء الرجل وراء الامام فيما لا يجهر فيه الامام بالقراءة ويترک القراءة فيمايجهرفيه الامام بالقراءة .

دامام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ مشهور شاګرد امام يحيى رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې ما دامام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ څخه اوريدلي دي چې ويل به يې چې زمونږ مسلک دا دی چې دمقتدي لپاره دسورة فاتحې ويل دامام شاته په سري لمانځه کې دي اوپه جهري کې يې نه ويل دي.

قال مالک الامر عندنا انه لايقرأ مع الامام ، فيما جهر فيه الامام بالقرائة هکذا فی التمهيدلابن عبدالبر ج ٤صـ ٤٣٩، تحت رقم الحديث ٢٣٦، باب ترک القرائة خلف الامام فيما جهر فيه)

مشهور غير مقلد عبدالرحمن مبارکپوری ليکلي دي : (وقال الزهري ومالک وابن المبارک واحمدواسحق يقرء فيما اسرفيه ولا يقرء فيمايجهربه) (تحفه الاحوذی ص ٢٥٧ ج ١) وفی البعض ج ٢صـ صـ٢٥١، باب ماجاء فی ترک القرائة خلف الامام.

امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ ابن المبارک رَحِمَهُ اللَّهُ ، امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ او امام اسحق رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې په سري لمونځونو کې مقتدي قراءة ويلی شي، اوپه جهري لمونځونو کې دمقتدي لپاره قراءة بالکل نشته.

امام موفق الدين بن قدامه حنبلی ليکلي دي : وَجُمْلَةُ ذٰلِكَ أَنَّ الْقِرَاءَةَ غَيْرُ وَاجِبَةٍ عَلَى الْمَأْمُومِ فِيمَا جَهَرَ بِهِ الْإِمَامُ، وَلَا فِيمَا أَسَرَّ بِهِ. نَصَّ عَلَيْهِ أَحْمَدُ رَحِمَهُ اللَّهُ، فِي رِوَايَةِ الْجَمَاعَةِ. وَبِذَلِكَ قَالَ الزُّهْرِيُّ، وَالثَّوْرِيُّ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَمَالِكٌ، وَأَبُو حَنِيفَةَ وَإِسْحَاقُ رَحِمَهُمُ اللَّهُ،)(مغنی ابن قدامه ، ص ٦٠٩)

حاصل دکلام دا شو چې د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نيز په مقتدي باندې قرئت واجب نه دی نه په جهري لمونځونو کې اونه په سري لمونځونو کې . [تحفة الاحوذی/ج ١/ص ٢٥٧].

امام احمد رَحِمَهُ اَللَّهُ په صراحت سره داویلي دي چې يو جماعت په دې (ترک القراءة خلف الامام) باندې قول کوي، د امام زهري امام سفيان ثوري، سفيان بن عيينه، امام مالک، امام ابو حنيفه او د امام اسحق رحمهم الله هم دغه مسلک دی .

د مذکوره واضحه الفاظو څخه د نصفُ النهار د آفتاب په شان معلومه شوه چې د امام مالک په نيز په سري او جهري لمونځونو کې قراءة د مقتدي لپاره واجب نه دی.

په جهري لمونځونو کې خو منعه دی دده په نزد او په سري لمونځونو کې صرف د جواز حکم ور کوي .

## (٤) د حضرت امام شافعي رَحِمَهُ اَللَّهُ مسلک

د امام شافعي رحمه الله دوه قوله دي اول دا چې په ټولو لمونځو نو قرائت خلف الامام واجب دی او دوهم قول دا دی چې په جهر لمونځونو کې د قرائت خلف الامام اجازت دی او په سري لمونځونو کې نشته دا دوهم قول جديد دی ځکه چې دا په کتاب الأم کې ذکر دی او کتاب الأم د امام شافعي جديد کتاب دی ، امام الحرمين ورته قديم ويلي دی، لکن دا يې وهم دی ، حافظ ابن کثير په البدايه والنهايه ج ١صـ٢٥٢، کې صراحةً ليکلي دي چې دا د امام شافعي رحمه الله جديد تصنيف دی .

په کتاب الام کې امام شافعي فرمايي چې: قال الشافعي رحمه الله والعمد فى ترک أم القرأن والخطاء سواء فى أن لا تجرئ ركعة الا بها او بشئٍ معها الا مايذكر من المأموم ان شاء الله صـ ٨٩، يعنې د فاتحې او د وروستې سورة څخه بغير لمونځ نه کيږي قصدا پاتې شوی وي او که خطأ بغير د مقتدي څخه چې د هغه ذکر به راشي ان شاء الله ، همدارنګه فرمايي چې فواجب على من صلى منفردا او اماما ان يقرأ بأم القرآن فى كل ركعة لا يجزيه غيرها واحب ان يقرأ معها شيئا أيه او اكثر وسأذكر المأموم ان شاء الله تعالى صـ ٩٣، يعنې په امام او منفرد باندې د سورة فاتحې لوستل واجب دي دده په ځای ورته بل سورة نه کافي کيږي او د مقتدي حکم به ذکر کړم ان شاء الله نو د امام شافعي رحمه الله په نيز د مقتدي حکم د امام او د منفرد په شان نه دی نو دلته خو يې د امام او منفرد حکم ذکر کړو او بيا ليکي چې :

( ونحن نقول كل صلوة صليت خلف الامام والامام يقرء قراءة لايسمع فيهاقرء فيها) (كتاب الام ص ۱۵۳ ، ص ۷ )

ترجمه : مونږوايوهرلمونځ چې دامام شاته اداکیږي اوامام داسې قرءة لولي چې مقتدي يې نه اوري نومقتدي به قرءة لولي .

دامام شافعی رَحِمَهُ اللَّهُ ددې عبارت څخه صافه ستره معلومه شوه چې دمقتدي لپاره دسورة فاتحې لوستل په جهري لمونځ کې درست ندي، فرضيت خو لا په ځای پريږده، مقتدي صرف په هغه لمونځونوکې چې سري وي فاتحه ويلی شي امام شافعی رَحِمَهُ اللَّهُ د ( قراءة لايسمع ) په قيد سره مقتدي ته خپله وظيفه ورکړه، دامام شافعی رَحِمَهُ اللَّهُ مذکوره عبارت چې واضحه اوصاف صريح دی، بياهم چې څوک ده ته دوجوب قول منسوبوي، نودحقائقو څخه سترګې پټوي، په خپلوخيالي فکرونو او وهمي تصورونوکې ډوب پاتې دی، دسترګو څخه دی دتعصب چشمې لرې کړي، داخرت دمسؤليت احساس دې وکړي .ان شاء الله چې حقيقت به ورته څرګنده شي .

ابن قدامه حنبلی رَحِمَهُ اللَّهُ ليکي چې: وَجُمْلَةُ ذٰلِكَ أَنَّ الْقِرَاءَةَ غَيْرُ وَاجِبَةٍ عَلَى الْمَأْمُومِ فِيمَا جَهَرَ بِهِ الْإِمَامُ، وَلَا فِيمَا أَسَرَّ بِهِ. نَصَّ عَلَيْهِ أَحْمَدُ رَحِمَهُ اللَّهُ، فِي رِوَايَةِ الْجَمَاعَةِ. وَبِذٰلِكَ قَالَ الزُّهْرِيُّ، وَالثَّوْرِيُّ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَمَالِكٌ، وَأَبُو حَنِيفَةَ وَإِسْحَاقُ رَحِمَهُمُ اللَّهُ، وَقَالَ الشَّافِعِيُّ، وَدَاوُدُ رَحِمَهُمَا اللَّهُ: يَجِبُ؛ لِعُمُومِ قَوْلِهِ - عَلَيْهِ السَّلَامُ - «لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَا يَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ» غَيْرَ أَنَّهُ خَصَّ فِي حَالِ الْجَهْرِ بِالْأَمْرِ بِالْإِنْصَاتِ، فَفِيمَا عَدَاهُ يَبْقٰى عَلَى الْعُمُومِ). [ مغنى ابن قدامه/ ج ۱ / ص ۶۰۹ ].

## د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ مسلک

امام احمدبن جنبل رَحِمَهُ اللَّهُ هم په جهري لمانځه کې دامام شاته د قرائة کولو د جوازقائل ندی، بلکې امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ په جهري لمونځونو کې قراءة کول شاذاوخلاف اجماع بللې دی، لکه ابن تيميه

چې فرمائي : (بخلاف وجوبها في حال الجهرفانه شاذحتي نقل احمدالاجماع على خلافه)(فتاوى ابـن تيميه ص ١٧٦ ج ١ )

ترجمه : يعني سورة فاتحې ته دامام پسې په جهري لمونځونوكې واجب ويـل شاذاونادرقول دی، تردې چې امام احمددې قول په خلاف باندې اجماع ذكركړې ده .

امام موفق الدين بن قدامه ليكي : (وجملة ذلک ان القـراءة غيرواجبـة علي المـاموم فيماجهربـه الامام ولافيمالا يجهربه نص عليه احمدفي رواية الجماعة) (مغنى بن قدامه ص ٦٠٨ ج ١) وفى البعض ج٢صـ ١١٨)

حاصل دكلام دا شوچې د امام شاته په جهري لمونځونوكې دسورة فاتحې لوستل واجب ندي نه په جهري اونه په سري لمونځونوكې امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ هم په دغه خبره باندې صراحت كړی .

مشهورغيرمقلد عبدالرحمن مباركپوری ليكلي په تحفة الاحوذی ص ۲۵۷ كې ( قـال الزهـری ومالک وابن المبارک واحمدواسحق يقرء فيمااسرفيه ولا يقرء فيماجهربه ) .

دغه مذكوره امامان صاحبان وائي چې په جهري لمونځ كې يې نشي لوستلی، اوپه سري لمونځ كې يئ لوستلی شي (جوازًا).

په يوبل ځای ليكي : ( وكذلک الامام مالک واحمدلم يكـونـو اقـائلين بوجـوب قـراءة الفاتحـة خلف الامام في جميع الصلواة ) (تحفة الاحوذی ص ٢٥٧ ج ١) همدارنګې عبدالله ابن المبارک اوامام مالک امام احمد رحمهم الله هم دامام شاته په ټولولمونځونوكې دقراءة خلف الامام قائل نه ؤ .

## د پيران پير حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رَحِمَهُ اللَّهُ فتوى

حضـرت پيـران پيرعبـد القادرجيلاني رَحِمَهُ اللَّهُ دمقتـدي لپـاره قـراءة درست نـه بـولي : ( ان كان ماموماينصت الي قراة الامام ويفهمها) (غنية الطالبين ، ص ٢ ج ١)

که لمونځ کوزار مقتدي وو نو دامام د قراءة لپاره بايد چپ شي، او دده لپاره دامام د تلاوت داوريدلو کوشش لازم دی.

د حضرت شيخ دظاهري الفاظو څخه دا خبره دشيشی پشان ظاهريږي چې د مقتدي وظيفه په ټولو لمونځونو کې داده چې په ډيره خاموشۍ سره دامام قراءة واوري او په خپله خاموش اوغلې اوسيږي.

## د ابن تيميه رَحِمَهُ اللَّهُ فتوی

وَأَيْضًا فَالْمَقْصُودُ بِالْجَهْرِ اسْتِمَاعُ الْمَأْمُومِينَ وَلِهَذَا يُؤَمِّنُونَ عَلَى قِرَاءَةِ الْإِمَامِ فِي الْجَهْرِ دُونَ السِّرِّ فَإِذَا كَانُوا مَشْغُولِينَ عَنْهُ بِالْقِرَاءَةِ فَقَدْ أَمَرَ أَنْ يَقْرَأَ عَلَى قَوْمٍ لَا يَسْتَمِعُونَ لِقِرَاءَتِهِ وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ أَنْ يُحَدِّثَ مَنْ لَمْ يَسْتَمِعْ لِحَدِيثِهِ وَيَخْطُبَ مَنْ لَمْ يَسْتَمِعْ لِخُطْبَتِهِ وَهَذَا سَفَهٌ تُنَزَّهُ عَنْهُ الشَّرِيعَةُ. وَلِهَذَا رُوِيَ فِي الْحَدِيثِ: {مَثَلُ الَّذِي يَتَكَلَّمُ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا} فَهَكَذَا إذَا كَانَ يَقْرَأُ وَالْإِمَامُ يَقْرَأُ عَلَيْهِ.هكذاذكرفي فتاواه تحت مسئلة القراءة خلف الامام.(ج۲۱ ص : ۱۴۷ وتنوع العبادات ص :۸۶).

او همدارنګې دامام د جهري لوستلو څخه مقصد مقتديانو ته وراورول دي، دهمدې وجهې څخه مقتديان صرف په جهري مانځه کې دامام په قراءة باندې امين وائي، نو که مقتديان هم سورة فاتحه لولي، نو ددې مطلب داراوځي چې امام ته به امرشوی وي چې داسې خلکو ته قراءة واوروی چې هغوی ورته غوږ نه نيسي اوددې داسې مثال دی لکه يوسړی چې دداسې خلکو سره خبرې کوي چې غوږ ورته نه نيسي، او داسې خلکو ته خطبه وائي چې غوږ ورته نه نيسي ،داسې خبرې کول او داسې خطبه لوستل حماقت دی چې شريعت مطهره ورباندې حکم نه کوي.

په يوحديث کې راغلي دي چې څوک دامام دخطبې په وقت کې خبرې کوي هغه دهغه خر په شان دي چې کتابونه پرې بارشوي وي نو همدارنګې هغه څوک دی چې دامام شاته قراءة کوي.

**حاصل داچې :**

(۱) –داحنافو په نيزدامام پسې دفاتحې لوستل په هرلمونځ (جهري اوسري) کې مکروه تحريمي دی.

(۲) - دامام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نيزپه جهري لمونځونوکې دامام شاته قراءة کول ممنوع دی او په سري لمونځونوکې هم واجب نه دي بلکې صرف اجازت يې شته .

(۳) - دامام احمدبن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ په نيزدامام پسې فاتحه لوستل شاذاو داجماع څخه مخالف دی او په سري لمونځونوکې هم واجب نه دي .

(۴) - دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نيزپه جهري لمونځونوکې د امام پسې قراءة نشته او په سري لمونځونوکې صرف اجازت دی وجوب دلته هم نشته .

نومحترمولوستونکو دغيرمقلدينومذهب چې دامام پسې دفاتحې لوستلوته په هر لمونځ او په هر رکعت کې فرض اوواجب وائي، هم دقران سره مخالف دی، اوهم دِحديثوسره، اوهم دتابعينو اودتبع تابعينو داقوالو سره، حتى دداودظاهري سره هم مخالف دی ځکه چې داودظاهري هم ورته فرض نه وائي . (احسن الکلام بحواله مغنى ابن قدامه جلداول ص۶۰۹ ) امام ترمذي دا مسلک د شد په لفظ سره ذکر کوي.

## ابواب المحدثين او ترک القرائة خلف الامام

محدثين اول منسوخ او يا بيا ناسخ احاديث ذکر کوي امام نووي رحمه الله فرمايي چې وهذا عادة مسلم وغيره من ايمة الحديث يذکرون الاحاديث التى يرونها منسوخة ثم يعقبونها بالناسخ،(شرح مسلم للنووي ج ۱صـ ۱۵۶، باب الوضوء مما مست النار ) نو ددې قانون مطابق محدثين اول دقرائت خلف الامام احاديث ذکر کوي او بيا د ترک دقرائة خلف الامام احاديث ذکرکوي لکه په موطا امام مالک کې اول: دا القرائة خلف الامام باب دی اوبيا دترک القرائة خلف الإمام الخ باب دی همدارنګه په موطا امام محمد مصنف عبدالرزاق مصنف ابن ابى شيبه جزء القراءة للبخارى ابن ماجه ، ابو داود ، ترمذى ، نسائي ، طحاوي، وغيره کتابونو کې دي.

فانقيل: چې په منسوخ باندې خو عمل ګاه ده نو ايا شوافع ګناهګار دي؟

قلنا: منسوخ کله منصوصي وي او کله اجتهادي وي په اول باندې عمل ګناه ده او قرائة خلف الامام اجتهادي منسوخ دی.

کله چې په هند کې انګريزي پيدا وار ويکټوري اهلحديثو غيرمقلدينو د احنافو په خلاف يو محاذ جوړ کړو او د احنافو د لمونځونو د فاسد کيدو اعلان يې وکړو نو د هند علما وو د دوی په جواب کې بې شميره کتابونه وليکل مولانا عبدالحی لکنوی رَحِمَهُ اللَّهُ (امام الكلام في القراءة خلف الامام) او د دې حاشيه (غيث الغمام في القراءة خلف الامام) وليکلو.

مولانا محمد قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللَّهُ (الدليل المحكم فی ترک القراءة للمؤتم) او (توثيق الكلام فی ترک القراءة خلف الامام) وليکل، او مولنا رشيد احمد ګنګوهی رَحِمَهُ اللَّهُ (هداية المعتدی فی قرائة للمقتدی) وليکل. او مولنا احمد علی سهارنپوری رَحِمَهُ اللَّهُ (الدليل القوی علی ترک القراءة للمقتدی) وليکه. او علامه شيخ محمد هاشم سندی رَحِمَهُ اللَّهُ (تنقيح الكلام فی القراءة خلف الامام) وليکلو. او علامه ظهير حسن نيموي رَحِمَهُ اللَّهُ ډيرې رسالې وليکلی. بيا وروسته شاه صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ په فارسي ژبه يوه رساله وليکله په نامه د (فصل الخطاب فی مسئلة أم الكتاب)، بيا يې دوهمه رساله په عربی وليکله په نامه د (خاتمة الخطاب فی مسئلة فاتحة الكتاب). بيا مولنا ظفر احمد عثمانی رَحِمَهُ اللَّهُ په اعلاء السنن کې فاتحة الكلام فی القراءة خلف الامام وليکله، بيا د ټولو څخه وروسته مولنا سرفراز خان صفدر صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ د (احسن الكلام فی ترک القرائة خلف الامام) په نوم يو کتاب په دې موضوع وليکلو چې دې کتاب ته په دې موضوع د بحثونو تر ټولو ښه او جامعه ذخيره ويلی شي. او د دې څخه علاوه که څوک د لامذهبو په باره کې پوره معلومات غواړي نو د علامه محمد امين صفدر اوکاړوي رَحِمَهُ اللَّهُ کتابونه دې وګوري، چې ډير جامع کتابونه پکې (تجليات صفدر) او (مجموعة الرسائل) دي.

## په امام پسې د فاتحې دلوستلو د قائلينو دعوه او دلايل

د لامذهبو دعوی د ټول امت په خلاف دا ده چې د مقتدي لپاره په هر رکعت کښې د سورة فاتحې لوستل فرض او يا واجب دي. او د دې د لوستلو څخه بغير يې مونځ نه کيږي.

امام المناظرين، حجة الله فى الارض، مولانا محمد امين صفدر اوکاړوي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې حنفي مناظر ته پکار دی چې د مناظرې په ميدان کښې د غير مقلدينو څخه د دعوې د تفصيل لپاره د لاندينيو خبرو وضاحت وغواړي.

۱) په يوه شپه او ورځ کښې د امام پسې اولس (۱۷) رکعته مونځ کيږي، په دې کښې په يوولسو (۱۱) سري رکعتونو کښې د مقتدي لپاره د امام قراءت کافي نه دی، نه د سورة فاتحې قراءت ورته کافي دی، او نه د باقي سورة، لدې وجې په مقتدي باندې په دې يوولسو رکعتونو کښې د سورة فاتحې لوستل فرض دي، او د باقي سورة لوستل ورته مستحب دي.

۲) په شپږو جهري رکعتونو کښې د امام سورة فاتحه د مقتدي لپاره کافي نه ده. له دې وجې په مقتدي باندې يې په سکتاتو کښې مستقلاً لوستل فرض دي او بغير د دې څخه يې مونځ نه کيږي او باقي سورة چې امام ولوستلو نو د مقتدي لپاره کافي دی له دې وجې مقتدي ته د باقي سورة لوستل حرام دي.

۳) کله چې فاتحه په سکتاتو کښې فرض شوه، نو سکتات موقوف عليه، د فرضو شو، او موقوف عليه د فرضو فرض وي، نو په امام باندې سکتات فرض دي ځکه چې که امام سکتات ونه کړي، نو مقتدي به سورة فاتحه په کوم وخت لولي؟

۴) کوم سړی چې د امام پسې د رکوع په حالت کښې اقتداء وکړي. د ده څخه دا فرض ساقط دي. او که نه؟

۵) کوم مقتدي چې مستقلا فاتحه ونه لولي د هغه مونځ باطل دی؟

مطالبه : لامذهبان دې صرف يو آيت او يا يو حديث وښايي چې په هغې کښې د لامذهبو دا پوره دعوه موجوده وي.

## قرآني دلائل:

د انصاف او د ديانت تقاضا خو دا وه. چې لکه څرنګه چې مونږ د بې شماره صحابهؤو رضی الله عنهم او د تابعينو رحمهم الله او د تبع تابعينو رحمهم الله څخه د ﴿إِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ ترجمه او تفسير را نقل کړو، چې دا د ممانعت د قرات خلف الامام په باره کښې نازل شوي دي. نو همدا رنګه دې غير مقلدينو هم د خپلې دعوې د اثبات لپاره يو ايت او د دې ترجمه او تفسير کم از کم صرف د يو صحابي څخه په صحيح سند باندې پيش کړې وې. چې د فلاني ايت په باره کښې فلانی صحابي وائي چې د دې شان نزول دا دې چې قراءت خلف الامام فرض دی. ليکن يقين وکړئ چې د دنيا د کتابخانو په هيڅ کوم اسلامي کتاب کښې دا خبره نه شته. چې فلاني صحابي يا تابعي ويلي دي چې د فلاني آيت شان نزول دا دې چې قراءت خلف الامام فرض دی. که څوک د يو ايت په باره کښې د يو صحابي روايت داسې پيش کولي شي نو راميدان ته دې شي. (هل من مبارز يبارزني).

ليکن د دې سره سره هم مجوزينو د قراءت خلف الامام په خپل ګمان د يو څو آيتونو څخه د استدلال ناکام کوشش کړي دي.

**اول آيت :** وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ۝ـ پ ۲۷ سورة نجم رکوع ۲

د دې څخه معلوميږي چې د امام قراءت صرف د امام لپاره دی او د مقتدي لپاره د مستقلې سورة فاتحې د لوستلو ضرورت دی.

**الجواب :** ۱) د هيڅ صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او يا تابعي رَحِمَهُ اللهُ څخه نه ده ثابته چې د دې آيت شان نزول ئې قراءت خلف الامام ګرزولې وي.

۲) په دي آيت کښي نه د فاتحي لفظ شته، نه د خلف الامام لفظ شته. نه د امام لفظ شته، او نه د مقتدي لفظ شته، نو د دې آيت د لامذهبو د دعوې سره هيڅ تعلق نه شته.

۳) په ما زاد علي الفاتحة کښي ولې د امام قراءت د مقتدي لپاره کافي دی؟ د امام ستره ولې د مقتدي لپاره کافي ده؟ کله چې مقتدي د امام سره د رکوع په حالت کښې شريک شي نو هلته ولې د امام سورة فاتحه د مقتدي لپاره کافي ده؟ په جهري مونځونو کښي امام په جهر باندي فاتحه لولي او غير مقلدين مقتديان ئي په پټه لولي. دلته ولي د امام جهر د مقتديانو لپاره کافي دی؟

۴) د آيت کريمه معني دا ده چې په کومو کارونو کښي چې نيابت او وکالت کار نه ورکوي لکه د توحيد عقيده د رسالت عقيده، د معاد عقيده، او نور اصولي امور، نو هلته هرسړي ته خپل عمل او خپله عقيده په کار ورځي د بل چا عقيده او عمل ورته نه کافي کيږي.

اوپه کومو کارونو کښي چې نيابت او وکالت صحيح وي په هغي کښي هم په اصل کښي موکل ته د خپلي سعي او کوشش بدله رسيږي. او د هغه سعې دا ده چې ده د ځان لپاره وکيل او نائب منتخب کړی دی. نو ساعي کله موجد وي کله عامل وي کله داعي وي او کله سبب وي.

**دوهم آيت :** وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً (الاية).

لامذهبان وائي چې د دې آيت معنی دا ده چې فاتحة په زړه کښي پټه پټه وائی. خير الكلام ص ـ ۶۸

**الجواب : ۱)** د دې آيت کـه دا شان نزول وی نو دا بـه د صحابهؤو رضی الله عنهم، او د تابعينو رحمهم الله او د جمهورو سلفو رحمهم الله او د خلفو څخه هيڅکله پټ نه وو پاتې شوی.

۲) لا مذهبان که وائي چې دا آيت عام دی سورة فاتحي ته هم شامل دی، نو بيا ئي ولې باقي سورة ته هم نه شاملوي؟ او ولې باقي سورة په زړه کښي پټ پټ نه وائي؟

۳ ) امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په نتيجه الفكر كښې ليكلي دي چې د دې آيت څخه مراد ذكر قلبي دی. ذكر لساني نه دی مراد . كذا في الدليل المبين صـ ٣٦١

۴ ) كه په طريقي د فرض المحال ومنو چې دا آيت د مانځه په باره كښې نازل شوی دی . نو بيا مونږ وايو چې په دې كې منفرد او امام ته د قراءت حكم دی . كما يدل عليه واذكر ـ ولا تكن ـ ځكه چې دا صيغې د مفرد دي . او د مقتديانو حكم په مخكې آيت كښې په صيغې د جمع سره ذكر شوی وو. چې: فاستمعوا له و انصتوا ـ لعلكم ترحمون .

۵ ) حافظ ابن كثير رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې د مقتديانو د قراءت لپاره د دې آيت څخه استدلال بعيد مناف للانصات المامور به . تفسير ابن كثير ج ٢ صــ ٢٨٢

**فان قيل** : چې دا تفسير د زيد بن اسلم رَحِمَهُ اللهُ څخه را نقل شوی دی . كتاب القرائة للبيهقى ص ١٠١ رقم ٢٥٧)

**قلنا** : دا تفسير رواية او دراية غلط دي . دراية ځكه غلط دي چې ابن كثير ورته بعيد او منافي للانصات ويلی دی . همدا رنګه د زيد بن اسلم رَحِمَهُ اللهُ څخه روايت د ي چې : كانوا يقرون خلف الامام فنزلت واذا قرئ القران الاية . مغني ج ١ صـ ٦٠٥ نو د ده څخه په صحيح سند باندي منع د قراءت خلف الامام روايت شوي ده .

په دې ايت كې نه دا امام ذكر شته او نه د مقتدي ، همدا رنګه نه پكې د قرائت ذكر شته او نه د سورة فاتحې.

او رواية ځكه غلط دی چې د دې تفسير سند داسې دی چې اخبرنا ابو عبد الله الحافظ أنا ابـو على الحافظ أنا ابو عمر الحرشى نا الفضل بن محمد الشعرانى نا ابراهيم بن حمزه نا عبدالعزيز بن محمد قال سمعت زيد بن اسلم الخ نو په سند كې يو راوي فضيل بن محمد الشعرانى دی چې ايمه د جرح او

تعدیل دده په باره کې فرمایي: تکلموا فیه فرماه بالکذب، انه کان غالیا فی التشیع (میزان الاعتدال للذهبي ج ۲ص ٤٩٠ رقم الترجمة ٤٧٢٧) همدارنګه د دې تفسیر په سند کښې عبدالعزیز بن محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ سیئ الحفظ. او خطاکار دی. ابو زرعه رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکي چې سیئ الحفظ. امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي چې یخطئ، ابن سعد رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي چې یغلط، او ساجي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي چې کثیر الغلط. تهذیب التهذیب ج ٦ ص ۳۵۴

**دریم آیت :** وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى. پ ۱۰ بني اسرائیل ؟

**الجواب :** ۱) د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ څخه نیولی تر د انګریزانو د دورې پورې په کوم کتاب کښې راغلي دي. چې جائز کار ته ئي وزر ویلی وي؟ جائز او فرض کار عبادت وي. او په دې آیت کښې وزر ذکر شوی دی. که نه ئې شي پیش کولې نو بیا خو لږ د خپل ضمیر څخه وشرمیږئ.

۲) آیا سورة فاتحه وزر دی او که مازاد علی الفاتحه؟ په یو سلو څوارلسو سورتونو کښې یو اځې سورة فاتحې ته ولې وزر وائې ؟

**څلورم آیت** : وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا. الایة، نو څوک چې د سورة فاتحی د لوستلو څخه اعراض کوي هغه د دې وعید مستحق دی.

**الجواب ۱)** د اذا قرئ القران آیت چې په اجماع د امت، او د صحیحو روایاتو مطابق، د قراءت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی. هلته لامذهبان وائي چې نه دا د کفارو په باره کښې نازل شوی دی. او دا آیت چې بالا تفاق د کفارو او د منافقینو په باره کښې نازل شوی دی. نو دلته لا مذهبان وائي چې نه دا د قراءت خلف الامام په باره کښې نازل شوی دی.

۲) آیا لا مذهبانو! د إذا قرئ القران فاستمعوا له و انصتو څخه اعراض نه دی کړی؟ او خپله د دي آیت مصداق نه دی ګرزیدلی؟

بعضي لا مذهبانو د فاقرءو ما تيسر من القران څخه هم استدلال کړی دی ليکن مخکې ذکر شو چې هغه آيت د تهجد و د مانځه په باره کښې نازل شوی دی.

## له احاديثو څخه استدلال

## (۱) دحضرت عبادة بن صامت ﷺ حديث:

دقراءة خلف الامام دقائلينو ترټولو داعتماد وړ او قوي دليل د حضرت عبادة بن صامت ﷺ حديث دی.

عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ ﷺ، قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ، فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ القِرَاءَةُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: إِنِّي أَرَاكُمْ تَقْرَءُونَ وَرَاءَ إِمَامِكُمْ، قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ! إِي وَاللّٰهِ، قَالَ: لاَ تَفْعَلُوا إِلاَّ بِأُمِّ القُرْآنِ، فَإِنَّهُ لاَ صَلاَةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا.

عبادة بن صامت ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ د سهار لمونځ وکړو، نو قراءة ورباندې درونده شو، چې کله د لمانځه څخه فارغ شو نو يې فرمايل چې زه ګورم تاسو چې دامام پسې قراءة کوئ! مونږ جواب ورکړو چې هو قسم دی چې مونږ دا کار کړی دی! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې بيا دامام پسې قراءت مه کوئ! بغير د الحمدلله څخه (يعني دا په امام پسې لولئ) ځکه نشته دی لمونځ د هغه چا لپاره چې الحمدلله و نه لولي.

**الجواب :** دعبادة بن صامت ﷺ دا حديث په دريو طريقو روايت شوی دی.

(الف) په صحيحينو کې مرفوع روايت دی چې: ان رسول الله ﷺ قال لاصلوة لمن لم يقرء بفاتحة الکتاب [بخاری ج ۱ص ۱۰٤/ مسلم ج ۱ص ۱٦۹].

ددې حديث دوه معنی ګانې دي يوه د صحابي او بله د وهابي، وهابيان يې داسې معنی کوي (چې: نه صحيح کيږي لمونځ د هغه چا چې الحمدلله و نه لولي) دا معنی نده صحيح، ځکه چې په دې کې يې د (با) معنی حذف کړه، دا د داسې الفاظو معنی ده چې لاصلوة لمن لم يقرء فاتحة الکتاب، حالانکې په داسې الفاظو حديث ندی راغلی، دصحابي معنی داده چې د هغه چا لمونځ نه کيږي چې قرائت و نکړي د فاتحة الکتاب سره، يعني چې د فاتحة الکتاب سره سورة و نه لولي او د فاتحة الکتاب سره سورة

منفرده يعنى يواځې لمونځ كونكى لولي مقتدي يې نه لولي، نو دا حديث د يواځي لمونځ كونكي په باره كې شو ، د دوهمې توجيه لاندې يې لږ نور تفصيل هم راروان دى او همدا معنى د حضرت جابر رضى الله عنه د حديث نه را فهميږي، حضرت جابر رضى الله عنه فرمايي چې دا حديث د منفرد په باره كې دى ، كماسيأتى.

(ب ) دا حديث په مصنف ابن ابى شيبه رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، اوطحاوى رَحِمَهُ ٱللَّهُ په احكام القران كې اوعلامه ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ پخپله فتاوى كې دمحمود بن الربيع رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه نقل كړى دى.

قَالَ: صَلَّيْتُ صَلٰوةً وَإِلٰى جَنْبِي عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ ﷺ قَالَ: فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ. قَالَ: فَقُلْتُ لَهُ: يَا أَبَا الْوَلِيدِ، أَلَمْ أَسْمَعْكَ تَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ؟ قَالَ: «أَجَلْ؛ إِنَّهُ لَا صَلٰوةَ إِلَّا بِهَا» لفظه لابن ابي شيبه. (مصنف ابن ابى شيبه ج ١ص ٣٧٥ ) ( فتاوى ج ٢ ص ١٧٨)

محمودبن الربيع رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې مادعبادة بن صامت ﷺ په څنګ كې لمونځ كولو نو هغه دامام پسې الحمد لله لوستله، ماترې پوښتنه وكړه چې تادامام پسې الحمد لله ولوستله ؟ هغه وفرمايل هو ! دهغه چالمونځ ندى صحيح چې الحمد لله ونه لولي.

(ج ) داحديث كريمه په ترمذى كې په هغه الفاظو مروي دى چې مونږ اول وليكل چې: قَالَ: صَلّٰى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ، فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: إِنِّي أَرَاكُمْ تَقْرَءُونَ وَرَاءَ إِمَامِكُمْ، قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ، إِي وَاللهِ، قَالَ: لاَ تَفْعَلُوا إِلاَّ بِأُمِّ الْقُرْآنِ، فَإِنَّهُ لاَ صَلٰوةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا.

په دې درې طريقو كې اوله طريقه صحيح ده،لكن صريحه نه ده ددې حديث څخه ددوي استدلال نه صحيح كيږي، دډيرو وجهونه په دې حديث كې د مقتدي لفظ نشته، اونه پكې د خلف الامام لفظ شته دى، نو ددې حديث څخه د مقتدي د قرائت خلف الامام له پاره استدلال څرنګه صحيح شو ؟

**فان قيل :** چې په دې حديث كې د (مَنْ) لفظ عام دى، مقتدي ته هم شامل دى.

**قلنا** : د (مَنْ) لفظ په عموم کې نص قطعي نه دی، ځکه چې د هر کرتې په دې کې تخصیص مراد وي، لکه: (١) ( وَيَسْتَغْفِرُونَ لِمَنْ فِي الْأَرْضِ ) [ سورة شـورى ] حالانکه دا استغفار يوا ځې د مؤمنانو له پاره دی. (٢) ( ءَأَمِنتُم مَّن فِي السَّمَاءِ ) [ سورة تبارک ] دلته د لفظ د (من) څخه يوا ځې الله مراد دی. (٣) حضرت رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: ( لتتبعن سنن مـن كان قـبلكم ) [ بخـارى / ج ٢ / ص ١٠٨٨ ] دلته له ( من ) څخه يوا ځې يهود او نصارى مراد دي.

همدارنگه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې انما هلک من کان قبلکم (صحيح مسلم ج ٢صـ( ٣٣٩) حالانکې دلته د من څخه مراد صرف عصاة او نافرمانه خلک دي.

(٤) ملا جيون فرمايي چې: ( مَا و مَنْ يحتملان العموم والخصوص ) [ نورالانـوار / ص ٧٥ ].( ٥) سيد شريف فرمايي چې: ( الموصولات لم توضع للعمومَ بل هی للجنس يحتمل العموم والخصـوص ) [ شرح مواقف / ج ٢ / ص ٤٥٨ ] .

نو کله چې د (مَن) کلمه په عموم کې قطعي نص نه شو ، نو دا د چا په حق کې ده ؟ مونږ به په کلکو دلايلو سره دا ثابته کړو چې : دا د امام او د منفرد په باره کې ده. ان شاءالله.

(١) سفيان ابن عيينه رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې: (لمن يصلي وحده ) ابوداود ج ١ص ١١٩ ) دا دهغه چا په باره کې دی چې ځانته لمونځ کوي .

همدارنگه امام اسماعيلي چې په شوافعو کښې لوي امام وو تذکره ج٥ صـ ١٤٩ فرمائي .چې دا حديث د منفرد په باره کښې دی . بذل المجهود ج٢ صـ ٥٢

همدارنگه امام موفق الدين ابن قدامه الحنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ ليکي چې اما حديث عبادة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ الصحيح فمحمول علي غير المأموم و كذالک حديث ابي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ .(مغني ج ١صـ٦٠٦ ،وفی البعض ج ٢صـ١١٨)

يعني د عبادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحيح حديث او د ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث د مقتدي په باره کښې نه دي. بلکه د امام او د منفرد په باره کښې دي.

همدارنګه امام شمس الدين فرمائي چې: فالحديث الاول الصحيح محمول علي غير المأموم وكذالک حديث ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. شرمقنع للكبير ج ٢ صـ ١٢]. همدارنګه امام ابن عبدالبر فرمايي چې دا د منفرد په باره کې دی (التمهيد لابن عبدالبر ج ٤صـ ٤٤٩، الاستذكار، ج ١صـ ٤٧٠)

او د دوي څخه علاوه حضرت جابر بن عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي چې حديث د لاصلوة لمن يقرأ بفاتحة الكتاب فصاعداً. د منفرد په باره کښې دی. حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي چې:

مَنْ صَلَّى رَكْعَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ، فَلَمْ يُصَلِّ إِلاَّ أَنْ يَكُونَ وَرَاءَ الإِمَامِ (ترمذي باب ماجاء فی ترک القراءة خلف الامام اذا جهر بالقراءة ج ١صـ ٧١، موطا امام مالک صـ ٦٦، باب ماجاء فی أم القرآن.

امام احمد رحمه الله فرمايي چې: هذا رجل عن اصحاب النبی صلی الله عليه وسلم تأول قول النبی صلی الله عليه وسلم، لاصلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتبا أن هذا اذا كان وحده.

او حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمائي چې دا د منفرد په باره کښې دی. موطا امام مالک صـ ٢٩ و في البعض صـ ٦٨. همدارنګه امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ فرمائي چې دا د منفرد په باره کښې دی. ترمذي ج ١صـ ٤٢].

**اعتراض:** مبارکپوري اعتراض کړی دی چې حديث د (من) د لفظ له وجې عام دی. نو د دې تخصيص به په کتاب او په سنت باندې صحيح وي. د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د سفيان بن عيينه رَحِمَهُ اللهُ په قولونو باندې نه دی صحيح.

**الجواب :** مبارکپوري یوائې د سفیان بن عیینه رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ نومونه ذکر کوي. او دجابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نومونه نه اخلي . صرف خپلو ملګرو ته موقته تسلي ورکوي .

۲) مخکې آیتونه، او حدیث، او د لغتو د امامانو قولونه ولیکل شو چې کلمه د (من) په عموم کښې نص نه وی.

۳) د دوي دا خبره چې دا حدیث د منفرد په باره کښې دی خپله د همدې حدیث د فصاعداً -د مازاد- او دما تیسره وغیره الفاظو څخه په استدلال باندې بناء دی، لکه په دوهمه او دریمه توجیه کښې به چې راشي ان شاء الله .

۴) د جمهورو مسلمانانو په دې اتفاق دی چې کوم مقتدي چې د امام سره د رکوع په حالت کښې شریک شي نو ده نه پخپله سورة لوستلی دی او نه ئې د امام څخه اوریدلې دی ، لیکن بیا هم د ده دا رکعت صحیح دي . امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ هم دا خبره کوي . کتاب الام ج ۱ صـ ۸۷]. نو وي شرح مسلم ج ۱ صـ ۱۳۵ امام ابن تیمیه همدا خبره کوي . منهاج السنة صـ ۵ ].

او همدا د امام مالک ، امام شافعي ، سفیان ثوري ، امام اوزاعي ، امام ابو ثور ، امام احمد بن حنبل ، امام اسحق بن راهویه رَحِمَهُمُ اللَّهُ، او په صحابه وُو کښې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا مسلک دی . امام الکلام صـ ٦٠ و اوجز المسالک ج ۱ صـ ۲۴۰ و اعلاء السنن ج ۴ صـ ۳۲۹ ]

او همدا مسلک د لامذهبو مشرانو هم مختاره کړی دی . وګوره [بدور الاهله صـ ٦۵ و دلیل الطالب صـ ۳۴۳ از نواب صدیق حسن خان ، و نیل الاوطار ج ۲ صـ ۱۱۳ للشوکاني و تحفة الاحوذي ج ۱ صـ ۲٦۱ للمبارکپوري . و عون المعبود ج ۱ صـ ۳۳۴ لشمس الحق عظیم ابادي ].

نو دا تخصيص د لامذهبو په شمول ټولو مسلمانانو کړی دی . دلته ولي د من د لفظ په عموم باندې قول نه کوئ ؟

۵ ) همدارنګه ګونګی چې سورة فاتحه نه شي لوستلې هغه هم د دي حديث څخه مستثنی دی.

لامذهبان وائي چې د معذور حکم جدا دی . ليکن مونږ وايو چې هر څرنګه وي د دې لفظ د من څخه مستثني شو . او د عموم قانون مات شو :

**دوهمه توجيه:** شاه صاحب په (فصل الخطاب فی مسئلة ام الکتاب ) کې بهترينه علمي توجيه کړې ده، حاصل يې دادی چې : کوم افعال بلا واسطه متعدي وي، هغه افعال په واسطه د باء سره هم متعدي کيدلې شي، البته په دواړو صورتونو کې په معنی کې فرق وي، ځکه چې کله بلا واسطه متعدی وي، نو هلته مفعول به کل مفعول وي، يعنې په مفعوليت کې ورسره بل څه شريک نه وي. او چې کله په واسطې د باء متعدی وي نو هلته مفعول به بعض مفعول وي، يعنې په مفعوليت کې ورسره بل څه شريک وي . نو قرء چې کله متعدی بالذات وي مفعول به يې ټول مقروء وي، او چې کله متعدی وي په واسطې د باء سره نو مفعول به يې بعضې مقروء وي، يعنې مفعول به به هم لوستلې شي او بل څه به هم ورسره لوستلی شي .

لکه د نبی کريم ﷺ د قرائت بيان چې کيږي نو په بعضې احاديثو کې داسې الفاظ راځي چې: يقرء بالطور (بخاری ج١ ص ١٠٦ ) ( قرء في المغرب بالطور) ( بخاری ج ١ص ١٠٥ ) کان يقرء في الفجر ب ق والقرءان المجيد ( مسلم ج ١ص ١٨٧)

په دې احاديثو کې قرء متعدی دی په واسطې د باء سره، معنی يې داده چې نبی کريم ﷺ يواځې سورة طور او سورة (ق ) ندي لوستلي ، بلکې د دې سره يې سورة فاتحه هم لوستلې ده، د دې په خلاف په يو حديث کې قرء متعدي بالذات دی :( قرء عليهم سورة الرحمن ) [ ترمذی ج ٢ابواب التفسيرسورة الرحمن ]

نو ددې معنی داده چې یو اځې سورة رحمن یې ولوستلو، دا قاعده د زمحشري په کتاب (المفصل) کې ذکرده او په تفسیر کشاف کې د (وَهُزِّيٓ إِلَيۡكِ بِجِذۡعِ ٱلنَّخۡلَةِ) دتشریح څخه هم مستفاده ده.

نو په حدیث کریمه کې فاتحة الکتاب باندې باء داخله شوی ده، نو دا دې طرف ته اشاره کوي چې په لمانځه کې به صرف سورة الفاتحه نشي لوستلی، بلکې بل څه به هم ورسره لوستلې شي یعنې ضم دسورة به هم ورسره وي.

ابن قیم رَحِمَهُ ٱللَّهُ لیکي چې: ( هذا لا يعطى الاقتصار عليها بل يشعر بقرائة غيرها معها) [ بدايع الفوايد/ ج ٤ / ص ٧٦ ].

نو دحدیث دا معنی نده چې دهغه چا لمونځ نه صحیح کیږي چې سورة فاتحه ونه لولي بلکې معنی یې داده چې دهغه چا لمونځ نه صحیح کیږي چې دسورة فاتحې سره سورة ونه لولي، نو دبل سورة او دسورة فاتحی یو حکم دی، او دواړه په یو حدیث کې ذکرشوي دي، ددواړو لوستل په امام او منفرد حقیقة واجب دي. نو دا حدیث د امام او د منفرد په باره کې شو.

او په مقتدي باندې خود سورة لوستل ندي واجب، بلکې د امام لوستل ورته کافي دي، نو دالحمدلله لوستل به هم نوي واجب بلکې د امام لوستل به ورته کافي وي.

**دریمه توجیه:** ددې ټولو څخه غوره او بهترینه توجیه شاه صاحب داسې کړې ده چې د حضرت عبادة ﷺ په دې حدیث کې د (فصاعدا) زیادة په صحیح روایتونو کې ثابت دی پوره حدیث داسې دی :(لاصلوة لمن لم يقرء بفاتحة الكتاب فصاعدا) (مسلم ج ١ص ١٦٩ ) باب وجوب القراءة فى كل ركعة)

ددې څخه معلومیږي چې دسورة دپیوسته کولو او دفاتحة الکتاب دلوستلو یو حکم دی. او سورة لوستل خو په مقتدي باندې نه دي واجب، بلکې په امام او په منفرد باندې یې لوستل واجب دي، نو معلومیږي چې دا [illegible]منفرد او د امام په باره کې دی.

امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په جزء القراءة کې ددې کلمې (فصاعدا) په زيادة اول اعتراض دا کړی دی چې داصرف د معمر تفرد دی او نورو راويانو دا ندی ذکر کړی، نو لدې کبله دا د اعتبار وړ ندی.

**اول جواب:** معمر نهايت ثقه دی. (وزيادة الثقة مقبولة)

**دوهم جواب:** حقيقت دا دی چې د فصاعدا په زيادة کې معمر متفرد ندی ځکه چې د نورو ثقه راويانو څخه هم مروي دی لکه د سفيان بن عيينه رَحِمَهُ اللهُ څخه کما في روايه سنن ابی داود جلد اول ص۱۱۹).

د امام اوزاعی رَحِمَهُ اللهُ څخه کما في کتاب القراءة للبهيقی ص۱۱) معارف السنن ج ۳ ص ۲۲۳) د شعيب بن ابی حمزه رَحِمَهُ اللهُ څخه په پورتني حواله، همدارنګې د عبدالرحمن بن اسحق څخه کما في معارف السنن ج ۳ص ۲۲۳). همدارنګه د صالح بن کيسان څخه هم مروي دی. [عمدة القاري/ج ۳/ص۶۹]. ددې لفظ په ځای په ابوداود کې د (ماتيسر) او د (مازاد) الفاظ هم مروي دی. [ج ۱/ص۱۱۸].

**دوهم اعتراض:** که دا زيادة صحيح شي نو ددې څخه د دواړو وجوب نه ثابتيږي بلکې د سورة فاتحې وجوب او دزايد سورة استحباب ترينه ثابتيږي، او ددې دليل دا دی چې سيبويه فرمايلي دي چې د فصاعدا کلمه د (ايجاب ماقبله وتخير مابعده) لپاره راځي مثلاً که يو سړی ووائي چې: (بعه بدرهم فصاعدا)

نو د محاورې له مخې ددې مطلب دا دی چې په يوه روپۍ يې خرڅول واجب دي، او ددې يوې څخه چې کومې زياتې دی په هغې کې اختيار دی، نو له همدې کبله په حديث کې د فاتحې فرضيت او د زيادت تخير او استحباب دی.

**جواب:** فصاعدا کلمه يواځې په (ايجاب ماقبله وتخير مابعده) کې نه ده منحصره، بلکې ډيرو معانيو لپاره راځي يوه معنی خو بلاشکه د (ايجاب ماقبله وتخير مابعده) ده لکه: (بعه بدرهم فصاعدا).

**دوهمه معنى ده :** ( ادخال مابعده في حكم ماقبله ) لكه عربان وائي : ( مشيت ميلين فصاعدا) چې معنى يې داده چې د ميلينو څخه زيات هم د ميلينو په حكم يعنې په مشى كې داخل دى.

**دريمه معنى** د ( توزيع الاحاد على الاحاد) ده لكه ( بعته بدرهم فصاعدا ) يعنې ماديو جنس بعضې افراد په يوه روپې خرڅ كړى دى او بعضې نور مې ديوى روپې څخه په زياتو خرڅ كړى دى

نو حديث كريمه : ( لاصلوة لمن لم يقرء بفاتحة الكتاب فصاعدا) قياس كول په ( بعه بدرهم فصاعدا) او په ( مشيت ميلين فصاعدا) باندې يې نه قياسول ترجيح بلا مرجح، بلكې ترجيح المرجوح ده ، ځكه حديث كريمه جمله خبريه ده او مقيس عليه ( بعه بدرهم فصاعدًا ) جمله انشاءيه ده، او همدارنګې په حديث كې نفى ده او په مقيس عليه مثال كې اثبات دى، نو حديث كريمه په ( مشيت ميلين فصاعدا ) باندې قياس دى او د ( ادخال مابعده في حكم ماقبله ) لپاره دى، او دددې لپاره دوه قرينې نورې هم شته اوله دا چې د فصاعدا لفظ د تركيب په اعتبار د فاتحة الكتاب څخه حال واقع شوى دى، نو تقدير د عبارة داسې دى چې: لاصلوة لمن لم يقرا بفاتحة الكتاب حال كونها صاعدة الي سورة غيرها.

او حال قيد وي او نفى چې كله په كلام مقيد بقيد داخله شي نو اكثرًا نفى د قيد راولي، او كله نفى د مقيد او قيد دواړو راولي. نو چې كله فصاعدا د فاتحة الكتاب لپاره قيد شو ،او نفى پرې داخله شوه، نو دا نفى به يا صرف د فصاعدا لپاره وي، او يا به د فاتحې او فصاعدا دواړو لپاره وي، يو اځې د فاتحې نفى په هيڅ صورة كې نه شي راتللې . يعنې د لمانځه فساد به يا صرف د سورة په پريښودو راځي نو يواځې سورة به واجب وي، او يا به د سورة او د فاتحې دواړو په پريښودلو راځي نو دواړه به واجب وي. دوهمه قرينه دا ده چې په ځينو روايتونو كې د فصاعدا پر ځاى د ( وماتيسر) الفاظ دي كما فى رواية ابن سعد (امرنا ان نقرء بفاتحة الكتاب وماتيسر) (ابوداود ج ١ص ١١٨ ) باب من ترک القراءة فى صلوته بهيقى ج ٢ص ٦٠ باب الاقتصار على قراءة بعض السور)

او په ځينو كې د فمازاد الفاظ دي كمافى رواية ابى هريرة . (ابوداود ج ١ص١١٨ ) (بهيقى ج٢ص ٣٧)

اوپه د اسې روايتونو کې (ادخال مابعده في حكم ماقبله) متعين دى او د (ايجاب ماقبله وتخيير مابعده) هيڅ تصور هم نه شي كيدلې، نو دواړه واجب شو.

**څلورمه توجيه:** دا د محدثينو قانون دي چې راوي الحديث اعرف بالمراد من غيره. نيل الاوطار ج ١ ص-٢٥٦ للشوكاني. مباركپوري ليكي چې: وقد تقرر ان راوي الحديث ادري بمراد الحديث من غيره. تحفة الاحوذي ج ١ صـ ٢٥٧ ].

همدارنګه ليكي چې: و مذهب الشافعي و محققي الاصوليين ان تفسيرالراوي مُقدم اذا لم يخالف الظاهر- قاله النووي تحفة الاحوذي ج ٢ صـ ٢٣٥ نو د دې قانون په نظر كښې نيولو سره مونږ وايو چې: د عبادة بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث په متعددو سندونو روايت شوي دي. ليكن مركزي راويان پكې. ١... امام ابوبكر بن ابي شيبه رَحِمَهُ اللَّهُ ٢. امام سفيان بن عيينه رَحِمَهُ اللَّهُ ٣. امام زهري رَحِمَهُ اللَّهُ ٤. امام مالك رَحِمَهُ اللَّهُ ٥. امام اسحق بن راهويه رَحِمَهُ اللَّهُ ٦. امام عبد الله بن وهب رَحِمَهُ اللَّهُ ٧. امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ ٨. امام عبد الرزاق بن همام رَحِمَهُ اللَّهُ ٩. امام معمر بن راشد رَحِمَهُ اللَّهُ ١٠. امام اوزاعي رَحِمَهُ اللَّهُ ١١. او حضرت امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ وغيره دي

دا ټول حضرات دلته د من د كلمې د عموم قائل نه دي. په دوي كښې څوك منفرد مراد وي، څوك منفرد او امام مراد وي، څوك سري او جهري دواړه مونځونه مستثني كوي، او څوك ترينه جهري مونځ مستثنى كوي. او مدرك د ركوع خو ټول مستثني كوي.

**پنځمه توجيه:** كه لامذهبان خامخا په دې اصرار كوي. چې دا روايت عام دي. مقتدي ته هم شامل دي نو هغوي ته پكار دي چې د امام پسې په جهر قراءت وكړي لكه څرنګه چې حضرت عبادة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم په جهر كولو.

لکه څرنګه چې امیر یماني رَحِمَهُ اللهُ لیکي چې: فهذا عبادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي الحديث قرابها جهراً خلف الامام لانه فهم من كلامه . انه يقرأ بها خلف الامام جهراً و ان نازعه .سبل السلام ج ۱ صـ۲٦١

**شپږمه توجیه** : په حدیث کې د قراءة څخه مراد عام دی چې حقیقةً وي لکه قراءة د امام او د منفرد او که حکماً وي لکه قراءة د مقتدي لکه څرنګه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دی :( من كان له امام فقراءة الامام له قراءة) ( سنن ابن ماجه ص ٦١ ) باب اذاقرء الامام فانصتوا) .

هغه څوک چې د امام په اقتداء کې لمونځ کوي نو دده لپاره د امام قراءة کافي دي . نو امام حقیقة قراءة کوي او همدغه د مقتدي لپاره حکماً قراءة دی، د دې یو څه تفصیل د احنافو په دلایلو کې د څلورم نمبر حدیث په تشریح کې تیر شوی دی .

## دوهمې طریقې توجیه

**پاتې شوه دوهمه طریقه نو دهغې توجیهات دادي :**

(۱) - دا د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه خپل اجتهاد دی یعنې هغوی د ( لاصلوة لمن لم یقرء) حدیث د امام، مقتدي . او منفرد درې واړو لپاره برابر ګڼلی دی، او د دې څخه یې دا حکم مستنبط کړی دی، چې په مقتدي باندې هم د فاتحې لوستل واجب دي، مګر دده استنباط د مرفوع احادیثو په مقابله کې دلیل نه شي کیدی .

(۲) - د دې حدیث څخه د احنافو د مذهب تائید کیږي، ځکه چې د دې حدیث څخه دا څرګندیږي چې اکثرو صحابه رضي الله عنهم وو او تابعینو د امام پسې قرائت نه کولو ،که چیرته داسې نه وي نو حضرت محمود بن الربيع رَحِمَهُ اللهُ به د حضرت عباد رضي الله عنه د قرائت له وجهې د تعجب سوال نه کولو ، دده تعجب د دې خبرې دلیل دی چې د عبادة رضي الله عنه دا عمل د ټولو صحابه وو او تابعینو د تعامل څخه مخالف وو .

(۳) - د حضرت محمود بن الربيع رَحِمَهُ اللَّهُ د سوال څخه دا ظاهريږي چې ده خپله قرائت خلف الامام نه وو کړی او ددې باوجود ورته حضرت عبادة ﷺ د لمانځه د راګرځولو حکم هم ونه کړو، ددې څخه معلومه شوه چې د حضرت عبادة ﷺ په نيز هم د فاتحې لوستل د مقتدي لپاره واجب نه وو.

## ددريمې طريقې جواب:

اوس صرف دريمه طريقه پاتې شوه. دا طريقه صريحه ده لکن غير صحيحه ده. امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ، علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللَّهُ، حافظ ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللَّهُ او نورو محققينو محدثينو دې حديث ته دلاندې اعتراضونو له وجهې ضعيف ويلي دي.

(۱) - ددې حديث يو راوی مکحول دی، مکحول اول او دوهم حديث ګډوډ کړی دی او دريم روايت يې ترينه جوړ کړی دی.

وجهه يې داده چې د عبادة ﷺ په دې حديث کې د محمود بن الربيع رَحِمَهُ اللَّهُ ډير شاګردان دي، مګر تېولو يا په اوله او يا په دوهمه طريقه روايت کړی دی، هيچا د قراءة خلف الامام حکم صراحةً د رسول الله ﷺ طرفته نه دی منسوب کړی دا نسبت صرف مکحول رَحِمَهُ اللَّهُ کړی دی او حديث يې په دريمه طريقه روايت کړی دی او مکحول رَحِمَهُ اللَّهُ اګرچې ثقه دی مګر د جرح او تعديل علماو تصريح کړې ده چې په ډيرو وختونو کې دده

څخه په روايتونو کې وهم کيدلو. ددې وهم پوره تفصيل علامه ابن تيميه په خپله فتاوی کې کړې ده.

( ج ۲ص ۱۷۸ ) طبع دار الكتب الحديثية بمصر )

او همدا رنګه امام ترمذی رَحِمَهُ اللَّهُ ددې حديث د نقل کولو څخه وروسته همدغه حديث د امام زهری رَحِمَهُ اللَّهُ په طريقه نقل کړی دی، چې په هغې کې يوائې دا سې الفاظ دي چې: ( لاصلوة لمن لم يقرء بفاتحة الكتاب ) او بيا يې وروسته فرمايلي دي چې: ( وهذا أصح )

(۲) ددې حديث په سند کې سخت اختلاف موندلی کيږي د لاندې وجهونه.

الف: په بعضو طريقو کې سند دا رنګه دی (مکحول عن عبادة الصامت) (سنن دارقطنی ج ١ص ٣١٩) باب وجوب قرائت ام الکتاب فی الصلوة خلف الامام ) او په دې کې انقطاع ده ( فان مکحولالم يسمع من عبادة بالاتفاق )

ب : په بعضو طريقو کې دا رنګې دي (مکحول عن نافع بن محمود بن ربيع عن عبادة بن صامت) [ابوداود ج١ ص ١١٩) باب من ترک القراءة فی صلوته/ و کتاب القرائة / ص ٤٣ ]

ج : په بعضو کې دا رنګې دي (مکحول عن نافع بن محمود عن محمود بن الربيع عن عبادة بن الصامت عن النبي ﷺ. (الاصابة فی ترجمة محمود ج ٣ص ٣٨٦ ) (معارف السنن ، ج ٣ص ٢٠٣)

د : په بعضو کې دا رنګې دي (مکحول عن محمود عن ابي نعيم انه سمع عبادة بن الصامت عن النبي ﷺ) [دارقطنی ج ١ص ٣١٩ / مستدرک/ ج ١ / ص ٢٣٨]

ه : په بعضو کې دا رنګې دی ( مکحول عن رجاء بن حيوة عن عبدالله بن عمرو. ( معارف السنن ، ج ٣ص ٢٠٣ ) .

و : په بعضو کې درانګې دی ( مکحول عن عبدالله بن عمرو. (معارف السنن ج ٣ص ٢٠٣ )

ز : په بعضو کې دا رنګې دی چې رجاء عن محمود بن الربيع عن عبادة بن الصامت موقوفا روايت کړی دی. ( معارف السنن ج ٣ ص ٢٠٣ ) نو دا حديث وقفا او رفعا، اتصالا و انقطاعا، هم مضطرب دی. (وهل بعد هذا الاضطراب الشديد يکون الحديث حجة.

(٣) د دې حديث په متن کې په ديارلسو طريقو اضطراب دی. (معارف السنن، ج ٣ص ٢٠٣) فقد ذکر الشيخ البنوری ثلاثة عشر لفظا في حديث عبادة بن الصامت.

(٤) مکحول مشهور مدلس دی [ معرفة علوم الحديث/ ص ١١١ / تذکره/ ج ١ / ص ١٠١ / ميزان/ ج ١/ ص ١٩٨ ] / تهذيب التهذيب / ج ١٠ / ص ٢٩٢ / قانون الموضوعات / ص ٢٩٨ ]. او دا روايت د ده عنعنه ده.

مشهور غیر مقلد مبارکپوري وائي چې: دا مدلس دی [ ابکار المنن/ ص ۱۷۷ ] همدارنګه وايي چې: د مدلس عنعنه نه قبلیږي . (ابکارالمنن ص ۲۲۵)

(۵) دمکحول شاګرد محمد بن اسحق دی، او دهغه تفردات او عنعنې مشکوکې دي .

محمد بن اسحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ د مغازیو امام دی، لکن د جرح او د تعدیل پنځه نوي فیصده علماء فرمايي چې: په احکامو او سننو کې دده د روایت وجود او عدم یو برابر دي. وګوره لاندې کتابونه:

امام نسائي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې : قوي نه دي . ضعفاء صغیر صـ ۵۲ – ابو حاتم رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي ضعیف دي .العلل ج ۱ صـ ۴۲۳ – ابن نمیر رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې دا د مجهولو راویانو څخه باطل روایات رانقلوي . بغدادي ج ۱ صـ ۲۲۷ – دارقطني رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې : د ده د حدیث څخه استدلال صحیح نه دي . ایضاً ج ۱ صـ ۲۳۲ . سلیمان تیمي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې : کذاب دي . هشام بن عروة رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې کذاب دي . یحیي بن سعید قطان رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې کذاب دي . تهذیب التهذیب ج ۹ صـ ۴۵ . امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې دجال من الدجاجله : دا د دجالانو څخه یو دجال دی . میزان ج ۳ صـ ۲۱ و تهذیب التهذیب ج ۹ صـ ۴۱ . همدارنګه ورته امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ کذاب ویلی دی. بغدادي ج ۱ صـ ۲۳۲ . جریر بن عبد الحمید رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې زما دا خیال نه راتلو چې زه به تر هغه زمانې پورې ژوندی یم په کومه کښې به چې خلک د محمد بن اسحق څخه هم حدیث أوري . تهذیب التهذیب . ج ۲ صـ ۳۰٦ . ابو ذرعه رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې د محمد بن اسحق په حق کښې هیڅ صحیح نظر نه شته . توجیه النظر صـ ۲۸۰ . امام بهیقي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي جي محدثین او د حدیثو حافظان د محمد بن اسحق د تفرداتو څخه تختي . الجوهر النقي ج ۱ صـ ۱۵۵ . علامه ماردیني رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې په ابن اسحق کښې د محدثینو په نیز مشهور کلام دي، الجوهر النقي ج ۱ صـ ۱۵۵ عبد الله رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې زما والد امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې وو لم یکن یحتج به في السنن ، بغدادي ج ۱ صـ ۲۳۰ و تهذیب التهذیب ج ۹ صـ ۴۴ حنبل بن اسحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ به فرمائل چې ابن اسحق لیس بحجة بغدادي ج ۱ صـ ۲۳۰ و تهذیب التهذیب ج ۹ صـ ۴۴ . ایوب ابن اسحق رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې ما د

امام احمد رَحِمَهُ اَللَّهُ څخه د ده د تفرد د قبلولو په باره کښې پوښتنه وکړه هغه وفرمائيل چې : لا والله، بغدادي ج ١ صـ ٢٣٠ ابن معين رَحِمَهُ اَللَّهُ ورته ليس بذاک ، ضعيف ، او ليس بالقوي ويلى دى . بغدادي ج ١ صـ ٢٣١ و تهذيب التهذيب ج ٩ صـ ۴۴ علي بن المديني رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمائي لم يضعفه عندي الا روايته عن اهل الكتاب . تهذيب ج ٩ صـ ۴۵ مشهور او پخوانى مؤرخ ابو الفرج محمد بن اسحق بن نديم رَحِمَهُ اَللَّهُ المتوفي ٣٨۵ هـ په خپل كتاب الفهرست كښې فرمائي چې : مطعون عليه ، غير مرضي الطريقة ( الي ان قال ) وكان يحمل عن اليهود و النصاري ، ويسميهم في كتبه اهل العلم الاول، واصحابه يضعفونه ، ويتهمونه اهـ .الفهرست لابن نديم صـ ١٤٢

امام ترمذي رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمائي چې بعضي محدثينو په ده كښې د ده د حافظې د خرابۍ له وجې كلام كړى دى . كتاب العلل ج ٢ صـ ٢٣٧ . امام نووي رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمائي چې هغه راويان چې د صحيح شرطونو برابر نه وي . په هغوي كښې يو محمد بن اسحق دى . مقدمه نووي صـ ١٦ . علامه ذهبي رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمائي چې د ده روايت د صحت د مرتبې څخه راغورزيدلي دى، او د حلالو او د حرامو په مسئله كښې د ده د روايت څخه استدلال صحيح نه دى. تذكرة ج ١ صـ ١٦٣ . حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمائي چې په احكامو كښې د ابن اسحق روايت حجت نه دي . خصوصاً په هغه وخت كښې چې متفرد وي . او يا د كوم ثقه راوي د روايت څخه مخالف وي . دراية صـ ١٩٣ . ابن القيم رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمائي چې امام احمد د ابن اسحق روايتونه منكر ګڼلي دي . او ضعيف ئي ورته ويلي دي . زاد المعاد ج ١ صـ ١۴٣ . شوكاني رَحِمَهُ اَللَّهُ ليكي چې : ابن اسحق ليس بحجة لا سيما اذا عنعن . نيل الاوطار ج ١ صفحه ٢٣٤ د لامذهبانو سرګروه نواب صديق حسن خان د يو حديث په تحقيق كښې ليكي چې : در سندش نيز همان محمد بن اسحق است و محمد بن اسحق حجت نيست . دليل الطالب صـ ٢٣٩ كومو خلقو چې د محمد بن اسحق څخه دفاع كړې ده . نو شيخ الهند محمود الحسن رَحِمَهُ اَللَّهُ په ايضاح الادله صـ ۴۵ كښې دندان شكن جوابونه وركړي دي .

**فان قيل :** چې حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ ليكي : سليمان تيمي رَحِمَهُ اللَّهُ چې په محمد بن اسحق باندي جرحه كړې ده نو سليمان تيمي د جرح او د تعديل د امامانو څخه نه وو ، او امام مالک د خپلو الفاظو څخه رجوع كړى ده .

**الجواب :** كه په طريقي د فرض المحال ومنو چې سليمان التيمي د امامانو د جرح او د تعديل څخه نه وو .نو جارحين خو نور هم ډير وو لكه هشام بن عروة رَحِمَهُ اللَّهُ ، يحي بن المديني رَحِمَهُ اللَّهُ ، جرير بن عبد الحميد رَحِمَهُ اللَّهُ ، امام نسائي رَحِمَهُ اللَّهُ ، خطيب رَحِمَهُ اللَّهُ ، ابن نمير رَحِمَهُ اللَّهُ ، دارقطني رَحِمَهُ اللَّهُ ، ابو ذرعه رَحِمَهُ اللَّهُ ، علامه ذهبي رَحِمَهُ اللَّهُ وغيره وغيره نو آيا دا هم د جرحي او د تعديل امامان نه دي . همدارنګه دا خبره چې امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ د خپلې خبرې څخه رجوع كړې ده، صرف د خولې دعوې ده . چې هيڅ حقيقت نه لري . خطيب ليكي چې : واما كلام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ في ابن اسحق فمشهور غير خاف علي احد من اهل العلم بالحديث . بغدادي ج ١ صــ ٢٢٤ همدارنګه ابن الجوزي رَحِمَهُ اللَّهُ ليكي چې : اما محمد بن اسحق فمجروح ، شهد بكذبه ، مالک رَحِمَهُ اللَّهُ و سليمان التيمي رَحِمَهُ اللَّهُ و وهيب بن خالد ، و هشام بن عروة رَحِمَهُ اللَّهُ ، و يحي بن سعيد رَحِمَهُ اللَّهُ و قال ابن المديني رَحِمَهُ اللَّهُ يحدث عن المجهولين باحاديث باطلة . نصب الرايه ج ٢ صــ ٢٥٠ ].

همدارنګه امام بهيقي رَحِمَهُ اللَّهُ ليكي چې : وَكَانَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ رحمه الله لَا يَرْضَاهُ، وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ رحمه الله لَا يَرْوِي عَنْهُ، وَيَحْيَى بْنُ مَعِينٍ رحمه الله يَقُولُ: لَيْسَ هُوَ بِحُجَّةٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ رحمه الله يَقُولُ: يُكْتَبُ عَنْهُ هَذِهِ الْأَحَادِيثُ - يَعْنِي الْمَغَازِي وَنَحْوَهَا - فَإِذَا جَاءَ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ أَرَدْنَا قَوْمًا هَكَذَا - يُرِيدُ أَقْوَى مِنْهُ - فَإِذَا كَانَ لَا يُحْتَجُّ بِهِ فِي الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ فَأَوْلَى أَنْ لَا يُحْتَجَّ بِهِ فِي صِفَاتِ اللَّهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى، وَإِنَّمَا نَقَمُوا عَلَيْهِ فِي رِوَايَتِهِ عَنْ أَهْلِ الْكِتَابِ، ثُمَّ عَنْ ضُعَفَاءِ النَّاسِ وَتَدْلِيسِهِ أَسَامِيَهُمْ، فَإِذَا رَوَى عَنْ ثِقَةٍ وَبَيَّنَ سَمَاعَهُ مِنْهُمْ فَجَمَاعَةٌ مِنَ الْأَئِمَّةِ لَمْ يَرَوْا به بَأْسًا،( كتاب الاسماء والصفات صــ ٢٩٧)

نو امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ په مغازي كښې اګر چې ورته حسن ويلى دى . ليكن په احكامو او په سننو كښې ئې ورته سخت ضعيف ويلى دى .لامذهبان چې د بعضي امامانو څخه د ده توثيق رانقل كوي . نو

مونږ هغه منو لیکن صرف په مغازیو او په تاریخ کښې، نه په احکامو او په سننو کښې، د حافظ ابن الهمام رَحِمَهُ اللَّهُ او د علامه عیني رَحِمَهُ اللَّهُ توثیق ته د دومره جم غفیر په مقابل کښې اعتبار نه شته. او د دي سره سره مونږ الزاماً وایو چې د لامذهبو شیخ الکل نذیر حسین الدهلوي په معیار الحق صـ۲۴۲ کښې لیکي چې د غزالي رَحِمَهُ اللَّهُ، درؤیاني رَحِمَهُ اللَّهُ، د دبوسي رَحِمَهُ اللَّهُ د صاحب د هدائي رَحِمَهُ اللَّهُ او د ابن الهمام رَحِمَهُ اللَّهُ او د بعضي مالکیانو توثیق او تضعیف ته اعتبار نه شته.

پاتي شو د بن اسحق مدلس والي نو دا خو د ټولو په نیز منل شوی دی، لکه څرنګه چې: علامه هیثمي رَحِمَهُ اللَّهُ، حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ، لامذهبه قاضي شوکاني لامذهبه نواب صدیق حسن خان، لامذهبه شمس الحق عظیم آبادي، او لامذهبه مبارکپوري د ده په مدلس والي باندي صفا اقرار کړی دی ـ وګوره مجمع الزوائد ج ۱ صـ ۱۵۰ و تقریب صـ۳۱۳ و نیل الاوطار ج ۴ صـ ۴۳ و دلیل الطالب صـ۲۳۹ و تعلیق المغني ج ۱ صـ ۱۲۰ و ابکار المنن صـ۴۵ و تحفة الاحوذي ج ۱ صـ ۲۹۱

**فان قیل:** چې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ورته ثقه ویلي دي.

**قلنا:** د دومره جم غفیر او د جمهورو په مقابله کښې د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ذاتي رائي ته اعتبار نه وي. د لامذهبو سرګروه نواب صدیق حسن خان په یو ځائ کښې لیکي چې د جمهورو په نیز حسن حدیث حجت دی او د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په نیز نه دی (والحق ما قاله الجمهور). دلیل الطالب صـ۸۸۲ قاضي شوکاني رَحِمَهُ اللَّهُ هم د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ مذکور مسلک رانقلوي او بیا لیکي چې (والحق ماقاله الجمهور). نیل الاوطار ج ۱ صـ۲۲

۲) که رشتیا هم محمد بن اسحق ثقه وی نو امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ترینه په خپل کتاب صحیح البخاري کښې ولې کوم یو روایت نه راوړو؟

**فان قیل:** چې امام شعبه رَحِمَهُ اللَّهُ ده ته امیر المحدثین ویلي دی.

**قلنا:** د لامذهبو محقق مبارکپوري لیکي چې: د امیر المحدثین (د) لقب څخه توثیق نه راځي. قلت لادلالة في هذا علي کونه ثقة قابلاً للاحتجاج. تحفة الا حوذي ج ۲ صـ ۷۵

همدارنگه په بل ځائ کښي ليکي چې : فان مجرد كونه من كبار المحدثين لا يستلزم كونه ثقة. تحفة الاحوذي. ج ٢ ص ٧٥

**فان قيل** : چې علي بن المديني رَحِمَهُ ٱللَّهُ، او امام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم ورته ثقه ويلى دى.

**قلنا** : مخکي د دوي اقوال مفصل وليکل شو چې دوي ورته مطلقاً ثقه نه دى ويلى، بلکه صرف په مغازيو کښي ئي ورته ثقه ويلى دى. او په احکامو او په سننو کښي ئي ورته سخت ضعيف ويلى دى.

**فان قيل** : چې احناف ولې د آذان، د قطع د سرقې، او د تعجيل افطار په مسائلو کښې د محمد بن اسحق څخه استدلال کوي ؟

**قلنا** : په دې مسائلو کښي د احنافو سره يو اځي د محمد بن اسحق روايتونه نه دي. بلکه بې شماره حديثونه دي چې ناظرين ئې پخپل خپل ځائ کښې کتلى شي. (نيل الاوطار ص ٢٣٤ _ ج ١) (دليل الطالب ص ٢٣٩)

(٦) - دابوداود په روايت کې نافع بن محمود راغلې وهومجهول. [ميزان الاعتدال، ص ٢٢٧ _ ج ٣ قال الطحاوي لا يعرف فكيف يصح او يكون سنده حسنا الجوهر النقى ج ٢ص ١٦٥ و قال ابن عبد البر نافع مجهول (تهذيب ج ٦ ص ٥١٩) قال ابن قدامه فانه غير معروف (المغنى لابن قدامه ج ٢ص ١١٨) قال ابن حجر مستور من الثالثة (تقريب ص ٥٨٨) او دمجهول راوي په باره کې امام نووي رحمه الله فرمايي چې والجمهور على أنه لا يحتج به (مقدمة مسلم ص ١٧،) امام بيهقى فرمايي چې: (ولم يكلفنا الله أن نأخذ ديننا عمن لا نعرفه) كتاب القراءة للبيهقى ص ٣٩٥)

نو دا حديث معلول دى، حتى چې حافظ شمس الدين ذهبي شافعى په ميزان الاعتدال کې دمحمود بن الربيع دترجمې لاندې دې حديث ته معلول ويلي دى.

(٧) دا حديث صحيح داده چې موقوف دى، مرفوع نه دى. ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمائي چې : وضعفه ثابت بوجوه و انما هو قول عبادة بن الصامت، تنوع العبادة ص ٨٦ ]

دا حديث د ډيرو وجو څخه ضعيف او معلول دی ، او دا مرفوع نه دي. بلکه د عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دي . او په بل ځائ کي ليکي چې : و هذا الحديث معلل عن ايمة الحديث كاحمد و غيره من الا ئمة ، و قد بسط الكلام علي ضعفه في غير هذا الموضع و بين ان الحديث الصحيح قول رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا صلوة الا بأم القران فهذا هو الذي اخرجاه في الصحيح ، ورواه الزهري عن محمود بن الربيع عن عبادة اما الحديث فغلط فيه بعض الشاميين و اصله . ان عبادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كان يوماً في بيت المقدس فقال هذا ـ فاشتبه عليهم المرفوع بالموقوف علي عبادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اهـ ، فتاوي ج ٢ صـ ١٥٠].

امام احمد اونورو امامانو دی حديث ته معلول ويلی دی . او په يو بل ځائ کـي ئي په ډير تفصيل سره د دي ضعف بيان کړی دی .

او د دي وضاحت ئي کړي دي . چې د رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ صحيح حديث کوم چې په بخاري او په مسلم کې دی، او کوم چي زهري د محمود بن الربيع رَحِمَهُ اللهُ له طريقه د عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت کړی دی صرف دا دی چې لاصلوة إلا بأم القران، پاتې شو دا حديث چې د خلف الامام زيادة پکې دی ، نو په دې کې د بعضې شامي راويانو غلطي شامله ده ، او د دې دليل دا دي چې يوه ورځ عبادة بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بيت المقدس کـي دا حديث بيان کړو ، او خپل قول چې د خلف الامام قيد دی . دا ئي هم بيان کړو نو په راويانو باندي مرفوع او موقوف کډوډ شو .

**فان قيل** : چې امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ورته حسن ويلې دی ؟

**قلنا** : چي علامه ذهبي رَحِمَهُ اللهُ دامام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ په دي تحسين باندې رد کړی دی. تهذيب التهذيب ج ٩ صـ ١٢١ شمس الحق ليکي چې د امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ په تحسين چا اتفاق نه دی کړی . تعليق المغني ج ١ صـ ٢٢٢ د ترمذي په تصحيح اعتماد نه شته . فتح الملهم ج ٢ صـ ٤٣٠ لا مذهبه مبارکپوري ليکي چې : د امام ترمذي په تحسين باندي هيڅ اعتماد نه شته . [تحفة الاحوذي ج ١ صـ ٢٠٤ ، صـ ٢٢٠ ، صـ ٢٢٨ ، صـ ٣٧٦ ، وابكار المنن صـ ٢٠١ و صـ ٢٣٦ ].

**فان قيل** : چې امام حاکم رَحِمَهُ اللهُ د دې تصحيح کړې ده ؟

**قلنا :** علامه ذهبي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې امام حاكم رَحِمَهُ اللَّهُ د موضوعي حديثونو تصحيح هم كوي . تذكرة ج ۳ صـ ۲۳۱ . په بل ځائ كي ليكي چې امام حاكم رَحِمَهُ اللَّهُ د ساقط الاعتبار حديثونو تصحيح هم كوي . ميزان ۳ج صـ ۸۵ . ابن تيميه رَحِمَهُ اللَّهُ فرمائي چې حاكم د موضوعي او د جعلي حديثونو تصحيح هم كوي . كتاب التوسل صـ ۱۰۱ . لامذهبه صديق] . حسن خان ليكي چې د حاكم تصحيح ليس بشيئ ده . دليل الطالب صـ ٦١٨ . او لامذهبه مبارکپوري ليكي چې د حاكم په تصحيح كي كلام دي . ابكار المنن صـ ٦۴ . نو كله چې د دي روايت د سند حال تاسو وكتلو نو د دار قطني رَحِمَهُ اللَّهُ - د خطابي رَحِمَهُ اللَّهُ او د بهيقي تصحيحات بي دليله شو .

۸ : د صحيح احاديثو سره د تطبيق لپاره مونږ دا وايو چې په دي حديث كي د خلف الامام د لفظ څخه خلفيت زماني مراد دی يعني كوم سړی چې د امام د سلام څخه وروسته خپل مونځ پوره كوي نو هغه كه سورة فاتحه ونه لولي نو مونځ ئي نه دی شوی نو دا روايت د مسبوق په باره كې شو ، او دا توجيه د تطبيق د احاديثو لپاره بالكل صحيح ده ، ځكه چې خلف يو مكاني وي او بل زماني . په مكاني كې خو ئي استعمال هر څوک مني . او د خلف زماني لپاره يو څو مثاله دا دي .

۱ . وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ : پ۲۶ سورة الاحقاف۲

۲ . د يتيمانو په باره كي بي عدالتي كونكو ته الله پاک فرمائي چې : لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا . [پ٤ النساء]

۳ . وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ : پ ٤ العمران

۴ . رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمائي چې : و تسبحون و تحمدون و تكبرون خلف كل صلوة ، بخاري ج ۱ صـ ۱۱٦ ]

**فان قيل :** چې مسبوق خو يو اځې سورة فاتحه نه لولي بلكه ضم د سورة هم ورسره كوي ، او دلته د لا تفعلوا الا بام القران الفاظ دي .

**قلنا :** د ضم د سورة لپاره مونږ د فصاعداً او د مازاد او ما تيسر وغيره څخه استدلال کوو :

(۹) په دې حديث کې د. ( لاتفعلوا الابام القرءان ) الفاظ دي او په دې کې د نهى څخه استثناء شوى ده او چې کله د نهى څخه استثناء وشي نو د مستثنى اباحت ثابتيږي نه وجوب . [ امام الكلام/ ص ۲۲۴ ].

**فانقيل :** په دې حديث کې د. ( لاصلوة لمن لم يقرء بها ) الفاظ په وجوب دلالت کوي .

**قلنا :** دا جمله د فاتحې د لوستلو تعليل نه دى، بلکې استشهاد دى او مطلب دا دى چې د فاتحې په لوستلو کې حرج نشته. والفرق بين العلة والشاهدان العلة ماكان مدار الحكم في تلك المسئلة خاصة والشاهد مالا يكون مدارا فيه وانما يلائيمه فيذكر لاجل ملايمته ومناسبته . (معارف السنن، ص۲۰۸).

## (۲) دليل دحضرت ابوهريرة ﷺ حديث

وَرَوٰى أَبُو هُرَيْرَةَ ﷺ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: مَنْ صَلَّى صَلاَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ القُرْآنِ، فَهِيَ خِدَاجٌ، هِيَ خِدَاجٌ، غَيْرُ تَمَامٍ، فَقَالَ لَهُ حَامِلُ الحَدِيثِ: إِنِّي أَكُونُ أَحْيَانًا وَرَاءَ الإِمَامِ، قَالَ: اقْرَأْ بِهَا فِي نَفْسِكَ. ( مسلم ج ۱ص ۱٦۹ واللفظ للترمذى )

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې بغير د الحمد لله د لوستلو څخه لمونځ ناقص دى، نو راوي پوښتنه وکړه چې زه خو کله د امام پسې يم ده ورته وويل چې په زړه کې يې وايه .

**(۱) جواب :** اول خو علاء بن عبد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ د محدثينو په نزد ضعيف دى.

(۲) دوهم: دا چې په دې حديث کې دوه جزءه دي، يو جزء مرفوع دى چې په هغې کې يو اځې دومره دي چې د سورة فاتحې د لوستلو څخه بغير لمونځ نامکمل دى، مگر دا د احنافو د نورو دلايلو په رڼا کې د امام او د منفرد لپاره دي، (وكذلک حديث ابى هريرة فهو محمول على غير المأموم (المغنى ج ۲صـ ۱۱۸)

دوهم جزء: په ابو هريرة ﷺ موقوف دی، چې هغوي دفاتحې په باره کې فرمايلي دي چې (اقرء بهافي نفسک) د حضرت ابو هريرة ﷺ خپل اجتهاد دی چې د مرفوعو احاديثو په مقابله کې حجت نه شي کيدلی او دغير مقلدينو په نيز د صحابي قول حجت ندی (فتاوی نذيريه ج ١ صـ ٢٤٠، عرف الجادي ٢٨)

(٣) دريم: دا چې د اقرء بهافی نفسک دا معنی هم کيدې شي چې د تلفظ څخه بغير فاتحه په زړه کې لوله. چې دې ته کلام نفسي وايي.

(٤) او څلورم: دا چې دفی نفسک محاوره د حالت دانفراد لپاره هم مستعمليږي نو د اقرء بهافی نفسک معنی دا شوه چې (اقرء حال کونک منفردا) او دا داسې دی لکه په يو حديث قدسي کې چې ذکر شوي دي. (فان ذکرني في نفسه ذکرته في نفسي وان ذکرني في ملاء ذکرته في ملاء خيرمنهم) په دې حديث کې دفی نفسه تقابل دفی ملاء سره راغلی دی، نو حالت د انفراد ترينه مراد دی، همدارنګه الله تعالی فرمايي (وَقُل لَّهُمْ فِي أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا).. صاحب د روح المعانی فرمايي (ای قل لهم خاليا لايكون معهم لأحد)

(٥) پنځم دا چې: خداج په رُکنيت او فرضيت باندې دلالت نه کوي، نو ددې څخه د لا مذهبو دعوه چې فرضيت دی څرنګه ثابته شوه؟

(٦) دا حديث مبهم دی او د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه نور احاديث مفسر دي .والمفسر يقضی علی المبهم (بخاری، ج ١صـ ٢٠١)، قال ابن حجر لا يقبل الحديث المبهم، (شرح نخبة الفكر صـ ٩٨) هغه مفسر روايات مخکې ذکر شو لکه: اذا قرء فانصتوا، ( سنن ابن ماجه: باب إذا قرء الامام فانصتوا وعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ صَلَاةٍ لَا يُقْرَأُ فِيهَا بِأُمِّ الْكِتَابِ فَهِيَ خِدَاجٌ إِلَّا صَلٰوة خَلْف الإِمَامِ» (كتاب القرائة للبيهقی رقم ٤٠٤)

## (۳) دحضرت ابوقلابة ﷺ روايت

أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَصْحَابِهِ: «هَلْ تَقْرَءُونَ خَلْفَ إِمَامِكُمْ؟» فَقَالَ بَعْضٌ: نَعَمْ، وَقَالَ بَعْضٌ: لَا، فَقَالَ: «إِنْ كُنْتُمْ لَا بُدَّ فَاعِلِينَ، فَلْيَقْرَأْ أَحَدُكُمْ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فِي نَفْسِهِ» (ابن ابی شیبه، ج ۱ص ۳۷٤، عبدالرزاق، ج ۲ص ۱۲۷)

**جواب :** ابو قلابه سخت مدلس دی اودده سره داحدیث هم متناً او سنداً سخت مضطرب دی. په ځینو سندونو کې (عن ابی قلابة عن انس) دی [جزء القرائة/ص ۵۴ / کتاب القرائة/ص ۸۴ / دار قطنی/ج ۱/ص ۱۲۹].

او په ځینو کې د (عن ابی قلابة عن النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دی. [جزء القرائة/ص ۵۴ / کتاب القرائة/ص ۱۲۹/ بیهقی/ج ۲/ص ۱۶۶. او په ځینو کې (عن ابی قلابة عن محمد بن ابی عایشة عن رجل عن اصحاب النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دی [دارقطنی/ج ۲/ص ۱۶۶]. او په بعضو کې (عن ابی هریرة) دی [دارقطنی/ج ۱/ص ۱۲۹]. همدارنګه په بعضو متنونو کې داحدیث په (فلا تفعلوا) سره ختم شوی دی. [کتاب القرائة/ص ۴۹ / الجوهر النقی/ج ۲/ص ۱۶۷.

په ځینو کې یوازې د (لیقرء بفاتحة الکتاب) ذکر دی. [جزء القرائة/ص ۵۴]. (اعلاء السنن، ج ۴ص ۱۰۴) او نورجوابونه یې مخکې تیرشوي دي.

**دابوقتادة روايت :** أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَتَقْرَءُونَ خَلْفِي؟ " قَالُوا: نَعَمْ قَالَ: " فَلَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ ". (بیهقی، ج ۲ص ۱٦٦)

**جواب :** امام بیهقی رَحِمَهُ اللهُ خپله دې حدیث ته مرسل ویلی دی. [سنن الکبری/ج ۲/ص ۱۶۶] او همدارنګه ددې حدیث په سند کې یو راوي مالک بن یحیی ضعیف دی، نور احادیث هم شته خو یاضعیف دي او یا په حالت دانفراد حملیږي. او نورجوابونه یې دعبادة بن صامت ﷺ دحدیث په تشریح کې تیرشوي دي.

محترمو ورورنو! د قران كريم ايت كريمه، په لسګونو احاديث، د صحابه وو، تابعينو او تبع تابعينو فتوى، دائمه مجتهدينو مسلك، د پيران پير شيخ عبد القادر جيلاني رَحِمَهُ اللَّهُ او امام ابن تيمه رَحِمَهُ اللَّهُ د عباراتو څخه د نصف النهار په شان دا خبره واضحه كيږي چې په مقتدي باندې د سورة فاتحې لوستل فرض او واجب ندي، بلكې ممنوع او محظور دي: او دا هم تاسو واوريدل چې مانعين د قراءة خلف الامام يوازې احناف نه دي بلكې جمهور مسلمانان دي، جمهور فقهاء او محدثين دي، او كوم روايات چې پيش كوي هغه صحيح صريح او مرفوع دي، دد روايا تو (۹۵) فيصده راويان ثقه، ثبت، حافظ، او حجتوالي څخه علاوه د بخاري او د مسلم مركزي راويان دي، او لكه څرنګه چې د مؤذن اذان د ټولې محلې لپاره كافي دی، يو اقامت د ټول جماعت لپاره كافي دی، د امام ستره د ټولو مقتديانو لپاره كافي ده، د خطيب خطبه د ټولو حاضرينو د جمعې لپاره كافي ده. نو همدا رنګې د حديث د كفايت له وجهې د امام قراءة د ټولو مقتديانو لپاره كافي دی. او دا حديث د كفايت د حضرت جابر بن عبد الله ﷺ، حضرت ابو الدرداء ﷺ، حضرت انس ﷺ، حضرت عبد الله بن عمر ﷺ، حضرت علي ﷺ، حضرت عبد الله بن عباس ﷺ، حضرت ابو سعيد خدری ﷺ، حضرت نواس بن سمعان ﷺ، او حضرت ابو هريرة ﷺ څخه مروي دی.

لا مذهبان كه د تعصب چشمي لرې كړي، زړه د كثافاتو څخه صفا كړي او مذكور دلائل په غور او فكر سره مطالعه كړي، نو اميد دی چې بيا به د احنافو په خلاف اشتهارونه چاپ نه كړي، او نه به احنافو لمونځ ته باطل او بې كاره ووائي.

د الله ﷻ نه غواړو چې دې رسالې ته قبوليت وروبخي او اهل زيغو مبتدعينو ته يې د هدايت ذريعه وګرزوي او د افراط او د تفريط د مهلكی كندې څخه يې راوباسي، او په صراط مستقيم باندې د روانيدو توفيق وركړي. په اخر كې ټولو لامذهبو ته چيلنج وركوو چې كه د چا بنكرونه بيا هم خارښ كوي او تعصب نه پريږدي نو مونږ تيار يو.

وصلي الله تعالي علي خير خلقه سيدنا محمد وعلي اله واصحابه اجمعين.

۱۳۹۱/۲/٤ هـ ش ۱٤۳۳/٦/۱ هـ ق ۲۰۱۲/٤/۲۳ م

# فهرس



## دمناظرې اصول

**دتقلید مسئله**

**غیرمقلدین که شیعه گان او قادیانیان**

**حجية الاجماع والقياس**



**دلامذهبو وابيانو ځنځه د لمانځه او متعلقاتو په باره کې ٢٨٠ پوښتنې**



**د غير مقلدينو سره دبحث كولو يو ښوطريقې**



**انگريزان او اهل حديث**

**د حرمينو د علماوو او دغير مقلدينو سخت اختلافات**

**د قراءة خلف الامام مسئله**

